بسم الله الرحمن الرحيم

# صفوة التفاسير

پښتو

تأليف

## محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزيز پوهنتون
د شرعيا تو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکی

مولوي شمس الله کمال زاده

المكتبة المعروفية
کوئټه لاهور پاکستان






# صفوة التفاسير

لومړی ټوک

د قرآن کریم هغه تفسیر چې د مأثور او معقول تولګه اوله خورا معتبرو تفسیرونو څخه لکه: طبري، کشاف، قرطبي، اُلوسي، ابن کثیر، بحر محیط اونورو څخه یې غور چاڼ شوي او په روانو اونویو اسلوبو چې بیان اولغوي ارخونو ته پکښې پاملرنه شوي لیکل شوي دي.

مؤلف

**محمد علي الصابوني**

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزیز پوهنتون
د شرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکي:

**مولوي شمس الله کمال زاده**

مکتبہ الانوار شمیسائز



المکتبة المعروفیة
(کوئٹہ) کاسی روڈ شالدرہ کوئٹہ پاکستان
(لاہور) بادیہ حلیمہ سنٹر غزنی سٹریٹ اردو بازار لاہور

☏:03337907394-03353132868
Ph:03159807152-03337907398
E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com
http://www.facebook.com/maktabamarofia

# دکتاب پېژندنه

دکتاب نوم: ------------ پښتو صفوه التفاسیر

تالیف: ------------ الشیخ محمد علي الصابوني رحمه الله

پښتو ژباړه: ------------ مولوي شمس الله کمال زاده

دکمپوزچاري: ------------ مرحوم انجنیر عبدالله گل (ریان) او زیاته برخه مولوي عبد البصیر

خپرونکي اداره: ------------ المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)

دچاپ شمېر: ------------ ۸۰۰ ټوکه

دچاپ کال: ------------ ۱۴۴۰ هجري قمري د محرم الحرام میاشت

دکتاب ترلاسه کولو پته ------------ المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)



ممبر انوار مساجد



المکتبة المعروفیة

(کوئټه) کاسي روډ شالدره کوئټه پاکستان

(لاهور) ہادیہ حلیمہ سنٹر غزنی سٹریٹ اردو بازار لاهور

:03337907394-03353132868

Ph:03159807152-03337907398

E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com

http://www.facebook.com/maktabamarofia

# دژباړونکي خبرې

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

شروع په نامه دالله چې خورامهربان دېررحم والادی

**ربي لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك لك الحمد يا من منحت اهل الطاعة الطاعة ورغبتهم فيها وأوجدت فيهم الاستطاعة واثبتهم عليها , لك الحمد يا من مقاليد الأمور كلها بيديك والمبدأ منك والمصير اليك ، احمدك ياربى حمد الشاكرين فجد علي من خزائن جودك بما تعلقت به الآمال فانك واسع العطاء جزيل النوال .**
**وصل اللهم أتم صلاة واكملها وأشرفها وأفضلها وأعمّها وأشملها على سيدنا ومولينا محمّد سيد الأنبياء والمرسلين وأفضل خلقك أجمعين وعلى آله وصحبه الطيبّين الطاهرين صلاة لايحصيها عدد ولايقطعها مدد وسلم تسليما كثيرا كثيرا إلى يوم الدين آمين يارب العلمين.**
**اما بعد :**

درنو او ګرانو لوستونکو !
دعظیم الشان قرآن ترجمې اوتفسیرونه خو زښته ډیر دی اوهر یو یې پخپل ځای کې دقدراو ستاینې وړدی اولکه چې وایی:

*جهان چون چشم وخد وخال وابروست که هرچیزی که دروی هست نیکوست !*

مګر دغه سپیڅلی دتفسیرکتاب چې اوس ستاسوپه لاس کښې دې دیوستر نومیالي حنفي عالم تألیف دی چې زه یې ژباړل دخپل مسلمان ولس لپاره خدمت ګڼم اوهغوی ته یې وړاندې کول ګټور بولم هغه مهال مې ددې مقدس تفسیر دژباړلو لپاره متې راونغښتې چې یو خواخوږي وړور یې دژباړلو لپاره راته وړاندیز وکړ اوهغه وخت په هیواد کښې بې اټکله ناورین پیښ وو هغه وخت داسې نادودې اوناخوالې وې چې وزګارتیرول یې هم آسانه نه وو څه خو چې یوڅوک دلیکنې اویا ترجمې لپاره چمتوشي.
لکه چې ‍نومیالي لیکوال یې پنځه کاله پرله پسې په لیکلو کښې تیرکړي ماتر هغه لا زیاته موده ددې تفسیر په ژباړلو ولګوله ،هغه بختور خو دبیت الله شریفې په حرم کښې اوسیدو هغه انګړ چې الله ﷻ یې اوسیدونکي ( أَطْعَمَهُم مِّن جُوعٍ وَءَامَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ ) ستایلې مګر مونږ په پرېمانه غمونو او سختو شپو ورځو کښې دهجرت په دیار کښې دقرار اوفرار په پوله ولاړو و.

لنده دا چي دغي ترجمې ته مي له ډيرو ستونزو سره سره اوږه ورکړه شپې اوورځې څه چې کلونه مې دغه په ليکلو تصحيح اوسمولو کې تير کړل چا وچا چې به يې دبشپړيدلو راځخه پوښتل ما به په ځواب کې ورته ويل چې ژوند خوهسې هم تيريږي ښه داده چې ډيره برخه يې په داسې نيک کار کې لګه دتفسير ژباړل ولګول شي او په دې شعر مې دلاساينه وه:

از آن زمان که برین آستان نهادم روي ◦ فراز مسند خورشید تکیه گاه منست

ماپخوا هم دسپين روبو پوهانو لسګونې ليکنې اوګڼ شمير کتابونه ژباړلې وو اودا ځل مې دغه ستر کارته دالله ﷻ په مرسته ملا وتړله تر څوکه الله ته ومنل شو اوزما لپاره يې دآخرت توښه کړې، شيخ الهند محمود الحسن رحمه الله ليکي چې شاه عبد القادر رحمه الله کله چې دقرآنکريم ترجمه موضح القرآن ليکله نو دغه فارسي بيت به يې په لږ تغيير کولو سره داسي وايو:

روز محشر ہر کسی با خویش دارد نامہ ◦ من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن در بغل!

او زما هم دغه توقع ده چې الله ﷻ مې دقرآن کريم له خدمت کونکو وګڼي، الله ﷻ ډير مهربان دی زه يې په خپلو ډيرو هيلو کې بريالی کړی يم، ماچې نسبتا يو څه ښکلی ليک ليکلای شو زياته مينه مې درلوده چې قرآن کريم پخپل لاس اوقلم وليکم خو چې دکمپيوتر دور را دبره شو دلاس ليکل يې تر خپلو وړانګو لاندې کړل خو زه ددې تفسير د ژباړلو په ترڅ کې هغې هيلې ته ورسيدم او قرآن کريم مې تول ددې تفسير ليکلو په وخت کې په لاس وليکل ؛ دزده کړې په وخت کې به ډير څله په غزني نورالمدارس کې دخطابې ميز شاته دريدلم او ليکلې مقاله به مې حاضرېنو ته اوروله دعرفات شريف يوه ورځ مې له راديو څخه دحج دمراسمو پوښښ اوريدو له ځانه سره مې وويل داځومره نيکمرغه کسان دي چې تول اسلامي امت ته له زښته پاکه ځايه او په سپېڅلو شېبو کې خپل پيغام رسوی الهي ما هم دغه مقصد ته ورسوی، الله تعالى هغسې موفق کړم اوپه ۱۳۱۸هجری قمری کې دسعودی عربستان له خوا د افغانستان په ونډه کې د وزارت اعلام مېلمه شوم او دعرفات له سپيځلې غونډې مې خپل پېغام په دريو ژبو: عربی، پښتو او دری باندې عالم اسلام ته ورساوو؛يو وخت چې دمجاهدينو په لاس په هيواد کښې اسلامي نظام پلی کيدو او په بهرنيو هيوادونو کښې يې خپل ديپلو ماتان وګومارل زه هم دکوم کار لپاره دخپل هيواد يوې کونسلګرۍ ته ورغلم او زمونږ دډلې يو تن هلته مشر وو ما په زړه کې هيله څرګنده کړه کاشکي ما هم په ديپلوماتيک ډګر کې ، خپل هيواد او خلکو خدمت کولای هغسې الله تعالى يو وخت زه هم د ديپلو ماتانو په کتار کې ودرولم او په ډېره مينه مې دغه خدمت سرته ورساوو او دوخت دډېرو هوسا اوبډای پاچهانو لکه دشيخ زايد او ملک فهد رحمهما الله په دسترخوان مېلمه شوم ؛ *بمطلب میرسد جویای کام آہستہ آہستہ.*

الله تعالی لره حمد اوثنا ده چي دژباړی سترنعمت یې راباندې لوروليې دي آن تردي چي ددغه تفسير شريف دژباړلو وياړ يي را وباښو اوزه دا وينا د (تحديث بالنعمة ) په توګه کوم دادي چي دلوي الله جل جلاله په مرسته اوس تفسير شريف دبشپړتوب په درشل کښي ده.

موږ له بشري توان سره زيار ايستلی چي ښه له خوند اومعنی ډکه پيمانه ژباړه دلوستونکو مخ ته کيږدو چي له هرډول غلطيو خوندی اوژغورلی وي خو لکه په پيل کی مو چي يادونه وکړه دغه دژوند مقطع دخواشينيو غمونو اولالهانديو توره دوره وه دوه تنه خواخوږي اوخارنوميالی عالمان چی ما ورڅخه دتصحيح هيله لرله يو يې دليری هيوادمسافر اوبل يې چي نږدې څو سيپارې تفسير يې وکوت اوارزښتناک يادد ښتونه يې راکړل د(القابضون علی الجمر) د پلوی په تور بندی شو.

دکمپوز دستونزو به درته څه ووايم ؟ ماکه پخپله دقلم په نوک خوشخط ليکلای دومره به يې ستومانه کړی نه وم دغه څلورم ځل ده چي پروف يې لولم خوبياهم ډيری کتبي غلطی لری ،الله تعالی عالم دی له هغه ﷺ څخه داجر په هيله ټول مشکلات آسان شی.

هو منم چي دتفسير شريف ژباړل ډير ستر او له مسئوليته ډک کار دي ما زيار ايستلي چي له بشري توان سره سم کټ مټ دمؤلف رحمه الله مقصد وژباړم خوځرنګه چي هغه دغه تفسير دعربي لوستونکو لپاره ليکلي اوښکاره خبره ده چي په عربي ګړيدونکي دهري کلمې ترجمې اومعناته اړنه وي نومؤلف هم کله کله لفظي ترجمه نه ليکي او په تفسير بسنه او اکتفاء کوي مګر له ترجمې پرته يوازي په تفسيرپوهيدل بيا پښتنو لوستونکو ته ګران وي څکه نو په داسي وخت کښي ما دکابلي تفسير هغه ترجمه چي شيخ الهند مولانا محمود الحسن رحمه الله کړي اوبيايوي ډلي پښتنوعلماوو ژباړلي اوتر ډيري اندازي په خلکو کښي مشهور او هغوي ته منلی دي تکي په تکي په دوو ليندکيو کښي ليکلي او په کومو ځايونو کښي چي دڅه بدلون اړتياوه هغه مې تر سره کړی دمثال په توګه:

کله چي کابلي تفسير ددي آيت ﴿ اَعْلَمُوٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ وَّزِيْنَةٌ وَّتَفَاخُرٌۢ ﴾ (الحديد) په ترجمه کښي ددنيامعنی داسي ليکلي (ژوندون لږ خسيس ددنيا ) موږ هغه داختصارپه توګه ژوند ددنيا ليکلي.

دارنګه کله کله دکابلي تفسير او صفوة التفاسيردترجمو په مينځ کښي څه توپير وي موږ دواړه رايي را اخلو لکه ددي آيت ﴿ وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ اَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهٖ فَحَاسَبْنٰهَا حِسَابًا شَدِيْدًا وَّعَذَّبْنٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا ۝٨ ﴾ (الطلاق) کابلي تفسيرليکي: او ډير وو له کليو څخه چي ګرزيدلي سرکشي يي کړي وه له حکمه درب خپل او (له امره حکمه) درسولانو ددغه (الله)څخه نو حساب به وکړو موږ له هغوي سره حساب سخت (په قيامت کښي ) اوصفوة التفاسير ليکي: حساب مو وکړ او جزا مو ورکړه هغوي ته ددوي په طغيان او عصيان باندي سخته جزا چي دردناک عذاب ، لوږه ، کاختي اوهلاکت مو وروليدل لومړني تفسير دمستقبل په بڼه او دوهم بيا دماضي په توګه ليکلي موږ دواړه يي را اخيستي ښايي چي محترم لوستونکي يي تيروتنه ونه ګڼي.

هو کي کله کله د حرفي ترجمي لیکل خورا ګران وي لکه د دې آیت شریف ﴿ وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ (الجمعة) تر سره له دې چې زموږ په پوهه د کابلي تفسیر ترجمه له تعقید او تکلف څخه خوندي نه ده بیا موهم لمړی هغه تکي په تکي را اخیستې او وروسته مو د صفوة التفاسیر اجمالي تفسیر زیاره وروزیاته کړې چې لوستونکي یې له بشپړ څرګنوالي څخه ګټه واخلي.

همدا رنګه کله کله د کابلي تفسیر په ژباړه کښې تفسیري کلماتې د قوسینو په مینځ کښې راغې او له تکلف څخه ژغورلې نه وې نو موږ په هغو کښې هم د لوستونکو د آسانتیا لپاره اړین تغییر راوړی لکه داچې ﴿ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ ﴾ (الملک) هغه لیکي: او درکړي ګرځولي یې دي تاسي ته غوږونه (د پاره د سماعت او ریدلو د حق) او موږ دغه فیما بین القوسین داسي ژباړلې (او درکړي یې دي تاسي ته غوږونه د حق اوریدلو لپاره) همداسي دستر ګو او زړونو په اړوند مو لنډه ژباړه راوړې ده زه تر خپله وسه زیار باسم چې خبرې مې په تول او پیمانه وي څکه نو د یرې لږ خبرې کوم او داهیله لرم چې که چیرې تاسو په دغه تفسیر کښې کومه تېروتنه او تقصیر وموند هغه به د هغه کرم له مخې چې تاسو یې لرئ را وبښئ. او په دې التجا دغه برید لیک په دې وینا بشپړ دم چې:

الهی قرآن کن که انجام کار تو خوشنود باشی و ما رستگار

**مولوي شمس الله کمال زاده**

۱۴۳۵ هـ ق ذیقعدة الحرام

صفوة التفاسیر د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. ددعا محتاج احمدي!

واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

## دمؤلف سريزه

**الحمد لله الذي أنارقلوب عباده المتقين بنور كتابه المبين ،وجعل القرآن شفاء لما في الصدور وهدى ورحمة للمؤمنين ، والصلوة والسلام علي خاتم الأنبياء وأشرف المرسلين ، سيدنا محمد النبي العربي الأمين ، الذي فتح الله به أعينا عميا، وأذانا صما، و قلوبا غلفا، وأخرج به الناس من الظلمات الى النور ، صلاة وسلاما دائمين الى يوم البعث والنشور ، وعلى آله الطيبين الأطهار واصحابه الهادين الأبرار، ومن تبعهم باحسان الى يوم الدين وبعد:**

قرآن كريم دعلومو اومعارفوڅپاند سمندر دي څوک چي دهغه دملغلروپه لټه کښې وي دې ته اړدي چي په تل کښي يي غوټي ووهي،همدغه قرآن عظيم دي چي دبلاغت دډگر اتلان او دعلم اوپوهي قهرمانانو ته ورښيې چي دغه دالله ﷻ معجز کتاب په امي پيغمبر نازل شوي دهغه ﷺ دربښتنولی کره شاهد او ددي څرگندوي دي چه دحکيم اوعليم ذات له لوري نازل شوي دي ﴿ وَإِنَّهُۥ لَتَنزِيلُ رَبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴿١٩٢﴾ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ ﴿١٩٣﴾ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ ﴿١٩٤﴾ بِلِسَانٍ عَرَبِىٍّ مُّبِينٍ ﴿١٩٥﴾ ﴾ الشعراء: ١٩٢ ـ ١٩٥

سره له دي چي ډيرو پوهانوورباندي ليکني کړي اوپه اسلامي کتابتون کښي په دي اړه خورا په زړه پوري دتفسير کتابونه شته خو قرآنکريم داسي له عجائباتو ډک اوپه ملغرو اوجواهرو مشتمل کتاب دي چي له سره پاي اوانتها نلري او وخت په وخت يي دپوهانو دتحقيق په رڼا کښي نندارہ کوو داسي ملغرې دي چي عقلونه هينبوي او احساسات راوينبوي دهغه په آيتونو کښې دالهي نور ځلانده ورانگي ، سپېڅلي قدسي فيوضات او نوراني وړمې دي هغه مقدس کتاب چي دانسانيت لپاره له بد مرغي اوشقاوت څخه دخلاصون ضمانت کوي.

هوکې هر علم بشپړ شوي او پاي ته رسيدلي خو يوازي دتفسير علم دي چي تل ترتله بهانده سيند اودملغلرو لاس ته راوړونکې يي ژور ډوبيدلو ته اړدي ترڅوهغه ومومي ، رازونه يي وسپړي اوښکلاوي يي رابرسيره کړي ځکه نو تل ترتله علماي کرام دهغه په څنډو درېږي او له خوږو صافو اوبو څخه يي خپله تنده ماتوي.

څوک کولاي شي چي درب العزت په کلام باندي په واقعي توگه وپوهيږي؟او ټول رازونه ،گردې باريکي اواعجاز يي وپيژني او ياهم داسي وانگيرې چي گواکي په بشپړه توگه يي په هغو برلاسي موندلي دي؟

بيشکه داهمغه معجز کتاب دي چي هميشه انسانانو ته دهغه علوم ، معارف ، اسرار،او حکمتونه وخت په وخت څرگنديږي څوبي ايمان غښتلي اويقين يي پوخ کړي دغه دعربي پيغمبر خالده اوتل ترتله معجزه ده او دحکيم حميد ذات له لوريورباندي پيرزو شوي ده.

څرنگه چي مسلمان دخپل ژوندانه داړتياوو لپاره کسب اوکارته اړدي نوهغه ته دومره وخت نه پيداکيږي چي داسلافو رضوان الله عليهم هغو اوږدو اوسترو تفسيرونه ته رجوع وکړي کوم چي

هغوي دکتاب الله دچوپړلپاره ليکلي ترڅو چي دقرآنکريم دآيتونو تفصيل اوبيان دبلاغت څرګندونه داعجاز رانښکون او همدا راز دتشريع ، تهذيب ، احکامو او اخلاقو دروزني توجيهات اولارښوني پکښي ومومي نو علماوو ته لازمه ده چي ددغو مفاهيمو دآسانولو اودخلکو وربانديي پوهولو لپاره په روانو اسلوبو، ښايسته اوروښانه بيان چي نه پکښي زياتوالي وي اونه هم کم والي، نه پکښي تعقيد وي اونه هم تکلف، زيار وباسي ترڅو دقرآن عظيم الشان داعجازاوبيان ښکلا لکه څرنګه چي دعصر اوزمان غوښتنه او ايجاب دي را وسپړي او دزدکړې تږيو مسلمانانو چي دقرآنکريم علوم اومعارف لتږي تنده ورماته کړي.

ما دغسي تفسير لکه چې ورته اړتيا وه ونه موند اوخلکو يي دپيداکوو تلوسه درلوده ؛ ډيروخت به يي دهغه په هکله پوښتني کولي ځکه نو ماپخپله ددغه کار لپاره ليځي راونغښتي سره له دي چي پريمانه مشکلات او ډيري ستوماني پکښي وي-تاسي پوهيږئ- په اوسني زمانه کښي دومره زيات وخت چاته نه پيدا کيږي خو ما دالله ﷻ په توکل په داسي حال کښي چي ددغه کار دبشپړيدا اوپه دي کښي دبرياليتوب سوالونه مي دهغه ﷻ په دربار کښي کول تر څو توفيق راپه برخه کړي اولکه څرنګه چي دالله له کتاب سره ړ اولايق وي دغسي تفسير راغونډ کړم چي مسلمانانو ته دالله دکتاب فهمول آسانه اوبيان يي روڼ روښانه کړي هم داسي زما دغه عمل يوازي دخپلي رضا لپاره وګرزوي اوپه دي لاره کښي مي مرستندوي شي.

ما دغه خپل کتاب( صفوة التفاسير ) ونو ماوو ځکه دغه دسترو اومفصلو تفسيرونو غور چاڼ دي په دي کښي له وضاحت بيان اوترتيب سره سره اختصار اولنډون هم خوندي شوي دي او زه تږول هيله هيله يم چي ددي تفسير نوم اوپخپله تفسير سره يو له بله مطابق وي ترڅو ورڅخه اسلامي امت ګټه پورته کړي او ورته دسمي سيخي لاري لارښود شي.

په دي تفسير کښي لاندي ټکي په نظر کښي نيول شوي دي !

لومړي: دسورت په وړاندي ، دسورت د اساسي مقصدونو خلاصه اولنډيز.

دوهم: دنزول سبب ، دهغه سبب څرګندول چي دهغه له مخي آيتونه نازل شوي دي.

دريم: مناسبت ، دتيرشويو اوراتلونکوآيتونوترون.

څلورم: لغت ، دلغت دعلماوو درايي په شاهدي راوړلو داشتقاق بيان.

پنځم: تفسيرشريف.

شپږم: بلاغت ،دبياني انځورونو اودبلاغت دنکاتو سپړل.

اووم: فوائد اوګټي، هغه ګټي او فايدي بيانول کومې چي له آيت څخه راوزي او يا ورسره تعلق او تړاو لري

## دتفسیر مزایاوي

۱: دا دمشهورو معتمدو مفسرینو داقوالو لنډیز دي

۲: منقول اومعقول دپخوانیو او اوسنیو علماوو ویناوي یوځاي کوي

۳: ترټولو درانه اوغوره اقوال راغونډوي

۴: سره له دي چي آسان او روان عبارت لري په دقت او غورسره چاڼ شوي دي.

ددغه تفسیر په لیکلو کښي مي پنځه کاله پر له پسي شپي او ورځي یو له بله تړلي او ترهغو به مي یوه کلمه هم نه لیکله څو به مي دمفسرین کراموویناوي په معتبرو تفسیرونو کښي نه وي لوستلي وروسته به مي په دقیق ډول هغه غوره اوصحیح اقوال راغونډول.
زه دالله ﷻ څخه دزړه له کومي شکر ګذار یم چي دغه کار یي راته آسانه کړ ، مادخپل دغه کار په اوږدو کښي داسي ګڼله لکه چي وخت راته نغښتل کیږي اودغه ټول دبیت الله شریفي دګاونډیتوب اوجوار برکتونه وو کوم چي الله تبارک وتعالی په مالوروليږ وواوزه په ۱۳۸۱هجري قمري کال کښي په مکه مکرمه کښي دشرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ ګومارل شوي وم.
ما دغه کار یوازي دالله ﷻ درضاء لپاره ترسره کړي او لاس په دعایم چي زما مرستندوي شي او دخپلي خوښي موجب یي وګرزوي او دآخرت دورځي لپاره یي زما توښه کړي هیله لرم څوک چي داتفسیر لولي اوتري ګټه اخلي په نیکه دعامي یادکړي.
وصلی الله علی سیدنا محمد وآله وصحبه وسلم تسلیما کثیرا.

مکه مکرمه دذي الحجې پیل ۱۳۹۹ هجري قمري کال.

**محمد علي الصابوني**

په مکه مکرمه کښي دپاچا عبد العزیز پوهنتون دشرعیاتو او اسلامي علومو دپوهنځي استاذ

والله ولي التوفیق

# سورة الفاتحة

## دفاتحې سورت مکي او اووه آيتونه لري

## أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَٰنِ الرَّجِيمِ

پناه غواړم په الله ﷻ او اعتصام کوم په الله ﷻ له رټل شوي شيطان څخه چې په دين يا دنيا کی راته ضرر ورسوي او يا مې د مأمور به فعل په وړاندې خنډ شي، او همدا راز په سميع او عليم خالق پناه غواړم د شيطان له همز او لمز څخه او دهغه له ډول ډول وسوسو څخه خکه پرته له الله ﷻ څخه شيطان له چا څخه څوک نشي ليری کولای، روايت دی چې رسول الله به کله چې دشپې پاڅيدو نو لمونځ به يې په تکبير پيل کړو او بيا به يې ويل:
أَعُوذُ بِاللهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ مِنْ هَمْزِهِ وَنَفْخِهِ وَنَفْثِهِ .(١)

پناه غواړم په الله ﷻ السميع العليم ذات د رټل شوي شيطان له (همزه)،(نفخ)،(نفث) يعني له کبره، سحره، او وسوسي څخه.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

له هر شي څخه مخکې دالله ﷻ په نامه پيل کوم له هغه څخه په خپلو ټولو کارونو کی مرسته غواړم څکه هغه معبود رب دی او دفضل اوجودخاوند دی ډير مهربانه دی داحسان څښتن دی، دهغه رحمت هرچا ته رسيدلی.

تنبيه: ﴿بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ دفاتحې سورت او همدارنګه ټول قرآني سورتو نه دتوبې دسورت څخه پرته په دې آيت شريف پيل شوی دی، تر څو مسلمانانو ته لارښونه وکړی چې خپل اعمال او اقوال درحمن او رحيم الله په نامه پيل کړي چې دهغه مرسته او توفيق يې په برخه شي او دبت پرستانو مخالفت وکړی هغوی چې خپل عملونه دخپلو باطلو خدايانو په نامه پيل کوی، اووايي دلات په نامه دعزی په نامه دهبل په نامه.

طبری وايي چې الله ﷻ خپل استازي حضرت محمد ﷺ ته دخپلو اسماء الحسنی دياد ولو تعليم ورکړو او دايي دټولو خلګو لپاره يو سنت وګرزاوو چې بيا به يې تل تر تله پيروي کوی (٢) نو کله چې دسورت په پيل کی وايي ﴿ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴾ معنی يې داده چې لولم دالله ﷻ په نامه همدارنګه په نورو ټولو کړو وړو کی يعنی پيل کوم دالله په نامه چې ډير مهربانه او زيات رحم لرونکی دی.

### دسورت په وړاندې

دغه مبارک سورت مکي او دعلماؤ په اتفاق اووه آيتونه دی، او فاتحه يې په دې بولی چې دالله ﷻ عزتمن کتاب ورباندې پيل شوی دی او دا په ترتيب کی دقرآن کريم پيل ده نه په نزول کی، دا سورت دهغه له لنډو والی

---

(١) اخرجه اصحاب السنن.
(٢) جامع البيان للطبري.

او ایجاز سره سره دقرآنکریم معناګانې رانغښتې او په اجمالي توګه په اساسي مقاصدو مشتمل دي ځکه هغه ددین اصول او فروع را اخلی عقیده او عبادت بیانوی، تشریع او دآخرت دورځې په راتلو باور او عقیده ښیي دالله ﷻ په حسنی صفاتو ایمان او یوازې دالله ﷻ عبادت او له هغه څخه مرسته او دعا غوښتل له هغه څخه دهدایت او لار ښوونې غوښتنه هغه چې حق دین او سمې لارې ته دایمان په تثبیت او دنیکانو خلکو په لاره تلل دي دهغو کسانو له لارې څخه ژغورل کوم چې وریاندې غضب کړل شوی یا ګمراهان دی ددې ټولو په غوښتلو کې الله ﷻ ته توجه کول بیانوی او پدې کې دپخوانیو امتو نو له کیسو څخه اخبار دی، دنیکمرغه او بدمرغه کسانو دهستوګنې ځای معلوموي او دالله ﷻ په امراو نهی باندې پابندي ښیي او پکې نور ډېر اغراض او مقاصد خوندي دی او دا نورو سورتونو لره لکه مور غوندي ده ځکه یې (ام الکتاب) بولي چې ټول اساسي مقصدونه پکې راغونډ شوی دی.

## دفاتحة الكتاب بهترې:

الف. امام احمد په خپل مسند کې روایت کړی چې ابی بن کعب رسول الله ﷺ ته أم القرآن ولوست نو رسول الله ﷺ وفرمایل: والذي نفسي بيده ما أنزل في التورة ولا في الانجيل ولا في الزبور ولا في الفرقان مثلها هی السبع المثانی والقرآن العظيم الذي أوتيته، په دې حدیث شریف کې دالله ﷻ هغه قول ته اشاره راغله چې فرمایي: ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْءَانَ الْعَظِيمَ ﴾ [الحجر ۸۷].

ب: په صحيح البخاري کې راځي چې رسول الله ﷺ ابي سعيد بن المعلى ته وويل: لأعلمنك سورة هي اعظم السور في القرآن، الحمد لله رب العلمين، هي السبع المثاني والقرآن العظيم الذي أوتيته.

نومونه يې: ددې سورت نومونه: الفاتحة، أم الكتاب، السبع المثاني، الشافية، الوافية، الكافية، الاساس او الحمد دی، علامه قرطبي رحمه الله ددې سورت نومونه شمیرلی وایي چې دوولس نومونه لري.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝١ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ۝٢ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ ۝٣ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ۝٤ اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ ۝٥ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ ۝٦ ﴾

## لغتونه:

﴿ الْحَمْدُ ﴾ دتعظیم په توګه په نیکیو باندې ثنا ویلو ته حمد وايي چې دا تر شکر عام دی او دذم نقیض ته ویل کیږي ځکه شکر دنعمت په مقابل کې وي پرته له حمد نه. ﴿ لِلَّهِ ﴾ دپروردګار مقدس ذات اسم علم ته الله وايي چې هیڅوک ورسره پکې شرکت او ګډون نلري قرطبي رحمه الله وايي چې دالله ﷻ دغه اسم تر ټولو نومونو لوی او جامع دی چې دالله ﷻ ټول صفتونه پکې دی هغه چې منعوت دربوبیت په نعتونو او په حقیقي وجود منفرد دی لا اله الا هو سبحانه. ﴿ رَبِّ ﴾ رب له تربیت څخه اخیستل شوی او هغه دنورو دامورو اصلاح او

رعایت کولو ته وایي. هروي وایي: رب هغه چاته چې دیوشی اصلاح او تمام کوی ویل کیږي ، او له دې څخه ربانیون هم دی چې دوی به د کتاب پاملرنه کوله (١)

او رب په څو معنا گانو راځي چې هغه مالک ، مصلح ، معبود ، سید او مطاع ته ویل کیږي ﴿ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ عالم اسم جنس دي چې له خپل لفظ څخه واحد نلری او لکه رهط غوندی دي او دا انسانانو او پیریانانو دواړو ته شامل دي آن تر دې چې ملائکه او شیاطین هم پکې داخل دی دغه وینا فراء هم کړی ده له علامې څخه مشتق ده څکه عالم هم دخالق په وجود باندې علامه ده ﴿ ٱلرَّحْمَٰنِ ﴾ رحمان دستر نعمت خاوند ته وایي څکه فعلان دمبالغې صیغه چې دشی پر لوی والی او ډیر والي دلالت کوي څو دوام ورسره لازم نه دي او لکه سکران او غضبان غوندي گڼل کیږي. ﴿ ٱلرَّحِيمِ ﴾ رحیم ددائم الرحمة په معنی دی څکه دفعیل صیغه په دائمي صفاتو کی استعمالیږي لکه: کریم او ظریف نو لکه چې فرمایلي یې دی دلوی رحمت خاوند او تل تر تله داحسان څښتن دي(٢) خطابي وایي رحمٰن دشامل رحمت لرونکی ذات نوم دی هغه چې رحمت یې دټولو خلکو په ارزاقو او مصالحو خپور ، مسلمان او کافر دواړو ته رسیدلی دی او رحیم تر مومنانو پوری خانگړی دی لکه چې الله ﷻ فرمایي:

﴿ وَكَانَ بِٱلْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا ﴾ [ الاحزاب: ٤٣]. ﴿ ٱلدِّينِ ﴾ جزاته وایي لکه چې په حدیث شریف کی راځي (کماتدین تدان) یعني لکه څرنګه چې ستا عمل وی همغسې جزا به مومې زمخشري وایي چې (دین) دعبادت دخشوع او خضوع نهایي مرحلې ته وایي څکه نو له الله ﷻ څخه پرته دبل چا لپاره نه استعمالیږي هغه ذات چې دخورا ستر و نعمتونو مالک دی ، او هرڅومره تذلل او خضوع دهغه په وړاندی ښایي .(٣) ﴿ ٱلصِّرَٰطَ ﴾ لاري ته وایي په اصل کی له استراط څخه اخیستل شوې چې دتیرولو او غوړپ کولو په معنی ده او لکه چې لاره هم لاروی تر ستوني تیروي. ﴿ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴾ سمه سیخه چې پکې کږ والی نه وی .(آمین) یعنی دعا مو ومنه او دا کلمه دعلماوو په اتفاق له قرآن کریم څخه نه ده شمیرل شوې.

## تفسیر :

الله ﷻ موږ ته لارښوونه کوي چې څه دول یې حمد او ثنا ووایو او څرنګه یې پاکي بیان کړو ویې فرمایل : یعنی اې زما بندگانو کله چې زما شکر او ثنا وایاست نو ووایاست ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ زما د احسان شکر پر ځای کړی زه دعظمت او لویي خاوند الله یم زه دانسانانو او پیریانو پیدا کوونکی یم زه دآسمانونو او مځکو خاوند یم څکه نو حمد او ثنا یوازې درب العلمین سره ښایي نور معبودان ددې لائق نه دی. ﴿ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ هغه مهربان ذات چې رحمت یې هر څه ته رسیدلی دی او فضل یې په ټولو خلکو غوړیدلی چې هغوی یې پیدا کړی رزق او روزي یې ورکړې ددواړو دارینو نیکمرغي ته یې ورته لاره ښودلې ده دهغه احسان تل ترتله

---

(١) قرطبي ١/١٣٣

(٢ ) كشف القرآن تفسير ابن جماعة.

(٣)الكشاف ١/١١

او رحمت يې ستر دي ﴿ مَٰلِكِ يَوۡمِ ٱلدِّينِ ﴾ يعنى الله ﷻ دجزاء دورځي خاوندى دى او په هغې ورځ کي د داسي تصرف څښتن دى لکه چې څوک يې پخپل ملک کي کوي لکه چې الله ﷻ فرمايي ﴿ يَوۡمَ لَا تَمۡلِكُ نَفۡسٞ لِّنَفۡسٖ شَيۡـٔٗاۖ وَٱلۡأَمۡرُ يَوۡمَئِذٖ لِّلَّهِ ﴾ [الانفطار: ۱۹]. ﴿ إِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَإِيَّاكَ نَسۡتَعِينُ ﴾ يعني خاص تا لره اې الله موږ عبادت کوو او خاص له تا څخه موږ مرسته او مدد غواړو له تا پرته دبل هيچا عبادت نه کوو يوازي تالره موږ سرټيټوو عجز او زاري کوو او له تا څخه ستا دطاعت او عبادت لپاره ستا دخوښي او رضا په خاطر مرسته او معاونت غواړو څکه ته دهر ډول اجلا ل او تعظيم مستحق يې له تا پرته هيڅوک زموږ مرسته نشي کولاى ﴿ ٱهۡدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلۡمُسۡتَقِيمَ ﴾ راوښيه موږ ته سمه لار په اسلام مو ثابت ولره هغه چې تا پيغمبران او انبياء عليهم السلام ورباندى رالیږلى او خاتم الانبياء عليه السلام دى دټولو وروسته را استولى او موږ له هغو لارويانو وګرځوه کوم چې مقرّبين بندګان دى ﴿ صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ ﴾ لار دهغو کسانو چې تا وربانديى نعمت کړى لکه انبياء، صديقين شهداء او صالحين وحسن أولئک رفيقا ﴿ غَيۡرِ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴾ نه لاره دهغه چا چې په دوى غضب شوى او نه لاره دګمراهانو يعنى اې الله موږ ستا له دښمنانو مه ګرزوه هغوي چې له سمى لارى ګرځيدلى، او کږې لارې يې نيولي وي کوم چې مغضوب يهودان او يا ګمراه نصرانيان دى دوى ستا دسپيڅلي شريعت څخه لاره ورکه کړې او دتل تر تله غضب او لعنت وړ او مستحق ګرځيدلى دى. آمين.

## بلاغت:

﴿ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ﴾ دا جمله لفظا خبريه او په معنى کى انشائيه ده معنى يې داسي کيږى چې ووايا ست الحمد لله او دا دټول حمد قصر دالله ﷻ لپاره افاده کوي لکه چې ووايي: (الكرم للعرب) ﴿ إِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَإِيَّاكَ نَسۡتَعِينُ ﴾ پدې جمله کى له غيبت څخه خطاب ته التفات دى که په اصلي ډول راغلي واي نو به (اياه نستعين) واى همدارنګه دمفعول ړومبي والي دقصر افاده کوې چې معنى يې راځي له تا پرته دبل چا عبادت نه کوو لکه پدې قول دالله تعالى کي ﴿ وَإِيَّٰيَ فَٱرۡهَبُونِ ﴾ [البقرة: ۴۰] په بحر محيط کى وايي چې پدې سورت کى دفصاحت او بلاغت ډيري بيلګي شته لکه:

- حسن افتتاح او دمطلع براعت.
- په ثنا کى مبالغه کوم چې الف ولام استغراقي يې افاده کوي.
- دخطاب رنګين والي څکه صيغه دخبر او معنايي امرده چې (قولوا الحمد لله).
- اختصاص پدې قول کى چې (لله).
- حذف لکه حذف دصراط له دې قول دالله ﷻ څخه ﴿ غَيۡرِ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴾ تقدير يې داسي دى (غَيرِ صِرَاطَ المَغضُوبِ عَلَيهِمْ وَغَير صِرَاطَ الضَّالِّين).

- تقدیم او تاخیر د ﴿ إِيَّاكَ نَعْبُدُ ﴾ په کلمه کې.
- له ابهام څخه وروسته تصریح چې پدې آیت کې راغلې ﴿ ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴾ بیا یې تفسیر وفرمایه:

﴿ صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ﴾.

- التفات پدې کلمه کې چې ﴿ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ﴾
- طلب د شي چې مراد ورڅخه دوام او استمرار وي لکه ﴿ ٱهْدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴾ چې معنا یې ده یعني موږ ورباندې ثابت قدم ولرې.
- متوازي سجع لکه په ﴿ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ، ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴾ او ﴿ نَسْتَعِينُ ، ٱلضَّآلِّينَ ﴾ کې.

## ګټې او فائدې:

**لومړۍ فائده:** فرق د (الله) او (اله) ترمنځ چې لومړی د الله ﷻ د مقدس ذات اسم علم او معنایې ده معبود برحق او د دوهم معنا مطلقا معبود دی هغه که برحق وي او که ناحق ځکه یې نو په الله ﷻ او بل چا هم اطلاق کیدلای شي.

**دوهمه فائده:** د ﴿ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ﴾ په کلمه کې د جمعې صیغې استعمال شوې او داسې نه دی ویل شوی چې (ایاک اعبد و ایاک استعین) دا د بنده پر قصور او کوتاهي اعتراف ښیي چې څرنګه په یوازې توګه د ملک الملوک په دربار کې دریږي چې د اله داسې حقیر او ذلیل بنده سره نه ښایي چې یوازې یې مناجات ته ودریږي بلکه زه له نورو موحدینو مؤمنینو سره یو ځای ستا مناجات کوم او د دوی په ډله کې زما دعا هم ومنه، موږ ټول ستا عبادت کوو او له تا څخه مرسته غواړو.

**دریمه فائده:** د نعمت نسبت الله ﷻ ته کوم چې پدې کلمه کې راغلې ﴿ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ﴾ خو غضب او اضلال یې هغه ته منسوب نه کړل چې ویلې یې وای (غضبت علیهم) او (اضللتهم) ځکه دا بندګانو ته تعلیم او ښوونه ده چې له الله ﷻ سره ادب غوره کړي د شر نسبت داب له مخې الله ﷻ ته نه کیږي که څه هم په تقدیر کې د هغه له لوري څخه وي (الخیر کله بیدیک والشر لاینسب الیک) (۱)

**پایله:** د هغو قدسي او ښکلیو اسرارو په هکله کوم چې په فاتحة الکتاب کې شته د اسلام شهید شیخ حسن البناء پخپله ارزښتناکه رساله کې چې (مقدمة في التفسیر) نومیږي داسې لیکلي دي:

بیشکه خوږ کوک چې د فاتحې شریفې په معنا ګانو کې تدبر او سوچ کوي نو به یې کې خورا ښکلي معناګانې او عجیبه لوړ تناسب ووینې چې زړه به یې روښانه او عقل به یې خان ته راکاږي، ځکه چې هغه به لومړی د لوی خدای ﷻ په نامه د تبرک لپاره پیل کوي هغه الله ﷻ چې په شامل رحمت باندې موصوف دی او د رحمت اثار یې په هر شي کې نوي نوي همیشه څرګندیږي کله چې یې د دغه معنا په زړه کې ځای ونیسي نو بیا د همدې رحیم او

---

(۱) البحر المحیط ۳۶/۱.

رحمٰن پروردګار په حمد او ثنا یا دونه کوی چې دهغه دنعمتونو احسانات او دهغه ښکاره فضائل دټول عالم په روزنه او پالنه کی ځرګند دی بیا به خپل بصیرت پدغه بې ګودره محیط کی وخغلوي او وریاد به شي چې دغه ډیر نعمتونه او پریمانه روزنه او پالنه نه دامیدونو اوهیلو په بدل کی ده او نه هم دویري زیږنده بلکه یوازي دفضل او احسان له کبله ده نو ددوهم ځل لپاره به یې ژبه په( الرحمن الرحیم ) وګرزي او ددې ستر معبود له کمال سره داشته چې رحمن صفت یې له عدل سره یو ځای شی او له فضل نه وروسته حساب کتاب هم ور په یاد شي چې دا ستر واکمن سره له بشپړ او تل ترتله رحمته بیا له بندګانو سره دجزا په ورځ حساب هم کوی ﴿ يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْـًٔا ۖ وَٱلْأَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ ﴾ [الانفطار: ۱۹] نو د الله ﷻ روزنه او پالنه دهغه درحمت دامید او له حساب او عدالت څخه په ویری باندی ولاړه ده ﴿ مَـٰلِكِ يَوْمِ ٱلدِّينِ ﴾ هغه چې دجزا دروځي خاوند دی او چې داسي ده نو بنده مکلف دی چې دخلاصون وسائل او دخیر لاره ولټوي هغه پدې هکله تر ټولو زیات هغه چاته اړدی چې سمې لاری ته یې لار ښوونه وکړی او ددې لپاره تر خپل خالق او پیدا کونکی ذات بل څوک بهتر نشته نو هغه ته دې پناه ورورې او وربانډی باور دی وکړی داسي دی ووایې ﴿ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ﴾ او دهغه له فضله دی دسمې لاری دهدایت غوښتنه وکړی هغه سمه لار چې دهغو کسانو ده چې الله ﷻ وربانډی نعمت کړی چې حق او دحق پلویان یې ورپیژندلی نه لاره دهغو کسانو چې الله ﷻ غضب وربانډی کړی او څه چې یې ورکړی بیرته یې ځني اخیستی او له لاری میندلو وروسته یې بیا لاره ورکه کړې ده ، هغه لالهاندګمرهان چې دحق لاره یې پرېښې وی او یا خو غواړی چې حق ته ورسیږي خو توفیق یې نه مومي .( آمین ) هغه کلمه چې دجمال او حسن نهایته ښکلي مقطع ده او له فاتحة الکتاب او دعا څخه پرته به بل کوم شي وی چې له دغي مقطع سره ښایي ؟ ایا تر دې ښه باریک مناسبت او تر دې مرغلین او ټینګ تړون چې ددې مبارک سورت په آیتونو کی یې لولی بل چېرته مولیدلی ؟ کله چې ددې ښکلي سمسور بڼ ننداره کوی هغه قدسي حدیث په یاد کي لره ! کوم چې رسول الله ﷺ فرمایي : (قسمت الصلاة بيني وبين عبدي نصفين ولعبدي ما سأل) لمونځ مي دځان او بنده تر منځ په دووبرخو ویشلی او بنده لره هغه څه ورکوم چې غواړي یې دحدیث ترپایه.. تل ترتله دغه تدبیر او انعام غنیمت وګڼه او زیار وباسه چې په لمانځه او له لمانځه دباندی یې په آرامه او کراره له عجز او نیاز سره جوخت ولولې په هر آیت باندی درېږه ! آیتونوته دتجوید او ښکلي آواز حق ورکوه تکلف او تطریب مه کوه له معنا ګانو څخه په یوازي الفاظو مه مشغولیږه ځکه داتدبر بیا له پوهیدلو سره مرسته کوي ، داوښکو چېنې رابهوې او زړه ته تر هغه تلاوت چې په تدبر او خشوع وی زیات ګټور بل شی نشته. (۱)

دفاتحة الکتاب تفسیر بشپړ شو.

***

(۱) مقدمة في التفسیر ص ۵۹

# دبقرې سورت په اتفاق سره مدني او له لومړنيو نازل شوو سورتونو څخه دی دوه سوه اوه اتيا آيتونه لري.

## دسورت په وړاندي:

دالبقرة سورت په مطلق ډول دقرآن کريم له اوږدو سورتونو څخه دی ،او څرنگه چې په مدينه منوره کی نازل شوی نو لکه نور مدني سورتونه تشريعي قوانين او هغه څه چې مسلمانان ورته په ټولنيز ژوند انه کی اړدی خيري دغه سورت په ډيرو تشريعي احکامو لکه ،عقائد ، عبادات ، معاملات ، اخلاق دنکاح ،طلاق او عدت په چارو مشتمل دی.

*په لمړي پيل کي دمؤمنانو کافرانو او منافقينو صفات يا دوي چې دايمان کفر او نفاق حقيقت څرگند کړي تر څو دنيکمرغه اوبدمرغه خلکوپرتله وشی بيا دبشريت دلمړی پيدا ينبت خبره چې آدم عليه السلام اودهغه هيښوونکی عجيبه پيښي دي را اخلی کوم چې دالله تعالی لخوا په هغه عزت او تکريم دلالت کوی چې بشرته يې ورکړي دي

* بيا داهل کتابو اوپه خانگړی توگه يهودو چې دمسلمانانو سره په مدينه منوره کی نږدی اوسيدل حال بيانوی اومسلمانان دهغوی په دوکوا وچلونو خبروی دهغوی غدر اوخيانت په گوته کوی اودوعدواوژمنو ماتول يی ښيي اونوري ډيرهغه تورونه چې دغه مفسدين ورباندی تورن دی راسپړی چې ددوی سترخطرونه اوضررونه څرگندشی اوتريوه دريمه زيات دسورت آيتونه ددوی په شان کی دی چې له دې آيت څخه پيليږي ﴿ يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَأَوۡفُواْ بِعَهۡدِيٓ أُوفِ بِعَهۡدِكُمۡ وَإِيَّٰيَ فَٱرۡهَبُونِ ﴾ بيا تر دې آيت شريفه پوري ﴿ وَإِذِ ٱبۡتَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٖ فَأَتَمَّهُنَّۖ ﴾ [البقرة: ۴۰- ۱۲۴].

* په نورسورت کی دشرعی حکمونو بيان دی څکه داسلامي دولت دلومړي ځل لپاره بنسټ اينبودشوی وو اوترهرڅه يوالهی منهج اوآسمانی تشريع ته اړوو هغه چې دوی يې په رڼاکی خپل ژوند دعباداتو اومعاملاتو په برخه کی په مخ بوزی نودا لامل دي چې نورتول سورت تشريعی لوری ته خانگړی شوی اوپه لنډه توگه لکه دروژی تفصيلی حکمونه ،دحج اوعمری احکام ،د فی سبيل الله جهاد احکام ،دکورنۍ په هکله اوهغه چې دنکاح ، طلاق،رضاع ،عدت .دمشرکوښځوحرمت اودحيض په حالت کی له ښځوڅخه گوښه توب اوداسي نورچې په کورنۍ پوری اړوند مسائل دی را اخلي څکه کورنۍ دستري ټولني لومړنی زړي دی.

* بيادسوداوربا دجرم اوجنايت خبره را اوچتوي هغه چې دټولني بنسټ ورانوي اودملاتيريې ماتوي نوڅکه دسودخورونکو سره دالله تعالی اودهغه داستازي له خوا دجنگ اعلان په ډاگه کوي چې ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَذَرُواْ مَا بَقِيَ مِنَ ٱلرِّبَوٰٓاْ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴿٢٧٨﴾ فَإِن لَّمۡ تَفۡعَلُواْ فَأۡذَنُواْ بِحَرۡبٖ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦۖ وَإِن تُبۡتُمۡ فَلَكُمۡ رُءُوسُ أَمۡوَٰلِكُمۡ لَا تَظۡلِمُونَ وَلَا تُظۡلَمُونَ ﴿٢٧٩﴾ ﴾ [البقرة : ۲۷۸- ۲۷۹]

* دسوداوربا له آيتونووروسته دهغی هيبت لرونکی ورځی څخه دويری آيت راوړی چې هلته انسان ته دخپل عمل جزاورکول کيږي که ښه عمل يې وونود خيرجزابه ويني اوکه شروو نوشربه يې په برخه شي ﴿ وَٱتَّقُواْ يَوۡمٗا تُرۡجَعُونَ فِيهِ إِلَى ٱللَّهِۖ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفۡسٖ مَّا كَسَبَتۡ وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُونَ ﴿٢٨١﴾ ﴾ [البقرة: ۲۸۱] او دا ترټولو

وروستی آیت دلی چې نازل شوی دی ددې آیت له نزول سره سمدستي آسماني وحی له مځکې څخه قطع اونازولی استازی ﷺ وروسته له دی چې رسالت یې بشپړاو امانت ورساوو دخپل رب جوارته ولیږدیدو.

* په پای کی سورت مسلمانان دتوبې لوری ته رابولي اوداچې الله ﷻ ته عجزاوزاری وکړی ترڅوله توانه زیات څه وربادی بارنه کړی په کفاروباندی نصرت اوبری ورکړی اودعاورښیې چې ددارینونیکمرغی پکښی نغښتی ده فرمایی: ﴿ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِۦ ۖ وَٱعْفُ عَنَّا وَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَآ ۚ أَنتَ مَوْلَىٰنَا فَٱنصُرْنَا عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴿٢٨٦﴾ ﴾ [البقرة: ٢٨٦] او دارنګه دمومنانوپه صفتونوپیل اوپه دعایی پای ته رسیږی چې دپیل اوپای ښه پېیلتوب اوجوړښت یې څرګند دی.

## تسمیه یانومول:

دغه سورت ته ځکه دبقرې سورت وایی چې دهغه حیرانونکی معجزی تلین بیاراژوندی کړی کومه چې دحضرت موسی علیه السلام په وخت کی څرګنده شوی وه هلته چې له بنی اسرائیلوڅخه یوڅوک چاوژلی وو خوقاتل یې معلوم نه وو اودوی حضرت موسی علیه السلام ته مراجعه وکړه چې هغه یې قاتل وروښیې .بیاالله ﷻ حضرت موسی علیه السلام ته وحی راواستوله چې دوی ته ووائی غوا حلاله کړی‌اوپه یوه ټوټه یې مړئ ووهی. نودالله ﷻ په اذن به مړي ژوندی اوخپل قاتل به دروښیي اودابه دالله ﷻ په قدرت چې څرنګه مړی ژوندی کوی څرګنده دلیل وی اوکیسه به انشاءالله پخپل ځای کښی په تفصیلی توګه راشی

## دسورت بهتري :

رسول الله ﷺ دنوموړی سورت په هکله فرمایی (لاتجعلوا بیوتکم مقابر ، انّ الشیطان ینفرمن البیت الذی تقرأ فیه سورة البقرة ) [اخرجه مسلم والترمذی] .وقال ﷺ:اقرأوا سورة البقرة فان اخذه برکة وترکها حسرة ولایستطیعها البطلة ) دلومړی حدیث شریف معنی داچې :تاسوخپل کورونه ګورونه (قبرونه) مه جوړوی بیشکه شیطان له هغه کوره چې هلته سورةالبقرة لوستل کیږی تښتي اوددوهم حدیث شریف معنا داچې سورةالبقرة لولې چې لوستل یې برکت دی اوپرېښودل یې حسرت اوافسوس دی کودګریی دمقابلې توان نه لری.(رواه مسلم)(١)

## لغتونه:

(يَتَّقِينَ )دتقوی اصل له اتقا څخه دې چې ځان ژغورلوته وايي ، نومتقی هغه چاته وایی چه خپل ځان له زیانمنوخیزونو ژغوری اوله دی څخه هغه څوک دی چې دالله مطیع اوله عذاب څخه یې ځان ژغوری اوبشپړه تقوی هغه ده چې بنده دالله ﷻ اوامرپرځای اوله نواهیو څخه یې ځان وژغوری (الغیب )هغه څه چې له حواسوڅخه پټ ورته غیب ویل کیږی لکه دوزخ اوجنت یاقیامت اومحشر راغب وایی چې غیب هغه شی ته وایی چې په حواسوکی نه راځی (١ ).(المفلحون) فلاح بریالیتوب اوکامیابی ته ویل کیږی ابو عبیده وایی هرچاته چې یوڅه خیروړسیږی هغه مفلح دی بیضاوی وایی مفلح هغه څوک دی چې په خپل مطلب کی بریمند شی اولکه چې دبریالیتوب لاری ورته پرانستی شوی وی اوفلح اصل په لغت کی څیرلو اوغوڅولوته وایی ځکه عرب وایی چې

(١) الکشاف ۲۷۰

(ان الحدید بالحدید یفلح) بیشکه اوسپنه اوسپنه غوڅوی. اوداسبب دی چې بزګرته هم فلاح وایي ځکه هغه په قلبه مځکه څیري. (کفروا) کفرپه لغت کې دنعمت پټولو ته وایي کافرته ځکه کافروایي چې دنعمت منکراوهغه پټوی ځکه نوشپې اودهقان ته کافرویل کیږي الله ﷻ فرمایي (أعجب الکفار نباته) [الحدید:٢٠] یعني دهقانان اوبزګران اوشپې ته ځکه وایي چې هغه په خپله تیاره کې هرڅه پټوی اونغاړي. (انذرتهم) انذاردخطر اخبارته وایي که خطر پکې نه وي هغه ته اعلام یااعلان وایي (ختم) مهرلګولوته وایي ترڅونورڅه پکې ورګډنشي اوله دي څخه د مکتوب مهرهم دی. (غشاوة) پردې ته وایي لکه چې یوڅاته ویل کیږي (غشیه) کله چې یې پټ کړي ځکه دقیامت ورځې ته هم غشیة وایي چې خلک پخپلو سختیو کې پټوي اورانغاړي

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ الٓمٓ ① ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَٰبُ لَا رَيۡبَۛ فِيهِۛ هُدٗى لِّلۡمُتَّقِينَ ② ٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡغَيۡبِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ يُنفِقُونَ ③ وَٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبۡلِكَ وَبِٱلۡأٓخِرَةِ هُمۡ يُوقِنُونَ ④ أُوْلَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدٗى مِّن رَّبِّهِمۡۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ ⑤ ﴾

## تفسیر:

دامبارک سورت دمتقینوپه صفتونوپیل شوی اوپه سرکې یې ﴿ الٓمٓ ﴾ مقطعات توري راغلي چې دمنکرینوغوږونوته دلمري ځل لپاره داسي ناڅرګند لفظونه ولیږي چې هغه دوی کله هم په خپله مخاطبه کي اوریدلي نه وي نوبه هغوی متوجه شي ترڅودغه آیات بینات واوري اوپدې تورو اوپه امثالوکې یې دا تنبیه هم شته چې دغه قرآن داعجازخاوندذی دی ځکه کټ مټ له هغوتوروجوړدی کوم چې دوی یې پخپلوخبرواتروکې استعمالوی نوچې دوی بیاداسې آیتونه نشي جوړولای دا سترډلیل دی چې قرآن معجز کتاب دی. علامه ابن کثیر رحمه الله وایي دغه حروف ځکه دسورتونوپه پیل کې ذکرشوي چې دقرآن کریم اعجاز څرګندکړي اودا وښیي چې خلک ددوی په مثل اوشان لوستلواوجوړولو کې عاجز دي له دې سره سره چې قرآنکریم هم له دغوتوروڅخه مرکب دی کوم چې دوی هم وربانديتکلم اوخبرې کوی اودادیوډلې محققینواوڅیړونکو رایه هم ده زمخشري په خپل کشاف نومي تفسیر کې دغه خبره تائیداوکلک ملاتړیې کړی دی اوامام ابن تیمیه هم دالوري کړی اوزیاتوی چې په هرسورت کې چې دامقطعات توري یې په پیل کې راغلي ارومروبه په کښې دقرآن کریم دبریاوو یادونه شوې وي اوداعجاز اوعظمت بیان به یې راغلی وي لکه ﴿ الٓمٓ ① ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَٰبُ ﴾ ﴿ الٓمٓصٓ ① كِتَٰبٌ أُنزِلَ إِلَيۡكَ ﴾ [الأعراف: ١ - ٢] ﴿ الٓمٓ ① تِلۡكَ ءَايَٰتُ ٱلۡكِتَٰبِ ٱلۡحَكِيمِ ② ﴾ [لقمان: ١ - ٢] ﴿ حمٓ ① وَٱلۡكِتَٰبِ ٱلۡمُبِينِ ② ﴾ [الدخان: ١ - ٢] اونورآیتونه چې دقرآنکریم په اعجازدلالت کوي بیاالله تعالی فرمایي ﴿ ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَٰبُ لَا رَيۡبَۛ فِيهِ ﴾ داکتاب نشته هیڅ شک په ده کې؛ یعني اې محمد ﷺ داقرآن چې په تا نازل شوی دی داسې کتاب دی چې بل کتاب ورسره مثل اوسیال نشي کیدای پدې کې هیڅ شک نشته چې دپاک الله ﷻ له لوري نازل شوی دی خوچې څوک سوچ اوفکروکړي اویاغوږ ورته ونیسي ﴿ هُدٗى لِّلۡمُتَّقِينَ ﴾ (لارښوونکې دی متقینومومنانو ته) هغوی چې دلوی الله دغضب له ویرې دهغه اوامرپرځای کوي اوله نواهیوڅخه یې ځانونه

ژغوري او دهغه له عذاب څخه ځان په طاعاتو او عباداتو ساتي ابن عباس ﷺ وايي متقين هغه څوک دي چې له شرک څخه يې ځان ژغورلی او د الله طاعت او عبادت کوي حسن بصري رحمه الله وايي متقين هغه دي چې ځانونه يې له محرماتو ژغورلي او هغه د الله فرض يې اداکړي وي وروسته الله ﷻ د دې متقيانو صفتونه داسي بيان کړل:

﴿ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِٱلْغَيْبِ ﴾ (هغوی چې په پټو څيزونو ايمان لري) يعنې دهغه څه باور کوي چې له دوی څخه پټ او په حواسويې نشي محسوسولای لکه حشر، جنت، دوزخ، پل صراط، حساب اونورهغه چې په قرآن کريم کې راغلي

او يا رسول الله ﷺ خبر راکړی دی ﴿ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ (او قائموي دوی لمونځ) يعنې داچې له ټولو شروطو او ارکانو سره

يې په اکمله وجه له خشوع او ادابو او ټولو حقوقو سره سم اداکوي ابن عباس ﷺ وايي دلمانځه داقامت معنی

داچې رکوع، سجده، تلاوت او خشوع يې په بشپړه توګه وي(۱) ﴿ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴾ (او ځينې له هغو شيانو چې موږ دوی ته ورکړي د الله د رضا لپاره يې لګوي) يعنې څه له هغو مالونو څخه د نيکی او احسان په لاروچارو کی صرفوي او آيت شريف عام دی زکات، صدقی او ټولو نفقاتو ته شامل دی دا د ابن جرير غوره ده او له ابن عباس ﷺ څخه روايت کاوو شی چې دلته مراد دزکات مالونه دی ابن کثير وايي: ډير ځله الله ﷻ دلمانځه او د مالونو دانفاق يوځای يادونه کوی ځکه لمونځ د الله تعالی حق دی او په توحيد، تمجيد او د الله په ثناء مشتمل دی او انفاق بيا د بنده حق دی ځکه د الله له مخلوق سره احسان کول انفاق ګڼل کيږي نو ټول واجب نفقات او فرضي زکات په آيت

شريف کی داخل دی ﴿ وَٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ ﴾ (او هغه کسان چې ايمان لري دوی په هغه کتاب چې نازل کړې

شوی دی تاته) يعنې باور لري په ټول هغه څه چې تا د الله له لوري راوړي دي (وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ) او په هغو کتابونو چې

نازل شوی دی له مخه دتا) يعنې په هغو چې ستاله مخه رسولانو د الله له لوري راوړی دوی د الله په کتابونو

او پيغمبرانو کی توپيرنه کوی ﴿ وَبِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴾ (او په آخرت دوی يقين کوی) يعنې دوی ټينګه عقيده

او باور لري چې قيامت راتلونکی دی او په دی هيڅ شک او شبه نه ويني او داچې راپورته کيدل حساب او جنت،

دوزخ، ميزان او جزا حق ده آخرت ته ځکه آخرت وايې چې له دنيا وروسته راتلونکی دی ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ﴾ (دغه ستايل شوی کسان دی په هدايت - له جانبه - درب خپل) يعنې دغه په سترو صفتونو موصوف خلک د الله له

لوري په نور، روښنائی او هدايت کی دی ﴿ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ او دغه ستايل شوي کسان هم دوی په مرادرسيدلي دي

## بلاغت

پدی آيتونو کی چې د بلاغت کومی ښکلاوی شته په لاندی ډول يې لنډيز ليکو:

عقلی مجاز (هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ) چې دهدايت نسبت يې قرآن ته وکړاو دغه ته اسناد دسبب وايي ځکه هدايت کونکی خو په حقيقت کي الله ﷻ دی.

---

(۱) داتفسير موله طبری. ابن کثير او جلالين څخه را اخيستی دی

نژدې څېزته په لیرې کلمه اشاره کول لکه (ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَـٰبُ) چې دا د قرآنکریم دشان لوړوالی ته اشاره او د کمال د مرتبې لیرې والی ښیې نو د مرتبې لیرې والی د حسي لیرې والی په ځای کې راوړل شو.

د اشارت تکرار لکه (أُوْلَـٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدٗى مِّن رَّبِّهِمۡ) (وَأُوْلَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ) چې د متقینو دشان په هکله زیات عنایت (پیرزوینه) ده او چې د(هم) په ضمیربې ذکر کړی د حصر افاده وشوه لکه چې ویلې دي (هم المفلحون لاغیرهم) یعنې یوازې دوی په مراد رسیدلي دي نه بل څوک.

۱ - د کافرانو له ایمان څخه ناهیلي چې کله فرمایي (سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ ءَأَنذَرۡتَهُمۡ أَمۡ لَمۡ تُنذِرۡهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ) په دې جمله کې وار له مخه د دوی د سخت کفر تنبیه یاده شوه چې هغوی په طغیان کې ډوب او د ایمان لپاره استعداد نلري نو د دوی له ایمان راوړلو څخه لاس پرېمنځي.

۲ - تصریحي باریکه لطیفه استعاره لکه (خَتَمَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ) ځکه د دوی هغه زړونه چې حق نه مني او سترګې غوږونه چې نه حق ویني او نه یې اوري له هغه لوښي سره تشبیه کړل چې برغولی(سرپوښ) ورباندې اېښې او ټول منافذ یې سخت بند وي چې هیڅ روغونکی شی ورد ننه کیدلای نشي او د هغه لپاره یې د ختم او پردې کلمې راوړې چې دې ته تصریحي استعاره ویلای شو.(۱)

## الله تعالی فرمایي:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ ءَأَنذَرۡتَهُمۡ أَمۡ لَمۡ تُنذِرۡهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ۝٦ خَتَمَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ وَعَلَىٰ سَمۡعِهِمۡۖ وَعَلَىٰٓ أَبۡصَـٰرِهِمۡ غِشَـٰوَةٞۖ وَلَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٞ ﴾ .

## له مخکنیو آیتونو سره مناسبت او تړاو:

کله چې الله تبارک وتعالی په تیرو آیتونو کې د مؤمنانو صفات یاد کړل وروسته یې د کافرانو صفات راوړل چې د دواړو ټولګیو ترمنځ څرګند توپیر روښانه کړي او دا د قرآن کریم اسلوب دی چې د ابرارو او فجارو یادونه یو په بل پسې کوي تر څو نیکمرغه او بدمرغه کسان سره بیل کړي (وبضدها تتبین الاشیاء) ځکه شیان یو د بل په ضد پیژندل کیږي.

تفسیر:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ بیشکه هغه کسان چې کافران شوي دي په آیتونو د الله ؛ او د محمد ﷺ رسالت نه مني ﴿ سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ ﴾ برابر دي په دوی ﴿ ءَأَنذَرۡتَهُمۡ أَمۡ لَمۡ تُنذِرۡهُمۡ ﴾ ویرول ستا دوی لره او نه ویرول ستا دوی

---

۱- تلخیص البیان للشریف الرضي ۳/۱ ، ۲- البحر المحیط لابي حیان ۵۷/۱.

لره ﴿ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ (دوی ایمان نه راوړی) په هغه څه چې په تا نازل شوی ته ددوی د ایمان راوړلو هیله مه لره او مه ددوی په کفر خواشیني او خفګان کوه ۱ پدې کي د رسول الله ﷺ دادینه ده څکه چې قوم یې هغه په پیغمبری نه منل بیا الله ﷻ ددوی د ایمان نه راوړلو علت او سبب داسې بیانوی ﴿ خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ ﴾ (مهر لګولی الله ﷻ په زړونو ددوی) یعنی ددوی په زړونو هسې مهر لګول شوی دی چې هغه ته د ایمان نور او څلا نه ورننوزی هلته د ایمان دورتلو لاره نشته. مفسرینو لیکلی دی ختم مهر او پټولو ته وایی او زړونه چې کله ګناهونه پری زیات شی د بصیرت څلیدل یې ورک شی نو ایمان نه ورننوځی او همدا راز له هغو څخه د کفر د وتلو سوری هم نه وی لکه چې بل ځای الله تعالی فرمایی: ﴿ بَلْ طَبَعَ اللَّهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ [النساء: ۱۵۵] (۱) ﴿ وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ (او په غوږونو ددوی او سترګو ددوی پرده ده) چې نه حق اوری او نه یې وینی او نه ورباندی پوهیږی څکه غوږ او سترګی یې داسې دی لکه چې درنې پردې ورباندې غوړیدلی وی نو که حق وینی هم خو نه یې منی، اوری یې خو په غوږکی یې نه ننیسی ابو حیان وایی الله تعالی ددوی زړونه له دی کبله چې حق نه مني او غوږونه یې چې د نجات د بلونکی (داعی) غږ نه اوری او سترګی یې چې د هدایت روښنایی پکی نه رغړی له یو داسې لوښي سره تشبیه کړی چې سرېی بندوی او ټول مناقذ او سوری یې تړلی وی داسې پرده ورباندی تاوشوی وی چې هیڅ روغونکی څیز نه ورپربېږدی او د اله دی سره سره چې روغ رمټ دی خود خیرله منلو لیدلو او اوریدلو څخه ممنوع کړل شوی دی او پدی کی استعاره ده ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ (او ددوی لره عذاب دی ډیر لوی) یعني دوی لره په آخرت کی سخت عذاب دی چې پریکړون نه لری او دا د هغه جرم په سبب کوم چې دوی کافران وو او د الله ﷻ آیتونه یې منل

## الله تعالی فرمایي:

﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ (٨) يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا
أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ (٩) فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ (١٠) وَإِذَا قِيلَ
لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ (١١) أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلَٰكِن لَّا يَشْعُرُونَ (١٢) وَإِذَا قِيلَ
لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ قَالُوا أَنُؤْمِنُ كَمَا آمَنَ السُّفَهَاءُ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ وَلَٰكِن لَّا يَعْلَمُونَ (١٣) وَإِذَا لَقُوا
الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِئُونَ (١٤) اللَّهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِي
طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ (١٥) أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ فَمَا رَبِحَت تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ (١٦) مَثَلُهُمْ
كَمَثَلِ الَّذِي اسْتَوْقَدَ نَارًا فَلَمَّا أَضَاءَتْ مَا حَوْلَهُ ذَهَبَ اللَّهُ بِنُورِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِي ظُلُمَاتٍ لَّا يُبْصِرُونَ (١٧) صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ
فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ (١٨) أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَاءِ فِيهِ ظُلُمَاتٌ وَرَعْدٌ وَبَرْقٌ يَجْعَلُونَ أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِم مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ
الْمَوْتِ وَاللَّهُ مُحِيطٌ بِالْكَافِرِينَ (١٩) يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ كُلَّمَا أَضَاءَ لَهُم مَّشَوْا فِيهِ وَإِذَا أَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوا وَلَوْ
شَاءَ اللَّهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (٢٠) ﴾

## مناسبت او تړاو:

الله تعالی د سورت په لمړي پیل کې د مومنانو صفات یادکړي وروسته یې د کافرانو د صفتونو ذکر کړی او دا هم د منافقینو صفات دي چې دادریم تولګی دی هغوی چې ایمان څرګندوي او کفر پټوي او ددوی یادونه یې په دیرلسو آیتونو کې اوږده کړه تر څو ددوی لوی خطر او ستر ضرر مسلمانانو ته ورپه ګوته کړي او بیایې دوه مثالونه د زیات څرګندولو لپاره راوړل چې دوی څرنګه د ګمراهي او نفاق په تورو تیاروکې راګیر او څرنګه به د هلاک او تباهی کندی ته لویږي؟[1]

## لغتونه:

(یخادعون) (ټګي کوي) خداع مکر او دوکې ته وایي او د هغه څه څرګندولو ته چې په باطن کې بل څه وي خداع وایي اصل یې پټول دی لکه چې دهر او زمانی ته خادع ویل کیږي ځکه هغه هم غوائل (فتنې او محنتونه) پټ ساتي او مخدع ته ځکه مخدع وایي چې د کور خاوندان هغه پټ ساتي (مرض) ناروغي چې د روغتیا ضد دی کله حسي وي لکه د بدن ناروغي او کله هم معنوي وي لکه نفاق یا کینه او ریا ابن فارس وایي مرض هر هغه څه ته وایي چې انسان د روغتیا له سرحده ناروغی ته پورې باسي هغه که ناجوړي وي یا نفاق یا هم په کارکښې تقصیر او کوتاهي (تفسدوا) له استقامت څخه عدول ته فساد وایي او د صلاح ضد ګڼل کیږي (السفهاء) د سفیه جمع او جاهل ته وایي هغه د کمزوري رایې څښتن دي چې ګټه او تاوان لږ پیژني سفه په اصل کې سپکتیا ته وایي او د سفیه عقل سپک وي د لغت علماء وایي چې (سفه) سپکوالي او درایې کمزوري ته وایي چې د عقل نقصان ورسره وي او ددې په مقابل کې حلم دی (۲) (طغیانهم) په هر څه کې له حد څخه تجاوز ته طغیان وایي لکه (طغی الماء) کې چې معنی یې ده اوبه پورته شوې لوړې شوې او له حد څخه یې تجاوز وکړ او د (طاغیة) معنی ده سرغړونکی ، عنید (یعمهون) عمه حیرانتیا ته وایي فخررازي رحمه‌الله وایي : عمه لکه عمی داسي ده خو عمی د راتې او سترګو د دواړو لپاره او عمه یوازې د رائې په هکله ویل کیږي او معنی یې تردد او حیرانتیا ده چې نه پوهیږي کوم پلو ته مخ کړي (اشتروا) په حقیقت کې شراء بدلولو ته وایي او په پیسو باندې د مطلوب څیز رانیولو ته هم ویل کیږي عرب هغه چاته چې یو څیز په بل بدلوي وایي (اشتراء). (صم) د اصم جمع او کاڼه ته وایي (بکم) د أبکم جمع او ګونګي ته وایي چې خبرې نشي کولای (عمی ) د اعمی جمع هغه چې ړوند وي څه نهویني (صیب) ګڼ باران ته ویل کیږي له صوب څخه اخیستل شوی چې په شدت سره راکوزیدلو ، اوریدلو ته وایي (الصواعق) د صاعقة جمع ده اوتکې ته وایي هغه سوځونکې اور چې هر څه ته ورسیږي او تباه یې کړي له صعق څخه اخیستل شوی چې د غږ شدت ته وایي (السماء) په لغت کې له سرنه د پاسه لوړ څیز ته وایي چې سیوری یې پرتا پریوزي وایي ځکه د خونې بام ته هم سما ، ویل کیږي باران ته هم سماء وایي ځکه له آسمانه راتوئیږي (یخطف) خاطف په چټکتیا سره

(۱) تفسیر کبیر امام رازي ۲/ ۷۱.
(۲) وګورئ تهذیب اللغة ، صحاح او قاموس.

دیوشی ترلاسه کونکي ته وایی اوله دی څخه دی (الامن خطف الخطفة) اومرغانوته چې خطاف وایی ځکه هغوی په ډیره تلواره سره درومي اوښکارکوي.

## دنزول سبب:

ابن عباس ﷺ وایی دغه آیتونود اهل کتابو په منافقینو کی نازل شوی دي چې له هغوی څخه هریو (عبدالله بن ابی ابن سلول ،معتب بن قشیراوجدبن قیس وو دوی به چې کله له مسلمانانو سره یوځای شول نوایمان به یې ښرگنداوو اوویل به یې مونږ پخپلو کتابونو کی دپیغمبر ﷺ نعت اوصفت لوستلی دی

## تفسیر:

﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ ﴾ (اوځیني له خلکو څخه داسي کسان دي چې وایي مونږ ایمان راوړی په الله) یعنی له خلکو څخه یوه ډله داسي کسان دي چې په ژبه وایې مونږ په الله اوپه هغه آیتونو چې نازل کړی یې دی ایمان اوباورلرو ﴿ وَبِٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ ﴾ (اودقیامت په ورځ موایمان راوړی) ﴿ وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ ﴾ (حال داچه نه دی دوی مومنان ) یعنی دوی په حقیقت کی مومنان نه دی ځکه دوی یوازی دغه دخولی خبری کوی اوعقیده اوگروهه نه لری قول کوی باوریې نشته ، بیضاوی وایی دغه دریمه ټولگی ده چې مذبذب بلل کیږی ځکه دوی دمسلمانانو اوکفاروترمنځ دي اوترکافرانو پلیت اوناولې دي اودالله ﷺ په نزد مبغوض دی ځکه دوی کفرپه ایمان رنګولی اوچم دوکه اوملنډی یې وهلی دی ځکه ددوی بیان ډیر اوږد شوی ددوی پلیتی اوناپوهی بیان شوي په دوی ملنډی وهلی شوی اوددوی خویونه چتی اوبی فایدی بلل شوی گمراهی اوسرغړونه وربانذی ترل شوی اومثالونه ورته راوړل شوی دی ﴿ يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ (ټګی کوی دوی له الله سره اوله هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی دی) یعني دی دټګماروپه شان عمل کوي چې ایمان ښرگندوي په واقعه کی په خپل کفراصراراوټینگارکوی دوی له خپلی ناپوهي داسي انګیري چې الله ﷺ په دغي ټګي غولوي اودادوی لپاره گټوره ده دوی دغه مخادعه داسي پرتله کوی لکه له بعضی مؤمنانو سره چې یی کوی هغه مؤمنان چې ددوی په واقعیت ښه نه پوهیږی خودغه منافقین پدی نه پوهیږی چې الله ﷺ دبندګانو په شان نه دی له هغه څخه هیڅ هم پټ نه دی ابن کثیروایی نفاق دخیرښرگندولو اودشرپټولو ته وایی اوداپه څوډوله دی یویې اعتقادی هغه چې خاوند یې تل ترتله په اورکی وی اوبل یې یوازی عملی اودادزښته ستروګناهونو څخه دي ځکه دمنافق قول اوعمل سره مخالفت لری اوپټ اوښکاره یې سره ضداونقیض وی دمنافقینو صفات ځکه په مدنی سورتونوکی ذکرشوی چې په مکه مکرمه کی نفاق نه وو(۱) ﴿ وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ ﴾ (حال داچې نه کوی ټګی دوی مگرله خپلو ځانونو سره ) یعنی ددغی ټګی ضرر وبال بیرته دوی ته راگرځی ﴿ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴾ (حال داچې نلری دوی شعور )دوی ددی احساس ځکه نشی کولای چې دوی په غفلت کی غوپه اوبشپړحماقت یې په برخه دی ﴿ فِى

---

(۱) مختصرابن کثیر۱/۳۳.

قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ ٱللَّهُ مَرَضًا ﴾ (ددوي په زړونو کی مرض (نفاق) ناروغی ده نو زیات کړ الله دوی لره مرض ) یعنی ددوی په زړونو کی دشک اونفاق ناروغی ده نو الله هغه پسی ورزیاته کړه اودغه جمله دعائیه ده ابن اسلم وایی چې دغه دینی مرض دی او جسدی نه دی څکه دوی په اسلام کی شک لری الله ﷻ دغه شک لا ورزیات کړ

(۲) ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌۢ بِمَا كَانُوا۟ يَكْذِبُونَ ﴾ (اودوی لره دی عذاب ډیر دردناک په سبب دهغه چې دوی به دروغ ویل ) یعنی دوی لره په دغه دروغو چې دایمان په دعوی کی به یی ویل او دالله ﷻ په آیتونو به یی ملنډی وهلی سخت دردناک عذاب دی ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (او کله چې وویل شي دوی ته فساد مه کوی په مځکه کی ) یعنی کله ځیني مومنان دوی ته ووایی په مځکه کی دفساد خورولو هڅی مکوی، خلک دالله ﷻ له لاری مه راګرزوی، دکفر ملا مه تړی، ابن مسعود ﷺ وایی په مځکه کی فساد کول کفر ته ویل کیږی او دمعصیت اوګناه معناهم فساد دی ځوک چې دالله عصیان غوره کړی نو په مځکه کی یی فساد وکړ ﴿ قَالُوٓا۟ إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ ﴾ (دوی وایی چې بیشکه مونږ یو اصلاح کوونکی ) یعنی زمونږ کار خو د فساد نه بلکه اصلاح ده مونږ دخلکو ترمنځ صلح خپروو او خیرغواړو مونږ ته دفساد مه وایاست بیضاوی لیکی دوی دفساد داسي تصور کاوو لکه داصلاح څکه ددوی په زړونو کی مرض وو لکه چې الله ﷻ فرمایی: ﴿ أَفَمَن زُيِّنَ لَهُۥ سُوٓءُ عَمَلِهِۦ فَرَءَاهُ حَسَنًا ﴾

[ فاطر: ۸ ] څکه نو الله ﷻ په هغوی سخت ردوکړ چې دجملی په پیل کی یې دوه دتاکید حرفونه راوړل یو (ألا) چې دتنبیه لپاره او بل (ان) چې دتقریر لپاره ده هم دا رنګه خبریی معرفه راوړی او ضمیر فصل یی توسیط کړي اودوی لاشعوری یی بیان کړی ده فرمایلی یی دی ﴿ أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ ٱلْمُفْسِدُونَ وَلَٰكِن لَّا يَشْعُرُونَ ﴾ (خبردار دوی دی فساد کوونکی مګر دوی (پخپل فساد ) شعور نلری ) یعنی خبردار ای خلکو دوی فساد کوونکی دی بل ځوک نه دی خو څرنګه چې په زړونو کي یی دایمان ډیوه مړه وه نو پخپل فساد نه پوهیدل ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ ءَامِنُوا۟ كَمَآ ءَامَنَ ٱلنَّاسُ ﴾ (کله چې دوی (منافقینو) ته وویل شی چې رښتونی ایمان راوړی ) لکه دخلکو (چې ریا اونفاق پکی نه وی ) یعني لکه ایمان داصحاب کرامو ﷺ ﴿ قَالُوٓا۟ أَنُؤْمِنُ كَمَآ ءَامَنَ ٱلسُّفَهَآءُ ﴾ (وایی دوی چې أیا ایمان راوړو مونږ لکه چې ایمان راوړی ناپوهانو ) ؟ همزه دلته داستفهام لپاره ده چې شک اوسخریه هم ورسره ملګری ده یعنی مونږ ددی ناپوهانو غوندی ایمان راوړو ؟ کوم چې صهیب، عمار او بلال دی دوی دعقل اوسوچ له خوا ناقص دی بیضاوی وایی دوی ته یی څکه سفها ویل چې داصحابو ﷺ رایه یی چتی او یی معنی بلله اویا دا چې ددوی سپکاوی یی کاوو څکه اکثر مسلمانان بیوزله وو او بعضي موالین وو لکه صهیب، او بلال او نور ﴿ أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ ٱلسُّفَهَآءُ وَلَٰكِن لَّا يَعْلَمُونَ ﴾ (خبردار بیشکه هم دوی دی بی عقلان (ناپوهان) خو نه پوهیږی (پخپله ناپوهی) څکه چې دباطل پیروی کوی بی له شکه ناپوه دی خو هغوی په خپل ضلالت اوګمراهی نه پوهیږی اودا تر ړندوالی لا زیات ده دلته یی تنبیه او تاکید وکړ چې سفاهت اوناپوهی په دوی پسی حصر ده بیا الله ﷻ ددوی نفاق او کړه وړه داسي وستایل ﴿ وَإِذَا لَقُوا۟ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا ﴾ (کله چې ملاقات وکړی له مومنانو سره وایی مونږ ایمان راوړی ) یعنی کله چې له مسلمانانو سره مخامخ شی ایمان او خواخوږی څرګندوی او دا دنفاق او مصالحت له مخی

(۲) تفسیر البیضاوی ۱۷۱.

دي ﴿ وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَٰطِينِهِمْ ﴾ (اوكله چې يوازې شي له شيطانانو(مشرانو) خپلوسره هغوی چې دګمراهی اوباطل سرداران دي ﴿ قَالُوٓا إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُونَ ﴾ (وايي بيشكه موږ له تاسو سره يو بيشكه هم داخبره ده چې موږ مسخرې كوونكي يو(په مومنانو پورې) يعنې موږ ستاسو په دين يو خو كله چې ايمان ښكاره كړو يوازې په هغوی مسخرې كوو ﴿ ٱللَّهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ ﴾ (الله جزاوركوي د مسخرو ددوی) چې وخت وركوي اوبيا عذاب وركوي ابن عباس رضي الله عنه وايي: الله په دوی مسخرې كوي چې دوی ته مهلت وركوي او عذاب به وركړي لكه چې فرمايي: ﴿ وَأُمْلِي لَهُمْ إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ ﴾ [القلم: ٤٥] ابن كثير وايي: دا دالله ﷻ له لوري اخبار دي چې هغه به دوی ته داستهزاء مجازات وركوي اوددوي په تګې باندې به يې ترټې نودجزاوړ فعل يې دجزا په ځای ذكر كړ چې لفظ متفق خو معنايې مختلف ده اوداډول يې هغه په قرآنكريم كې ټول نظائر او مثالونه توجيه كړې دی لكه داقول دالله تعالی ﴿ وَجَزَٰٓؤُا۟ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ۖ فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهُۥ عَلَى ٱللَّهِ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ [الشورى: ٤٠]

﴿ ٱلشَّهْرُ ٱلْحَرَامُ بِٱلشَّهْرِ ٱلْحَرَامِ وَٱلْحُرُمَٰتُ قِصَاصٌ ۚ فَمَنِ ٱعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ فَٱعْتَدُوا۟ عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا ٱعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلْمُتَّقِينَ ﴾ [البقرة: ١٩٤] ځكه چې اول ظلم مكردوهم عدل دي ﴿ وَيَمُدُّهُمْ فِى طُغْيَٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴾ (اومهلت (ترقي) وركوي دوی ته په سركشی ددوی كې حال داچې دوي حيران دي (په خپل كاركښې) دوی دوتلو لاره نه مومی ځكه الله يې په زړونو مهر لګولی اوسترګې يې ړندې كړې نه سميدلای شي اونه سمه لاره نيولای شي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱشْتَرَوُا۟ ٱلضَّلَٰلَةَ بِٱلْهُدَىٰ ﴾ (داهغه كسان دي چې پيرودلې يې ده ګمراهی په هدايت) يعنې كفر يې په ايمان بدل كړی دضلالت بيه يې هدايت وركړی دي ﴿ فَمَا رَبِحَت تِّجَٰرَتُهُمْ ﴾ (نوهيڅ ګټه ونكړه سوداګرۍ ددوی) ﴿ وَمَا كَانُوا۟ مُهْتَدِينَ ﴾ (اونه وودوی لارموندونكی) ځكه دوی ددواړو جهانونو تاوان وكړ بيا الله ﷻ دوه مثالونه راوړل چې ددوی دغه پريمانه تاوان ښكاره كړې وېې فرمايل ﴿ مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ ٱلَّذِى ٱسْتَوْقَدَ نَارًا ﴾ (مثال ددوی( منافقانو ) لكه مثال دهغه چاده چې اوريې بل كړی وي) يعنې ددې منافقانو مثال دهغه چا په څيردی چې دتوږوخې اورو ښنايي لپاره يې اور بل كړې وي خو دير وخت نه وي وتلی چې اورمړشي اودوی په همغه تپه توره تياره كې پريږدي چې سخت ويريږي ﴿ فَلَمَّآ أَضَآءَتْ مَا حَوْلَهُۥ ذَهَبَ ٱللَّهُ بِنُورِهِمْ ﴾ نوكله چې روښانه كړې دغه (اور) چاپيرده الله ﷻ مړه كړې رڼا ددوی) يعنې كله چې يې خوا اوشا روښانه شي او څه ووينې ، په امن اوبيغمه شي ، په دغه ځلانده اور باندې دلاساشي الله ﷻ يې يومخه ايزه دغه اورووژنی اوروښنايي يې وركه كړي ﴿ وَتَرَكَهُمْ فِى ظُلُمَٰتٍ لَّا يُبْصِرُونَ ﴾ (اوپريږدي دوی په تياروكې چې هيڅ نه ويني ) يعنې دوی په دومره زياتو تاريكيو كې حيران پاتې شي چې هيڅ هم نه ويني ابن كثير وايي الله تعالی دمنافقينو لپاره دغه مثال راوړی دی اودوی يې له هغه چاسره مشابه ګڼلي چې ګمراهی يې په هدايت رانيولی وي اودوی له ليدلو وروسته ړانده شوي وي ددوی مثال داسي ده لكه څوک چې اوربل كړې كله چې يې خوا وشا روښانه شي ښې او كيڼ لوری ووينی په اور يوڅه ګټه واخلي چې نابيره يې اورمړ اوپه سخته تاريكی كې پاتې شي نه څه ويني اونه لاره ايستلای شي دغه منافقين همداسي دي چې دهدايت په بدل كې يې ګمراهي رانيولی ده دوی ترسمی لارې ناسمه خوښوی اوپه دې مثال كي ددي دلالت شته چې دوی يو خل ايمان راوړی بيا كافران شوي ځكه الله ﷻ ددوی نور او ځلا وركه

کړی او دوی یې په سخته تیارو کې چې هغه د کفر او شرک او نفاق تیارې دي غوږ خولې نو د خیر او خلاصون لاره نشې موندلای ﴿ صُمٌّ ﴾ کاڼه دي، د خیر خبرې نه اوري ﴿ بُكْمٌ ﴾ ګونګیان دي، هغه ګټوري خبرې نشي کولای ﴿ عُمْيٌ ﴾ ړانده دي، د خیر ښیګڼې لاره نهویني او نه د هدایت په لاره تللای شي ﴿ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴾ نو بیرته نه راګرځي دوی له ګمراهۍ څخه، بیا الله ﷻ د دوی لپاره بل مثال راوړ چې زیات څرګند والی یې وشي وېې فرمایي ﴿ أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَاءِ ﴾ (یا په شان (د هغو کسانو دي) چې غټ څاڅکې زورور باران له آسمانه وربانډې اوري) مخکه تپه توره تیاره او له آسمان څخه غټ څاڅکې باران چې تالنده او بریښنا ورسره ملګرې وي وربانډې را اوري ﴿ فِيهِ ظُلُمَاتٌ وَرَعْدٌ وَبَرْقٌ ﴾ (په هغه کې تیارې تالنده او بریښنا وي) سختې تیارې او ماتونکې تندرهم اراز تښتونکې بریښنا پکې موجود وي ﴿ يَجْعَلُونَ أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِم مِّنَ الصَّوَاعِقِ ﴾ (ننې باسي (سرونه) د ګوتو په خپلو غوږونو کې د تندر (له ویرې) څخه دوي ګومان کوي چې دا به یې وژغوري ﴿ حَذَرَ الْمَوْتِ ﴾ د مرګ له ویرې، له دغه تندرونو څخه ﴿ وَاللَّهُ مُحِيطٌ بِالْكَافِرِينَ ﴾ (او الله احاطه کوونکی دی په کافرانو (پخپل قدرت سره) دغه اعتراضیه جمله ده یعنی دوی د الله ﷻ ترارادې او مشیت لاندې دي لکه چې په یوچاباندې دښمنان له ټولو خواو چاپیروی او ځنې خلاصیدلای نشي دوی هم هیڅکله ورڅخه تښتیدلای نشي ﴿ يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ ﴾ نژدې ده چې بریښنا په چابکۍ سره یوسي (نور) دسترګو د دوی څکه خلایي ډیره تیزه او تونده وي ﴿ كُلَّمَا أَضَاءَ لَهُم مَّشَوْا فِيهِ ﴾ کله چې رڼا کړي (بریښنا) دوی ته لاره نو پکښې روان شي ﴿ وَإِذَا أَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوا ﴾ او کله چې تیاره کړي پردوي نو ودریږي (ترهور)؛ په خپل ځای کې او پدې کښې د دوی دلالها ندتوب او حیرانتیا انځور ښودل شوي دی کله چې نابیره بریښنا وځلیږي سره له دې چې بیریږي د سترګو نور به یې په چابکۍ سره یوسي خو بیا هم دوی فرصت غنیمت وګڼي او یو څو ګامه واخلي او کله چې رڼا ورکه شي له تللو څخه ودریږي او له ځایه نه خوځیږي ویره لري چې په کنده کې به ولویږي ﴿ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ ﴾ او که اراده کړې وای الله نو به یې قوت د اوریدلو کړی وو، یعنې په تندر کې به یې د غږ زیات قوت ایښي ا ودوی به یې کاڼه کړي وای او بریښنا به یې دومره زیاته کړې وه چې د دوی د سترګو نور یې ځنې وړی وای ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ (بیشکه الله په هرشي ښه قادر دی او هیڅ د ځمکې او آسمان قوت هغه عاجز کولای نشي ابن جریر وایي الله ﷻ دلته خپل ځان په هرشي د قدرت لرلو په صفت وستایه څکه چې منافقین یې له خپل زور او عذاب څخه وویرول او دوی ته یې خبرورکړ چې الله پر دوی محیط او په ړندولو او کڼولو یې قادر او توانا دی.

(تفسیر طبری ۷۹/۱).

بلاغت:

پدې آیتونو کې چې د بلاغت او بدیع کومې ښکلاوې شته په لاندې ډول یې لنډیز لیکو:

۱. د دوی په تکذیب کې مبالغه چې فرمایي: ( وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ )اصل خو دا وو چې ویل شوی وای (وما آمنوا )تر څو د دې قول سره مطابق وایي چې (من یقول آمنا ) کوم چې په خواتیرشو خپله فعل

څخه يې اسم ته عدول وکړ ترڅودوی دمومنانو له ډلې راوباسي اوبيايې د(با)په توری تاکيدوفرمايه ترڅو ددوی دبې ايمانی مبالغه څرګنده شي.

۲. تمثيلي استعاره لکه (يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ)ددوی حال يې له خپل رب سره دايمان په څرګندولو کې اودکفرپه پټولوکې له هغه رعيت سره مشابه وګڼل کوم چې له خپل پاچاسره ټګي کوي اومشبه به يې دمشبه لپاره استعاره کړ.

۳. دقصر صيغه لکه(إِنَّمَا نَحۡنُ مُصۡلِحُونَ )اودغه ډول قصرته قصر د موصوف تر صفته وايي يعنی مونږ مصلحين يونه بل څوک.

۴. لطيفه کنايه لکه پدې قول کې: ( فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ )ناروغی خوحقيقتا په اجسامو کی وی اوله نفاق څخه يې مرض کنايه راوړ ځکه نفاق زړه خرابوی لکه چې مرض بدن ته تاوان رسوی

۵. دتاکيد تنويع لکه. (أَلَآ إِنَّهُمۡ هُمُ ٱلۡمُفۡسِدُونَ) دغه جمله په څلورو تاکيداتو مؤکده راغلې ده يو(ألا )چې تنبيه افاده کوی بل (ان)چې دتاکيدلپاره دي بيادفصل ضمير (هم)راغلی اوبيايې خبرمعرفه ذکرکړی چې (المفسدون)اوهم دارنګه پدی جمله کی چې (أَلَآ إِنَّهُمۡ هُمُ ٱلسُّفَهَآءُ )اوپدې کي دالله ﷻ له خوا ډير سخت اومحکم رد تغبنتل شوی دی.

۶. مشاکلت لکه چې فرمايي: (ٱللَّهُ يَسۡتَهۡزِئُ بِهِمۡ) داستهزاء جزا يې پخپله استهزاء وګڼله چې دامشاکلت ده اوهغه د لفظ اتفاق اودمعنی اختلاف ته وايي.

۷. تصريحيه استعاره :لکه ( اشۡتَرَوُاْ الضَّلَٰلَةَ بِالۡهُدَىٰ)مراد داچې دوی ګمراهی په هدايت رانيوله اوکفريې په ايمان وپيرودل څوسوداګری يې په تاوان تمامه شوه نودبدلون لپاره يې د خرڅولو لفظ راووړ اوبيايې په توضيح کی وفرمايل: (فَمَا رَبِحَت تِّجَٰرَتُهُمۡ)اودی ته ترشيح وايي چې داستعاری له لوړوپوړيو څخه ګڼل کيږی(۱)

۸. تمثيلي تشبيه لکه: (مَثَلُهُمۡ كَمَثَلِ ٱلَّذِي ٱسۡتَوۡقَدَ نَارٗا) او دارنګه: (أَوۡ كَصَيِّبٖ مِّنَ ٱلسَّمَآءِ فِيهِ ظُلُمَٰتٞ) په لومړي مثال کي يې منافق له هغه چاسره مشابه کړ چې اور يې بل کړی وی او دايمان څرګندول يې له روښنايي سره ،او چې وربانده ګټه نشي اخيستلای لکه چې اور يې مړ شي او په دوهم مثال کي يې اسلام له باران سره مشابه ګڼلی ځکه ژرونه وربانده داسي ژوندي کيږي لکه مځکه په اوبوباندي او دکفارو شکونه او شبهې يې له تاريکيو سره مشابه ګڼلی او هغه چې په قرآنکريم کښې وعد او وعيد راغلی هغه يې له تالندې بريښنا سره مشابه بللی دی (۲)

---

(۱) زمخشري وايي چې داهسي بديعي صنعت دي چې په مجاز کي هغه لوړي خوکي ته رسيږي کشاف ۳۵/۱.

(۲) فخرالرازي وايي دلته تشبيه بالکل صحيح او سمه ده ځکه دوی لومړی په ايمان باندی يو څه خلاء ، وموندہ او بيا يې په نفاق وبايلله او په حيرانتيا کي ولويدل ځکه تر دي بله زياته حيراني نشته چې څوک تل تر تله په خسران کي ولويږي (الرازي۲/۷۳).

۹. بليغه تشبيه لكه (صُمٌّ بُكۡمٌ عُمۡيٌ) يعنی دوی لكه كاڼه ، ګونګيان او ړانده غوندي دي چې له دغو حواسو څخه استفاده نشي كولای د تشبيه توري او ادات او د مشابهت وجه يې حذف كړه چې دې ته بليغه تشبيه ويل كيږي.

۱۰. مرسل مجاز لكه : (وَرَعۡدٌ وَبَرۡقٌ يَجۡعَلُونَ أَصَٰبِعَهُمۡ فِيٓ ءَاذَانِهِم) چې دلته د كل اطلاق كړي او جز څني اراده شوی يعنی د ګوتو سرونه په غوږونو كې ننی باسي څكه د ټولو ګوتو ننې ايستل امكان نلري.

۱۱. د فواصلو توافق د آيتونو په سرونو كې چې دا هم ښا ئښت او اغيز درلودونكی ده لكه : (عَذَابٌ أَلِيمٌۢ بِمَا كَانُواْ يَكۡذِبُونَ) (إِنَّمَا نَحۡنُ مُصۡلِحُونَ) (وَيَمُدُّهُمۡ فِي طُغۡيَٰنِهِمۡ يَعۡمَهُونَ) او داهم له بديعي محسناتو څخه شميرل كيږي (۱)

## فوائد او ګټې:

**لمړۍ ګټه :** د مثال د راوړلو ګټه داوي چې ليري څيز رانژدې كوي پټ رازونه څرګندوي تر څو لكه محسوس او ليدونكی غوندی وبريښي او د مثالونو په نفس يو عجيبه اغيز او تاثير وی الله ﷻ فرمايي : (وَتِلۡكَ ٱلۡأَمۡثَٰلُ نَضۡرِبُهَا لِلنَّاسِۖ وَمَا يَعۡقِلُهَآ إِلَّا ٱلۡعَٰلِمُونَ).

**دوهمه فائده :** الله ﷻ منافقين په دغو آيتو كې په لسو صفتونو وستايل چې ټول يې بد دی او د دوی د ګمراهي څرګندونه كوي لكه : دروغ ، تګي ، مكر (دوكه) بې عقلي ، استهزاء ، په مځكه كې فساد كول ، جهل ، ګمراهي ، تذبذب ، او په مسلمانانو باندی سخريه كول او ملنډې وهل . الله ﷻ دې موږ د منافقانو له اوصافو وژغوري (آمين) .

**دريمه فائده:** څرنګه چې منافقان كافران دي د اچې رسول الله ﷺ سره له دې چې څيني دوی يې پيژندل هم خو دوي يې نه وژل حكمت دادي چې بخاري يو حديث راوړي وايي چې رسول الله ﷺ حضرت عمر ﷺ ته وويل : (اكره ان يتحدث العرب ان محمداً يقتل اصحابه) يعني زه دانه خوښوم چې عرب دی ووايي محمد خپل ملګري وژني. (۲)

## لطيفه :

علامه ابن قيم وايي د الله ﷻ په دې قول كې فكر وكړه چې فرمايي : (ذهب الله بنورهم) او داسې يې ونه ويل (ذهب الله بنارهم) سره له دې چې همداسې مناسب وو څكه د آيت له لومړي پيل سره به مطابق ؤو چې هغه داده (استوقد ناراً) چې په اور كې څلا او سوځل دواړه شته نو الله ﷻ يې يوازې څلا وركه كړه او سوځل يې پاتې دی

---

(۱) د بلاغت د دغه بيلګي د مثال په ډول راوړل شوي او په دې كې حصر نه دی څكه د الله ﷻ كلام معجز او بې شماره محسنات پكې دي

(۲) داسې ابن كثير ليكلي كذا في المختصر ۳۳/۱.

او پدې کې هم فکر وکړه چې څرنګه يې وفرمايل: (بنورهم) او داسې يې ونه ويل (بضوئهم) څکه چې ضوء په نور کې زياتوالى ته وايي که چېرې يې (بضوئهم) ويلى وايې نو به داسې ګومان کيدو چې هغه د نور زياته برخه يې وړې او اصلي نور پخپل ځاى پاتې دى، او پدې کې هم فکر او سوچ وکړه چې څرنګه يې نور يوازې ذکر کړى او بيا يې فرمايلي دى (وتركهم في ظلمات) ظلمات يې د جمعې په صيغه ياد کړل څکه چې حق يو او صراط المستقيم ده، بلکه لاره نشته خو د باطل لارې ګڼې او څانګې څانګې دى نو الله ﷻ حق يو او واحد بللې دي او باطل يې د جمعې په صيغو ډير ځايونه ذکر کړى لکه: (يُخْرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ) [البقرة: ۲۵۷] (وَجَعَلَ ٱلظُّلُمَٰتِ وَٱلنُّورَ) [الانعام: ۱] او دا قول (وَأَنَّ هَٰذَا صِرَٰطِى مُسْتَقِيمًا فَٱتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا۟ ٱلسُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِۦ) [الانعام: ۱۵۳] د باطل لارې يې جمع او د حق لاره يې يوه وبلله(۱)

## الله تعالى فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعْبُدُوا۟ رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُمْ وَٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿٢١﴾ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ فِرَٰشًا وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءً وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ۖ فَلَا تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٢﴾ وَإِن كُنتُمْ فِى رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا فَأْتُوا۟ بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِۦ وَٱدْعُوا۟ شُهَدَآءَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٢٣﴾ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا۟ وَلَن تَفْعَلُوا۟ فَٱتَّقُوا۟ ٱلنَّارَ ٱلَّتِى وَقُودُهَا ٱلنَّاسُ وَٱلْحِجَارَةُ ۖ أُعِدَّتْ لِلْكَٰفِرِينَ ﴿٢٤﴾ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ۖ كُلَّمَا رُزِقُوا۟ مِنْهَا مِن ثَمَرَةٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوا۟ هَٰذَا ٱلَّذِى رُزِقْنَا مِن قَبْلُ ۖ وَأُتُوا۟ بِهِۦ مُتَشَٰبِهًا ۖ وَلَهُمْ فِيهَآ أَزْوَٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۖ وَهُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢٥﴾ ﴾

البقرة: ۲۱ - ۲۵

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله ﷻ درې ټولګي يعني مؤمنان، کافران او منافقان ذکر کړل او د دوى توپير يې په نيکمرغي او بدمرغي کې يا ايمان او نفاق کې ياد کړ مثالونه يې ورته راوړل د ګمراهي لارې يې په ګوته کړې دلته يې وروسته دالله د وحدانيت دلائل او براهين راوړل خلګ يې د الله په نعمتو وپوهول تر څو شکر پر ځاى کړى او دوى ته يې په دې هکله خطاب وفرمايو چې: (يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ) او دغه ټولو پرګنو ته خطاب دى کوم چې الله ﷻ پنځولي (پيداکړي) او روزي يې ورکړې ده او څرګنده معجزه (قرآنکريم) يې رالېږلې چې له زړونو څخه يې د شک او شبهې جرړې وباسي.

(۱) د قاسمي له محاسن التأويل څخه را اخيستل شوى دى.

لغتونه:

(خلقکم) خلق ایجاد او هغې اختراع ته وايي چې پخواني مثال يې نه وي په اصل کې خلق تقدير او اندازې ته ويل کيږي لکه چې وايي (خلق الأديم للسقاء) يعني څرمن يې داوبو دڅي لپاره سمه کړې ده. حجاج وايي: (ما خلقت الا فريت ولا وعدت الا وفيت) يعني ما دڅه شي تقدير نه دی کړی مګر بيا مې سرته رسولی دی او وعده مې نه ده کړې مګر پر ځای کړې مې ده (فراشا) هغه فرش ته وايي چې انسان ورباندې کښيني يا ځملي (بناء) هغه چې بنا کيږي او دريږي لکه خيمه، او قبه يا کوټه او خونه (انداد) دند جمع ده او ند ساري او سيال ته ويل کيږي څکه دعلم کلام علماء وايي (ليس لله ندّ ولا ضد) يعني نه الله ﷻ لره سيال شته او نه يې ضد (مخالف) زمخشري وايي (ند) هغه مثل او سيال ته وايي چې مخالف قدرت وي (۲) (وقودها) وقود ازوغ دسوند مواد هغه چې اور ورباندې بليږي قرطبي وايي وقود په زور سره دبلولو او سوځولو موادوته وايي او دواو په پيښ سره بيا مصدر دي چې معنا يې بليدل دي(۱) (أعدت) تيار کړل شوي دي بيضاوي وايي (اعدّت لهم) يعنی (هيئت لهم) معنا دا چې تيار شوي دی ددوی دعذابولو لپاره. (بشر) بشارت خوښونکي خبر لره ويل کيږي او کله چې دشر په خبر کې استعمال شي بيا د تهکم او ملنډو معنی لري لکه (فبشرهم بعذاب اليم) (ازواج) دزوج جمع او نارينه ښځي دواړو ته زوج وايي څکه نارينه دميرمني زوج دی او ميرمن دنارينه زوج لکه چې الله ﷻ فرمايي (اسکن انت وزوجک الجنة) (خالدون) تل تر تله (هميشه).

تفسير:

پداسي حال کي چې الله ﷻ خپل بندګان وحدانيت ته متوجه کوي نو داسي دلائل بيانوي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ رَبَّكُمُ ﴾ (اې خلګو درب خپل عبادت وکړی) يعنی اې بنيادمانو دالله ﷻ ستر نعمتونه په ياد کړی او دهغه الله ﷻ هغه چې تاسو يې روزلي او پاللی ياست عبادت وکړی دهغه عبادت په توحيد او شکر يې په نعمت ادا کړی ﴿ ٱلَّذِي خَلَقَكُمۡ وَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ ﴾ (هغه رب) چې پيدا کړی يې يې تاسو او هغه کسان چې پخواله تاسو وو) يعنی هغه ذات چې تاسو يې پخپل قدرت له نيستي څخه هست کړی او تر پخوا له تاسي امتونه يې هم پيدا کړي وو ﴿ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ﴾ (دپاره ددې چې ځان وساتی له عذابه (دده) يعنی تر څو تاسي دمتقينو په ډله کي له برياليو او ژغورل شوو کسانو څخه وګڼل شی بيضاوي وايي: کله چې الله مکلف ټولګي وشميرلي نو بيا يې دوی ته دالتفات په توګه داسي خطاب وفرمايل چې اوريدونکی وخوځوي او هغه راوبيښ او بيدار کړي اوبل ددې لپاره چې دعبادت په هکله اهتمام او دهغه شان ستر څرګند شوی وی، هوکي په قرآنکريم کي چې ډير ځله په کلمه د ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ﴾ سره خطاب راغي ددې لپاره چې په هغه کي دتاکيد څو وجهي شته او هر کله چې الله ﷻ خپلو بندګانو ته غږ او ندا کوي هلته به ستر امور وي چې له هغوی سره به ښايي ترڅو بندګان ورته ځير او په زړونو ورته

(۲) القرطبي ۱/۲۳۰.
(۱) الکشاف ۱/۷۲.

متوجه شي که څه هم ډیر کسان خو ورځخه غافل وی نو پداسي وخت کي هغه غږ او وینا ښايي چي بليغه او تاکید لرونکي وی (۲) بیا الله ﷻ خپل نعمتونه ورپه یاد کړل چي: ﴿ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ فِرَٰشًا ﴾ هغه ذات چي ګرزولي يې ده ځمکه تاسي ته فرش) يعنى تاسو يې سره له دې چي مځکه ګردی، او کروي ده لکه فرش غوندي استعمالولای شی، او داد الله ﷻ نعمت ده که نه نو تاسي ته دهغه استعمال غير ممکن وو ، بيضاوي وايي الله ﷻ مځکه داسي تياره کړې چي انسانان وربا ندی کښيني او پريوزي ناستي او څملاستي يې دواړه ممکن دی او که څه هم مدوره او کروي ده خو دومره پراخه ده چي دانسانانو داستعمال لپاره پکي هيڅ ستونزه هم نه شته (۳)

﴿ وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءً ﴾ (او ګرځولی يې دی آسمان چت) يعنی آسمان يې لکه قبه غوندي په مځکه چت جوړ کړی دی

﴿ وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ (او راتوی کړی يې دی (له طرفه) داسمانه اوبه ) يعنی باران دخوړو اوبو يې له وريځي راوورولی دی ﴿ فَأَخْرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ﴾ (پس راويې ايسته پدې اوبو سره له هرډول ميوو څخه روزي تاسی ته ﴿ فَلَا تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ پس نو مه ګرزوی له الله ﷻ سره شريکان حال دا چي تاسي پوهيږی ) يعنی تاسي له الله ﷻ سره دبتانو او انسانانو شريکان مه نيسی، چي عبادت يې کوی، او تاسي پدې هم پوهيږی چي دغه شريکان نه څوک پنځولای (پيدا کولای) او نه هم روزي ورکولای شی او يوازي الله ﷻ خالق او رازق ذوالقوة المتين ذات دی ابن کثير وايي الله تعالی دالوهيت دوحدانيت په پيلولو کی داسي وفرمايل چي هغه پخپلو بندګانو نعمتونه پيرزو کړی له عدم څخه يې پيدا کړی او بيا يې وربا ندی ډول ډول نعمتونه لورولی او په (سما ) سره دلته مراد وريځ ده ځکه الله له وريځي اوبه ددوی داړتيا په وخت کي رانازلوی او بيا ډول ډول ميوې داني وربا ندی زرغونوي تر څو ددوی او ددوی دځارويو لپاره غذاشي خلاصه دا چي الله ﷻ دخلکو پيدا کونکي او روزي ورکونکی دی نو هغه ددې وړ او لائق ده چي يوازي دهغه عبادت وشي او څوک ورسره شريک ونه نيول شي (۱) بيا الله ﷻ دتوحيد دلائل چي دنبوت حجت او دقرآنکريم اعجاز ښيي داسي بيان

کړل. ﴿ وَإِن كُنتُمْ فِى رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا ﴾ او که چيری تاسي په شک کي ياست له هغه (قرآنه) چي تو ته تو ته مو پخپل بنده نازل کړی ) يعنی اې خلکو که تاسي ددغه قرآن په رښتنولی کي چي بيان ،تشريع ،او نظم يې معجزه ده شک او شبه لری کوم چي موږ پخپل بنده او پيغمبر حضرت محمد ﷺ نازل کړی دی نو ﴿ فَأْتُوا۟ بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِۦ ﴾ (نو راوړی يو سورت په شان دده ) يعنی ددې قرآن دفصاحت بلاغت او بيان په مثل يو سورت ولولی.

﴿ وَٱدْعُوا۟ شُهَدَآءَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ او راوبولی مدد ګاران خپل بې له الله) څخه) يعنی پر ته له الله ستاسو هغه مددګار او مرستندويان چي له تاسي سره دقرآنکريم په معارضه او انکار کي ملګری دی هم راوغواړی، مراد دادی چي له خدايه پرته که هر څوک غواړی، ورځخه مرسته وغواړی، بيضاوی وايي مقصد دادی چي راوبولی دمعارضي لپاره هر څوک چي تاسي يې دمرستي هيله کوی، که انسان وی که پيری او که ستاسی نور معبودان (۲) چي بغير له الله ﷻ څخه وی دوی هم نشي کولای داډول سورت راوړي يوازي الله ﷻ وربا ندی قادر او توانا دی

﴿ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ که چيری تاسي رښتيا ويونکي ياست (چي دادانسان کلام دی) او ځواب يې حذف شوی چي مځکی وينا وربا ندی دلالت کوي ﴿ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا۟ ﴾ (که ونه کړای شی، دغه کار) چي يو داسي سورت

---

(۳) البيضاوي ۱/۱۲.

راوړي او پخوا هم تاسي ندی کړی چې داسي آيتونه راوړي چې له قرآن سره سم او يا ورسره ورته وی سره له دې چې له فصاحت لرونکو ژب غړاندو او دبلاغت له څښتنانو مومرسته غوښتي ده ﴿ وَلَن تَفۡعَلُواْ ﴾ او له سره به يې ونکړای شي چې په راتلونکي کی دغه کار تر سره کړی، دغه جمله معترضه او مقصد يې دادي چې بشر به په حاضر او مستقبل کي دغه توان ونلري لکه چې الله فرمايي: ﴿ لَا يَأۡتُونَ بِمِثۡلِهِۦ وَلَوۡ كَانَ بَعۡضُهُمۡ لِبَعۡضٖ ظَهِيرٗا ﴾ [الاسراء: ۸۸] ابن کثير وايي چې دوی ته قرآنکريم چېلنج ورکړ دوی دټولو امتونو فصيح امت وو خو بيا هم عاجزه شول (لن) په مستقبل کي دنفي تاکيد کوي چې ګردسره به ونکړای شي او دا هم يوه معجزه ده چې په غوڅه توګه يې اخبار وکړ چې دغه قرآن به تل تر تله معجز او په هيڅ وخت به يې په وړاندی معارض نشي دريدلای او همداسي وشول چې له هغې ورځي تر نن پوري يې هيڅ مخالف سيال کلام ندی را ډبره شوی او څوک چې په قرآنکريم کي سوچ وکړي نو داعجاز له وجوهاتو او اسبابو څخه به ډير پټ او څرګند فنون په لفظ او معنی دواړو کي ومومي چې بيخي زيات به فصيح او دبيان خاوند وی هغه کسان به ورباندی پوهيږي څوک چې دعربو کلام او لغت پيژني

جوړښت او تصاريف يې ورته معلوم وي ﴿ فَٱتَّقُواْ ٱلنَّارَ ﴾ (نو وويريږی له اورڅخه ) يعنی دالله ﷻ له عذاب او ددوزخ له اور څخه وويريږی، هغه چې الله ددروغجنو لپاره جزا ټاکلې ده ﴿ ٱلَّتِي وَقُودُهَا ٱلنَّاسُ وَٱلۡحِجَارَةُ ﴾ (هغه چې خس خاشاک يې بنيادمان او ډبري دی) هغه بتان چې دوي به يې پرته له الله څخه عبادت کاوو لکه چې الله فرمايي: ﴿ إِنَّكُمۡ وَمَا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ﴾ [الأنبياء: ۹۸] تاسو او پرته له الله نه ستاسو معبودان د دوزخ ازوغه ياست ، مجاهد وايي: الله تعالی به کافرانو ته په کبريت ډبري چې تر مړژګه به بد بويه وي په اور کي عذاب ورکوي ﴿ أُعِدَّتۡ لِلۡكَٰفِرِينَ ﴾ (دغه اور ) د کافرانو لپاره تيار کړي شوي دي، چې دوي ته به پکښي ډول ډول خوارونکي دسپکاوی عذابونه ورکول کيږي، کله چې الله هغه څه ياد کړل چې د دښمنانو لپاره يې تيار کړي ورپسي هغه څه يادوي چې دوستانو ته يې ورکوي څکه دغه د قرآن کريم اسلوب دي چې ترهيب او ترغيب يو په بل پسي ذکر کوی ويې فرمايل: ﴿ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ او زيری ورکړه (اې محمده) هغو کسانو لره چې ايمان يې راوړی او کړی يې دی ښه عملونه يعنی ايمان او عمل صالح يې يوځای کړی ﴿ أَنَّ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ ﴾ چې بيشکه دوی لره جنتونه دی چې بهيږي (لاندی تر ماڼيو او ونو ) دهغو ويالې(۱) ﴿ كُلَّمَا رُزِقُواْ مِنۡهَا مِن ثَمَرَةٖ رِّزۡقٗا ﴾ هر کله چې روزي ورکړه شی دوی ته له دغو جنتونو څخه ميوه لپاره دخوړلو ﴿ قَالُواْ هَٰذَا ٱلَّذِي رُزِقۡنَا مِن قَبۡلُ ﴾ وايي دوی چې دا همغسی ميوه ده چې موږ ته پخوا له دې راکړل شوې وه مفسرين وايي چې جنتيانو ته به ملايک ميوې راوړي کله چې يې ددوهم ځل لپاره ورکړي دوی به وايي چې دا هغسي دی چې پخوا موراکړې وې ملايک به ورته وايي: اې دالله بنده وخوره رنګ يې يودی خو خوند يې جلاجلا (۲) الله ﷻ فرمايي: ﴿ وَأُتُواْ بِهِۦ مُتَشَٰبِهٗا ﴾ (او رابه وړل شي دوی ته ميوه هم رنګه ) يعنی

---

(۱) په حديث شريف کي راځي چې دجنت نهرونه به پولي نلري.
(۲) خيني مفسرين وايي چې د (رزقنا من قبل) معنا دادی چې په دنيا کي يا دوي خو بهتره داده چې ابن عباس وايي چې دا په جنت کي ده او په دنيا کي پرته دجنت له نومونو بل هيڅ نشته .

په رنګ او منظر به يو ډول ښکاري خو خوند او لذت به يې بېل وي ابن جرير وايي په رنګ او شکل کې به متشابه خو په خوند او ذائقه کې به هغسې نه وي ابن عباس وايي دجنت هيڅ څيز ددنيا له شيانو سره مشابه نه دی يوازې په نومونو کی ورسره مشابهت لري﴿ وَلَهُمْ فِيهَآ أَزْوَٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ ﴾ (وي به دوی لره پدې جنتونو کي ښځي ښې پاکي سوتره) يعنی حوري چې له ټولو حسي او معنوي چټلتيا ووبه پاکي وی هغه به دجنتيانو ميرمني وی ابن عباس وايي: پاکي به وی له چټلي او ښځينه امراضو، مجاهد وايي پاکي به وی له حيض، نفاس، بولو او غټو متيازو او هم دا رنګه دپوزي له ګرنګو او دستوني له بلغمو به پاکي وی او داسي هم راغلي چې ددې دنيا ميرمنی به هلته تر حورو لاښائسته وی لکه چې الله وايي: ﴿ إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ إِنشَآءً ﴿٣٥﴾ فَجَعَلْنَٰهُنَّ أَبْكَارًا ﴿٣٦﴾ عُرُبًا أَتْرَابًا ﴿٣٧﴾ ﴾ [الواقعة: ۳۵ - ۳۷] ﴿ وَهُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ (او دوی به په دغه جنتونو کی هميشه وی) او دا بشپړه نيکمرغی او سعادت دی چې تل ترتله له خپلو ميرمنو سره په داسي ښيغښه د[illegible] جنتونو په ځای کي اوسي.

## بلاغت:

۱. کله چې الله ﷻ فرمايي (ٱعْبُدُوا۟ رَبَّكُمُ) او مخاطبينو ته د(رب) اضافت کوی دا د تفخيم او تعظيم لپاره دي

۲. په (عَلَىٰ عَبْدِنَا) کي اضافت دتشريف او خانګړتيا (تخصيص) لپاره دي او دا هغه تر ټولو اشرف وصف دی چې رسول الله ﷺ يې وربا ندی ستايلی دی.

۳. تعجيز لکه (فَأْتُوا۟ بِسُورَةٍ) امر له خپلي صيغې څخه راوتلی او دتعجيز معنی څني اخيستل کيږی او سورت چې يې نکره ذکر کړی دعموم او شمول اراده يې شوی ده.

۴. لطيفه مقابله لکه: (جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ فِرَٰشًا وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءً) څکه دلته يې دمځکی او آسمان تر منځ مقابله او د(فرش) او چت تر منځ مقابله راوړي چې دا هم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کيږي.

۵. اعتراضية جمله لکه:(وَلَن تَفْعَلُوا۟) چې دوی لپاره تحدی (چيلنج) شی چې داسي بشپړ عجز مو په برخه دی چې په هيڅ وخت او زمان کي به و نه توانيږي.

۶. دکنايي په راوړلو ايجاز او لنډون لکه: (فَٱتَّقُوا۟ ٱلنَّارَ) يعنی که له راوړلو عاجز شوی بيا نو ددوزخ له اوره وويريږی او دقرآن رښتنولي ومنی.

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَسْتَحْىِۦٓ أَن يَضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا ۚ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ۖ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَيَقُولُونَ مَاذَآ أَرَادَ ٱللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا ۘ يُضِلُّ بِهِۦ كَثِيرًا وَيَهْدِى بِهِۦ كَثِيرًا ۚ وَمَا يُضِلُّ بِهِۦٓ إِلَّا ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٢٦﴾ ٱلَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ مِيثَٰقِهِۦ وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِهِۦٓ أَن

يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٢٧﴾ كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَكُنتُمْ أَمْوَاتًا فَأَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢٨﴾ هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٩﴾ ﴾ [البقرة: ٢٦ - ٢٩]

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله ﷻ په قاطع دليل او څرګند برهان سره دا ښکاره کړه چې قرآنکريم دالله ﷻ کلام او داعجاز خاوند په خاتم النبيين نازل شوی دی دوی ته يې بلنه ورکړه که کولای شي يو سورت دی همداسي جوړ کړی نو دلته يې هغه دکافرانو شک او شبه ذکر کړه ، کومه چې دوی به ويل په قران کريم کی دمچی ، مچ ، تناوکښ (جولاګی) او ميږي نومونه راغلي او دا دفصاحت له خاوندانو سره نه ښايي څه خولا دالله ﷻ سره ،الله يې ددغی شبهې ځواب داسي ورکړ چې ددغو شيانو کوچنی والی دقرآنکريم په فصاحت او اعجاز کی څه تاوان نه پيښوي کله چې مثال په سترو حکمتونو مشتمل وی بيا هيڅ عيب او عار نه دي.

## لغتونه:

(حيا )هغه تغيير او انکسار ته وايي چې انسان ته کله چې دکوم کار له عيب او بدی څخه ويره لری پيښيږي او دلته يې لازم مراد دی چې هغه ترک او پريښودل دی ، زمخشري وايي چې الله ﷻ دماشي مثال راوړل نه پريږدی لکه چې څوک يې دکوچنيتوب په وجه په يادولو شرميږي(١) (فمافوقها ) يا چې تر هغه هم کوچنی وی (الفاسقين) فسق دعربو په کلام کی له يو شی څخه وتلوته وايي او منافق ته ځکه فاسق ويل کيږی چې دالله ﷻله طاعت څخه متجاوز او وتلی دی فراء وايي چې فاسق دعربو له دې قول څخه اخستل شوی چې وايي (فسقت الرطبة من قشرها ) يعنی لمده خرما له پوټوکي څخه راووتله او فاسق ته ځکه (فاسق) وايي چې دالله ﷻ له طاعت څخه بهر وتلی دی او موږکی (مږی) ته ځکه (فويسقه) وايي چې دضرر رسولو لپاره بهر راوزي (٢) (ينقضون) نقض ماتولو او خرابولوته وايي هغه که مانۍ او ودانی وی او که پړی(رسی) او يا هم ژمنه او عهد لکه چې الله ﷻ فرمايي: (كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا) [النحل : ٩٢] او بل ځای فرمايي: (فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَاقَهُمْ ) [النساء :١٥٥] يعنی دوعدې په ماتولو ، (عهد ) وعدې او ژمنی ته وايي چې يوانسان يې له بل سره په ټينګه کوی (الميثاق) هغه محکم عهد چې لوړه اوقسم هم پری اخيستی شوی وی او دا تر عهد کلک او ټينګ يا زيات دی (استوی) په اصل کی سمولو او اعتدال ته وايي لکه چې وايي (استوی العود ) لرګي برابرشو کله چې ودريږي او سم شي او کله چې وايي (استوی اليه کالسهم) يعنی دهغه قصد او تګل يې دغيشي په شان په سم او برابر قصد

(١) الكشاف١/٥٨.

(٢) تفسير كبير للرازي٢/١٤٧.

سره وکړ ثعلبي وايي: (دا ستواء معنی يو څيز ته مخه کول دی(۱) (فسواهن) برابر يې کړل او څوک بيا وايي چې ويې ګرزول.

## دنزول سبب:

کله چې الله ﷻ غوماشی او عنکبوت (جولاګی) په قرآن کي ذکر کړل اود مشرکينو مثال يې راوړ نو يهودانو وخندل او ويې ويل داد خدای له کلام سره مشابه نه ده الله تعالی ددې حقيروشيانوله يادولو څه غواړی؟ نو الله ﷻ دا آيتونه رانازل کړل. (۲)

## تفسير:

الله ﷻ ديهودو او منافقينو دګومان دترديد لپاره فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَسْتَحْيِۦٓ أَن يَضْرِبَ مَثَلًا مَّا ﴾ (يعنی الله نه پريږدی چې بيان کړي يو مثال له مثالونو ) که په هر شي باندي وي کوچنی او که لوی وي؟ ﴿ بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا ﴾ غوماشی وی او که تري پورته يعني که څه هغه هم په سپکتيا او کوچني والي کی حقير وی خوځرنګه چې له خلقت او پيدا کولو څخه يې نه پريږدی همداسي له مثال راوړلو يې هم نه پريږ دی ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ﴾ پس هغه کسان چې مؤمنان وی پوهيږی چې الله ﷻ حق او دا مثال هم الله بيان کړی نو حق دی ﴿ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَيَقُولُونَ مَاذَآ أَرَادَ ٱللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا ﴾ او هغه کسان چې کافران شوی دی وايي چې څه څيز اراده کړی ده الله ﷻ په دې مثال سره؟ دوی تعجب کوی چې الله پدې حقير او ذليلو شيانو له مثال راوړلو څخه څه غواړی؟ الله ددوی په رد کی وفرمايل: ﴿ يُضِلُّ بِهِۦ كَثِيرًا وَيَهْدِى بِهِۦ كَثِيرًا ﴾ (داسي اراده کړې ده الله ﷻ ) چې ګمراه کوي پدې مثال سره ډير خلق او يسمه لاره ښيي پدې سره ډيرو خلقوته، يعني دهدايت سبب يې جوړ شي ﴿ وَمَا يُضِلُّ بِهِۦٓ إِلَّا ٱلْفَٰسِقِينَ ﴾ او نه ګمراه کيږی پدې مثال سره مګر فاسقان؟ هغوی چې دالله له طاعت څخه وتلی او سر غړونکی وی دالله ﷻ آيتونه نه مني بيا الله ددوی صفتونه داسي وګڼل: ﴿ ٱلَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ مِيثَٰقِهِۦ ﴾ (هغه کسان چې ماتوی دالله عهد وروسته دهغه له ټينګوالی) يعنی دوی هغه عهد ماتوی چې په اسمانی کتابو نو کي راغلی چې په محمد رسول الله به ايمان راوړی او هغه وروسته له دې چې په دوی ټينګ او محکم شوی هم وو ، او يا هر عهد ماتوی چې په الله ﷻ ايمان په پيغمبرانو تصديق او په شرعي حکمونو عمل کول دی. ﴿ وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِهِۦٓ أَن يُوصَلَ ﴾ او پرې کوي هر هغه څه چې حکم کړی دی الله ﷻ چې پيوند دی کړل شی) هغه که دخپلوانو صله رحمی وی يا بل څه،

(۱) الصاوی علی الجلالين ۱۹/۱ الکشاف ۹۲/۱.
(۲) القرطبی ۲۴۴/۱ صاوي ۱۷/۱.

لفظ عام دی هر هغه پرې کړل شوی ته وایی چې الله ﷻ یې نه خوښوي لکه دانبیاوو سره پریکړون دخپلوانو سره او دمسلمانانو تر منځ دموالات او دوستی شلول. ﴿وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ﴾ (او فساد کوی دوی په مځکه کی) په ګناهو نو فتنو اچولو له ایمان څخه دراګرزولو او دقرآن کریم په هکله شکونو او شبهاتو دخپرولو په لاره کی ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾ (دغه کسان هم دوی دی زیان کاران) یعنی دا یادشوی کسان چې داسي بدصفتونه لری زیانکاران دی څکه دوې ګمراهي په هدایت اخیستی (پیرودلي) ده عذاب یې په بښنه او مغفرت بدل کړي او تل ترتله ددوزخ اوسیدونکي دي ﴿كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ﴾ (څرنګه په الله کافران کیږئ؟) استفهام دتوبیخ او انکار لپاره دي یعنی له هغه پیدا کونکی او پنځونکی الله څخه څرنګه انـــکار کوی؟ ﴿وَكُنتُمْ أَمْوَاتًا﴾ (دا چې وی تاسي مړه) نطفې واست دپلرونو په ملا وواو دمیندو په ارحـــامــو کي. ﴿فَأَحْيَاكُمْ﴾ بیا یې ژوندی کړی تاسي ،یعني دنیاته یي راوستلاي ﴿ثُمَّ يُمِيتُكُمْ﴾ بیا به الله ﷻ مړه کړي تاسي کله چې مواجل راورسیږي ﴿ثُمَّ يُحْيِيكُمْ﴾ بیا به موژوندی کړی تاسي په بعث سره ﴿ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ (بیا به ده ته وروستل شی) دجزا او حساب لپاره وروسته بیا الله ﷻ په بعث باندی دلیل ذکر کړ چې ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا﴾ (الله) هغه ذات دی چې پیدا کړی یې دی تاسي ته په مځکه کي ټول شیان ؛ ستاسي دګټی لپاره څو تاسي وپوهیږئ چې الله خالق او رازق دی ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ﴾ بیا یې قصد وکړ آسمان ته ) یعنی خپله اراده یې آسمان ته متوجه کړه ﴿فَسَوَّاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ﴾ نو برابر یې کړل دوی اوه اسمانونه ) چې محکم او ټینګه بنا لری او دا دالله دقدرت څرګند دلیل دی ﴿وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ (او دې په هر څه باندی ښه عالم دی) یعنی هغه په هر مخلوق او پنځول شوی ښه عالم او پوه دی ایا تاسو له دې نه عبرت نه اخلی ؟ چې قادر ددې شیانو په پیدا کولو (چې هغه تر تاسي ډیر ستر دی) ستاسي په بیارا ژوندي کولو هم قادر دی؟ هو الله ﷻ په هر څه باندی توانا او قادر دی.

## بلاغت:

داکلام چې فرمایي: (لَا يَسْتَحْيِي) مجاز ده چې ملزوم راوړل شوی او لازم څنی اراده کیږي معنی یې دا چې نه پریږدی نو له پریښودلو څخه یې په حیا تعبیر وفرمایه چې پریښودل دحیاله ثمراتو اولوازمو څخه دي او څوک چې دیو شی له کولو شرمیږي نو هغه نه کوی.(۱)

۱ - پدې قول کی چې (يَنقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ) مکنیه استعاره ده څکه رسۍ یې له عهد سره مشابه کړه مشبه به یې حذف او دهغه له لوازمو څخه یې یو لازم ته اشاره وکړه چې نقض اوماتول دی.

۲ - دا وینا چې فرمایی: (كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ) التفات دی او هغه هم له غیبت څخه خطاب ته چې مقصد پکي توبیخ او ترټل دی دا هم دبدیعی محسناتو څخه بلل کیږي.

(۱) زمخشری.

۳ - (عَلِيمٌ) دمبالغې صيغه ده چې دپراخ علم خاوند ته ويل کيږي هغه چې په ټولو شيانو راګرزيدلی وي ابوحيان وايي: چې الله ﷻ خپل ځان په (عالم ، عليم او علام) صفتونو ستايلی دی چې و ...ستي دوه يې دمبالغې لپاره دي او عرب په علام کی دمبالغې دتاکيد لپاره (ها) هم زياتوی چې علامة ورته وايي خو دا صفت دالله ﷻ لپاره روانه دي (١)

## ګټي او فائدې:

لومړۍ فايده: زمخشري وايي مثال ددې لپاره وی چې معنی څرګنده او له مقصد څخه پرده پورته شي ايا ته نه ګورې څرنګه چې حق څرګند او ښکاره وی نو دهغه لپاره په ځلا او روښنائي مثال راوړل کيږی او باطل چې دحق په ضد دی دهغه لپاره په تاريکی او ظلمت مثال ويل کيږی او څرنګه چې هغه دکفارو بتان او معبوان چې له الله سره يې شريکان او سيالان ګڼل تر هغوی سپک او حقير بل هيڅ شی نه وو نو يې دجولاګي (عنکبوت) په ځاله چې ډيره ضعيفه او کمزوری وی ددوی لپاره مثال راوړ (كَمَثَلِ ٱلْعَنكَبُوتِ ٱتَّخَذَتْ بَيْتًا) او تر مچ پيدا کولو يې ددوی قدر او منزلت سپک وګانه چې فرمايي: (لَن يَخْلُقُوا ذُبَابًا وَلَوِ ٱجْتَمَعُوا لَهُۥ ۖ وَإِن يَسْلُبْهُمُ ٱلذُّبَابُ شَيْـًٔا لَّا يَسْتَنقِذُوهُ مِنْهُ) (او تعجب ددوی (يهودو) په حال دی چې څرنګه ددې څخه انکار کوی؟ سره له دې چې خلک په ځارويو او مرغانو باندی مثالونه راوړی او دعربو دغه مشهور مثالونه چې په ښارونو او بيديا وو کی يې اوريدل کيږی هم ددوی په وړاندی دی. (٢)

دوهمه فائده: اضلال يې له هدايته مخکي ذکر کړی چې (يُضِلُّ بِهِۦ كَثِيرًا وَيَهْدِى بِهِۦ كَثِيرًا) تر څو لومړی هغه څه په خواب کی ددوی غوږونو ته رسيږي چې ويرونکي خبره وي توان يې سلب کړی او د استقبال صيغه يې ددی لپاره غوره کړه چې استمرار او تجدد افاده کړي. (٣)

دريمه فائده: ابن جزی په تسهيل نومی کتاب کی وايي چې دغه آيت: (خَلَقَ لَكُم مَّا فِى ٱلْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ ٱسْتَوَىٰٓ إِلَى ٱلسَّمَآءِ) ددې غوښتونکی دی چې اسمان تر مخکه وروسته پيدا شوی او دا آيت چې فرمايي: (وَٱلْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَىٰهَآ) ظاهريې دلومړی خبري خلاف دي خواب يې په دوه ډوله دی يو دا چې مخکه تر آسمان له مخه پيدا شوې خو ويره شوې وروسته ده او بل دا چې (ثم) کلمه داخباری ترتيب لپاره راوړل شوې ده نو دآيتونو تعارض به نه راځي. (٤)

***

---

(١) البحر المحيط.
(٢) الکشاف ٨٣/١.
(٣) ارشاد العقل السليم ٧٠/١.
(٤) التسهيل في علوم التنزيل ٤٣/١.

## الله تعالی فرمایي:

﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي ٱلْأَرْضِ خَلِيفَةً ۖ قَالُوٓا۟ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ ٱلدِّمَآءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ۖ قَالَ إِنِّيٓ أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٣٠﴾ وَعَلَّمَ ءَادَمَ ٱلْأَسْمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ فَقَالَ أَنۢبِـُٔونِي بِأَسْمَآءِ هَٰٓؤُلَآءِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٣١﴾ قَالُوا۟ سُبْحَٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَآ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْحَكِيمُ ﴿٣٢﴾ قَالَ يَٰٓـَٔادَمُ أَنۢبِئْهُم بِأَسْمَآئِهِمْ ۖ فَلَمَّآ أَنۢبَأَهُم بِأَسْمَآئِهِمْ قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ إِنِّيٓ أَعْلَمُ غَيْبَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَأَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ﴿٣٣﴾﴾ [البقرة: ۳۰ - ۳۳]

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله ﷻ خپلو بندګانو ته د پیدا ابښت او ایجاد نعمت وروپه یاد کړاو دا چې ټول په مځکه کې شیان يې ورته تابع ګرځولی له نیستي څخه يې هست کړی نو يې وروپسي هغه دلومړني خلقت او ددوی د پلار تشریف او تکریم هم ورته ذکر کړ کوم چې په مځکه کې يې خلیفه ګرځولی دکرامت په بڼ کی يې هستوګنه ورکړې او ملائکوته يې فرمایلی وو چې ورته سجده ولګوئ او پدې کښې شک نشته چې له پلار سره احسان لکه له اولاد سره احسان غوندی دی څکه نو داهم له هغو نعمتونو څخه شمېرل کیږي چې دوی ته ورکول شوی او یادول يې مناسب دی.

## لغتونه:

(اذ) دزمان ظرف او په حذف شوی فعل سره منصوب دی تقدیر يې داسي کیږي: (اذکر حین) او یا (اذکر وقت) او کله کله محذوف فعل هم ذکر کیږي لکه: (وَٱذْكُرُوٓا۟ إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ)[الأنفال: ٢٦] مبرد وایی که چېری (اذ) له مستقبل فعل سره راغی معنا يې دماضی فعل کیږي لکه: (وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ)[الأنفال: ٣٠] معنا يې دا چې دوی تکي کړي وه له تاسره او کله چې (اذا له ماضی سره راشی معنا يې داستقبال اخیستل کیږی لکه: (فَإِذَا جَآءَتِ ٱلطَّآمَّةُ ٱلْكُبْرَىٰ)[النازعات ٣٤]او یا (إِذَا جَآءَ نَصْرُ ٱللَّهِ وَٱلْفَتْحُ) یعنی کله چې راشی په راتلونکی وخت کی (١) (خلیفة) فعیل وزن او دفاعل په معنی چې (تا) لپاره دمبالغې دی او دخلیفة معنی نائب او دهغه څوک دی چې داحکامو په چلولو او دربانی اوامرو په تنفیذ مقرر وی الله ﷻ فرمایی (يَٰدَاوُۥدُ إِنَّا جَعَلْنَٰكَ خَلِيفَةً فِى ٱلْأَرْضِ)[ص: ٢٦] (یسفک) سفک وینوتو یولو او بهولو ته وایي او له وینو پرته دبل څه تویولو ته نه ویل کیږی په مصباح کی وایي چې (سفک الدم) معنی وینی يې توی کړې وې او باب يې ضرب (مفتوح العین) دی (تسبح) موږ تسبیح

(١) القرطبي ٢٢٢/١.

وايو دالله ﷻ ستاينه كوو؛ تسبيح پاكي ستايلو ته وايي هغه چې له بدي څخه پاكي او تنزيه وي(١) اصل د تسبيح له سبح څخه اخيستل شوی چې، هغه تگ او منډې ته وايي الله ﷻ فرمايي: (إِنَّ لَكَ فِي ٱلنَّهَارِ سَبۡحٗا طَوِيلٗا) [المزمل:٧] او څوک چې تسبيح وايي گواكي دالله په تنزيه ستايلو كې روان وي (ونقدس) او موږ ستا سپيڅلتيا كوو ، تقديس پاكي او سپيڅلتيا ته وايي او له هغه څخه ده (الارض المقدسة) و (وروح القدس) او ضد يې تنجيس او پليتي ده دالله تقديس معنى دهغه تعظيم او تمجيد او له هغه څيزڅخه پاكي چې ورسره نه ښايي په صحيح مسلم كې راغي چې رسول الله ﷺ په ركوع او سجده كي ويل (سبوح قدوس رب الملائكة والروح) (انبئوني) يعنى خبر راكړئ (نباء ) هغه زښته گټوري ؛ستري خبري ته وايي لكه چې الله ﷻ فرمايي (قُلۡ هُوَ نَبَؤٌاْ عَظِيمٌ) (تبدون) څرگندوئ تاسو (تكتمون ) پټوئ تاسو او له دې څخه دعلم اخفاء ده چې پټولو ته وايي.

تفسير:

﴿ وَإِذۡ قَالَ رَبُّكَ لِلۡمَلَٰٓئِكَةِ ﴾ (او ياد كړه هغه وخت اې محمده !) چې وويل پروردگار ستا پرښتوته) او ستاقوم ته دغه نكل واوروه ! ﴿ إِنِّي جَاعِلٞ فِي ٱلۡأَرۡضِ خَلِيفَةٗ ﴾ (چې بيشكه زه گرځوونكى يم په مځكه كي ديوه خليفه) هغه چې زما احكام تنفيذ كړي او يا يو قوم چې يو په بل پسى خلافت كوي له يوه نسل نه بل ته ،له يوې پيړۍ بلي ته دغه خلافت ليږدی ﴿ قَالُوٓاْ أَتَجۡعَلُ فِيهَا مَن يُفۡسِدُ فِيهَا ﴾ (او ويل دوی ايا گرځوې په مځكه كې هغه څوک چې فساد به كوي په دې كې) يعنى دوی دتعجب او معلوماتو تر لاسه كولو لپاره داسي وويل چې: څرنگه داسي څوک خليفه گرځوې چې په دوی كې به داسي كسان وي چې په مځكه كې به په گناهونو سره فساد كوي ؟﴿ وَيَسۡفِكُ ٱلدِّمَآءَ ﴾ او تويوي بهويني ، په ناحقه او تجاوز سره ﴿ وَنَحۡنُ نُسَبِّحُ بِحَمۡدِكَ ﴾ (او حال دا چې موږ تسبيح وايو سره دثنا ستا ،له هغه څه څخه ستا تنزيه كوو كوم چې له تاسره نه ښايي ﴿ وَنُقَدِّسُ لَكَ ﴾ (او نسبت دپاكي كوو تاته) يعنى ستا امر سترگڼو ستاذكر ياد له هغه څه څخه په پاكي ستا يو كوم چې ملحدونو پسى تړلي دي ﴿ قَالَ إِنِّيٓ أَعۡلَمُ مَا لَا تَعۡلَمُونَ ﴾ وويل الله ﷻ بيشكه زه پوهيږم په هغو اسرارو چې تاسي پرې نه پوهيږئ ) او زه دخليفه په پيدا كولو كى حكمت لرم چې تاسي ته معلوم نه دی ﴿ وَعَلَّمَ ءَادَمَ ٱلۡأَسۡمَآءَ كُلَّهَا ﴾ او وښودل آدم ته يې نومونه ټول ،ابن عباس ﷺ وايي چې دهر شي نوم يې وروښود آن تر دې چې كاسه او كاچوغه (چمچه) يې هم وروښودله ﴿ ثُمَّ عَرَضَهُمۡ عَلَى ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ ﴾ بيا يې وروړاندي كړل هغه ټول شيان پرښتوته (چې دوی عاجز كړي) ﴿ فَقَالَ أَنۢبِـُٔونِي ﴾ نو وې ويل خبر راكړئ ماته ﴿ بِأَسۡمَآءِ هَٰٓؤُلَآءِ ﴾ په نومونو ددې شيانو سره، هغه چې تاسي يې وينئ ﴿ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾ (كه چېرې تاسی رښتيا ويونكى ياست) ستاسى په هغه گومان

(١) طلحه بن عبيدالله وايي چې ما له رسول الله ﷺ څخه وپوښتل چې د سبحان الله تفسير څه دی ؟ ويل يې چې تنزيه له هري بدي څخه قرطبی ٢٧٢/١.

چې تاسو د خلافت حق درلود ونکی یاست ، لنډه دا چې الله ﷻ آدم ؑ ته په هغه علم او پوهه فضیلت وروبښل کوم چې ملائکوته یې نه وو ورکړی او له هغوی پرته یې آدم په بشپړ علم او پوهنه ونازاوه وخکه نو دوې هم په خپل عجز او قصور اعتراف وکړ. ﴿ قَالُوا۟ سُبْحَـٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَآ ﴾ وویل پرښتو نسبت د پاکی کوو تاته نشته هیڅ علم موږ لره مګر هغه چې ښودلی دی تا موږ ته ﴿ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَلِيمُ ﴾ بیشکه هم داته ښه عالم (پوه) یې علیم هغه څوک چې هیڅ څني پټ نه وي ﴿ ٱلْحَكِيمُ ﴾ او ښه د حکمت خاوند یې، هغه چې داسي هیڅ کار نکوي کوم چې د حکمت غوښتنه نه وی ﴿ قَالَ يَـٰٓـَٔادَمُ أَنۢبِئْهُم بِأَسْمَآئِهِمْ ﴾ وویل (الله) اې آدمه خبر کړه دوی په نومونو ددې شیانو ، هغه چې دوی یې له پوهیدلو عاجز شول او پخپل قصور یې اعتراف وکړ ﴿ فَلَمَّآ أَنۢبَأَهُم بِأَسْمَآئِهِمْ ﴾ کله چې (آدم) خبر ورکړو دوی ته په نومونو ددغو شیانو ، هر څیز یې پخپل نامه ونوماوو او د هغه د پیدایښت حکمت یې هم بیان کړ ﴿ قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ إِنِّىٓ أَعْلَمُ غَيْبَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ وویل (الله) ایا مانه ؤو ویلی تاسو ته چې بیشکه زه پوهیږم په پټو شیانو د اسمانونو او ځمکي ﴿ وَأَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ﴾ او په هغو شیانو چې ښکاره کوئ یې تاسي او په هغو شیانو چې تاسي یې پټوی ،ستاسي له هغی دعوې نه چې وایاست الله تر تاسي بهتر مخلوق نه پیدا کوي روایت کیږی کله چې پرښتو (ملائکو) د حضرت آدم ؑ د پیدایښت عجیبه فطرت ولید نو یې وویل هر څه چې یې رضاوي هغه دی وشي خو هیڅکله به الله ﷻ داسي مخلوق پیدا نکړي چې تر موږ زیات عزتمن وی بلکه موږ به تر هغه په الله ﷻ باندي عزتمن یو (١)

## بلاغت:

١ - تعرض د ربوبیت په عنوان لکه (وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ) سره له اضافت کولو رسول ﷺ ته چې تشریف او تکریم څنی معلومیږی او کله چې جار او مجرور مقدم کړی شول ددې لپاره چې د مقدم په هکله اهتمام او د مؤخر لپاره تشویق افاده کړي. د الله ﷻ پدې قول کی (أَنۢبِـُٔونِى) د امر صیغه له خپل حقیقت څخه راوزي او تعجیز ، تبکیت یې معنی ده (٢)

٢ - پدې قول د الله ﷻ کی چې فرمایی : (فَلَمَّآ أَنۢبَأَهُم بِأَسْمَآئِهِمْ )ایجاز بالحذف دی او تقدیر یې داسي راځي (فانبأهم بها فلما انبائهم ) او حذف ددې لپاره شوی چې معنی یې فهمول کیږی.

٣ - په (ثُمَّ عَرَضَهُمْ) کي چې د ناربنه عقلمندو لپاره جمع دي تغلیب راغلی که داسي نه وایي نو به یې فرمایل وو (ثم عرضها ) یا (ثم عرضهن).

د اطناب صنعت د فعل په څرګندونه لکه پدې قول کی چې (إِنِّىٓ أَعْلَمُ غَيْبَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ) او بیا (وَأَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ) تر څو په خبر کی اهتمام راشي او دا تنبیه څرګنده شي چې د الله تعالی علم په ټولو شیانو احاطه کړې دي

(١) مختصر ابن کثیر ٥٢/١ ، ابو السعود ٧٩/١.

(٢) د ابو السعود څخه

۴ - طباق لکه پدې کلمو کې چې (مَا تُبْدُونَ ) او (تَكْتُمُونَ) دی.

## فوائد او ګټې:

لومړۍ فائده: ځینو علماوو ویلي دي چې د الله پدې اخبار کې چې ملائکوته یې کړی چې آدم پیدا کوي او په ځمکه کې یې خلیفه ګرځوي بندګانوته تعلیم او ښوونه ده چې تر پخوا له کار کولو باید مشوره تر سره کړي.

دوهمه فائده: د آدم ﷺ له خلیفه ګرزولو ځخه حکمت په بندګانو د رحمت لوریینه ده نه دا چې الله محتاج ده ځکه بندګان خو یې واسطې نشي کولای د الله او امر او نواهی له الله ځخه تر لاسه کړي نو د الله له لطف، مرحمت او احسان ځخه ده چې دوی ته یې له بني نوع بشر ځخه استازی راولیږل.

دریمه فائده: حافظ ابن کثیر وایي چې ملکو دا قول چې (أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا...) په الله ﷻ داعتراض بڼه نه لري او نه هم له بني آدم سره درځي او کینې نښه ده، بلکه دغه د استعلام او استکشاف پوښتنه ده چې پدې کې څه حکمت ده چې انسان پیدا کوي؟ سره له دې چې په دوی کې ځیني کسان په ځمکه کې فساد کوي(۱)

په تسهیل کې وایي چې ملائکوته دغه خبر الله ﷻ ورښودلی ده چې بني آدم په ځمکه کې فساد کوي او چا بیا ویلي چې پخوا په ځمکه کې پیریانان وو او هغوی فساد کاوو چې بیا الله ﷻ ملائک ورته راواستول او پیریانان یې ووژل ملائکو په انسانانو هم د هغو پیریانانو اټکل کاوو (۲)

څلورمه فائده: له شعبي ځخه وپوښتل شول چې ایا شیطآن ښځه لري هغه ورته ویل ما داواده نه دی لیدلی بیا یې وویل چې کله ما ولوستل (أَفَتَتَّخِذُونَهُۥ وَذُرِّيَّتَهُۥٓ أَوْلِيَآءَ ) نو وپوهیدم چې اولاد خو له میر مني پرته نه وي نو مي ورته وویل هو کي ښځه لري (۳)

## الله تعالی فرمایي:

﴿ وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰ وَٱسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٣٤﴾ وَقُلْنَا يَٰٓـَٔادَمُ ٱسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ ٱلْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ ٱلشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٣٥﴾ فَأَزَلَّهُمَا ٱلشَّيْطَٰنُ عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ ۖ وَقُلْنَا ٱهْبِطُوا۟ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۖ وَلَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَٰعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿٣٦﴾ فَتَلَقَّىٰٓ ءَادَمُ مِن رَّبِّهِۦ كَلِمَٰتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴿٣٧﴾ قُلْنَا ٱهْبِطُوا۟ مِنْهَا جَمِيعًا ۖ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّى هُدًى فَمَن تَبِعَ هُدَاىَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٣٨﴾ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٣٩﴾ ﴾ البقرة: ۳۴ - ۳۹

(۱) مختصر ابن کثیر ۴۹/۱.

(۲) مختصر ابن کثیر ۴۹/۱.

(۳) محاسن التاویل ۱۰۴/۲.

## مناسبت او تړاو:

په تیرو آیتونو کی اشاره شوې ده چې الله ﷻ حضرت آدم ﷺ په خلافت غوره کړ او همدارنګه هغه ته یې پریمانه علم او پوهه ورکړه او پدې آیتونو کی دیو بل تکریم یادونه زیاته شوه چې هغه ته دملائکو سجده او هغوی ته په دې امر کیدل وو او دا دعزت او تکریم لپاره تر ټولو څرګند مثال دی چې بنی نوع بشر ته الله ﷻ وربښلی دی.

## لغتونه:

(اسجدوا) سجده په اصل کی کږوالي (انحنا) ته وایي چې دچا دعزت او تعظیم لپاره کول کیږی او په لغت کی عاجزی او خضوع او په اصطلاح کی تندی په مځکه لګولو ته سجده وایي (ابلیس) دشیطان نوم او عجمی دی او له ابلاس څخه راغلی یأس او ناامیدي ته وایي. (أبی) له ابا څخه راغلی او امتناع ته وایی هر هغه کار چې کول یې ممکن خو ځنی منع کوي دغه ته ابا وایي (استکبر) له استکبار نه اخستل شوی او کبر غرور ته وایي (رغداً) هغه پراخ او ډیر ته وایي چې څه تکلیف پکي نه وی درزق پراخی ته هم رغد وایي (فازلهما) په اصل کی له زلل څخه اخیستل شوی او هغه ښوئیدلو ته وایي لکه چې ویل کیږی (زلت قدمه) کله چې یې پښه وښوئیږی او بیا مجازا دګناه په کولو کی استعمال شو لکه چې وایي سړی وښوئیدو کله چې داسي کار وکړی چې دکولو نه وی او یا هغه یې وښویول چې یو څوک یې وغولوي یا تیر باسي.[1] (مستقر) دآرام او کرار ځای (متاع) هر هغه شی ته ویل کیږی چې سړی ورباندی ګټه اخلی لکه خوراک څښاک او لباس (فتلقي) تلقی په اصل کی استقبال ته وایي لکه چې څوک ووایی: (خرجنا نتلقی الحجیج) ددی لپاره راووتلو چې دحاجیانو استقبال وکړو او بیا دیو شي په اخیستلو او قبلولو کی استعمال شوه لکه چې وایي (تلقیت الرسالة من فلان) یعنی ما مکتوب له فلاني څخه واخیست اووې منل (فتاب) توبه یې قبوله کړه، توبه په اصل لغت کی رجوع ته وایي که چیري د(عن) په توري متعدی شوی وه نو له ګناه څخه رجوع یې معنا ده او که د(علی) په توري متعدی وه بیا یې دقبلولو معنا کیږی.

## تفسیر:

﴿ وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ﴾ او (یاد کړه اې محمده! خپل قوم ته) کله چې وویل موږ پرښتوته ﴿ اسْجُدُوا لِآدَمَ ﴾ چې سجده وکړی آدم ته، دتعظیم او احترام سجده نه دعبادت ﴿ فَسَجَدُوٓا إِلَّآ إِبْلِيسَ ﴾ پس سجده وکړه دوی ټولو پرته له ابلیس نه ﴿ أَبَىٰ وَاسْتَكْبَرَ ﴾ منع یې راوړه او لویي یې وکړه ﴿ وَكَانَ مِنَ الْكَٰفِرِينَ ﴾ او وو دي (لا له پخوا دالله په علم کي) له کافرانو څخه یعنی په همدې منع او استکبار سره له کافرانو څخه وګرځید و ځکه دالله ﷻ امر یې دسجدې کولو په هکله ونه مانو ﴿ وَقُلْنَا يَٰٓـَٔادَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ ﴾ (او وویل موږ اې آدمه واوسیږه ته او ښځه ستا (حواء) په جنت کي ﴿ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا ﴾ او خوری له میوو دجنت څخه پریمانه، څه

---

(۱) مختصر الطبري ۱/۳۲.

چې موزره غواړي ﴿ حَيْثُ شِئْتُمَا ﴾ هر چېرته چې مو خوښه وي، چې هلته يې وخورئ ﴿ وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ ﴾ (او مه نژدې کيږئ دې ونې ته) يعنى له دې ونى څخه ميوه مه خورئ ابن عباس وايي چې هغه دانګور ونه وه ﴿ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ که نژدې شوئ نو شئ به له ظالمانو څخه، هغه کسان چې ځانونه يې دالله څخه دعصيان په کولو ظالمان جوړ کړي او پخپلو ځانو نو يې ظلم کړی وی ﴿ فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ عَنْهَا ﴾ پس وښويول دوی دواړه شيطان له جنته، او که چېرې دعنها ضمير ونې ته راجع شي نو معنا يې داده چې وښويول شيطان دوی دواړه په سبب دخوړلو له هغې ونې څخه ﴿ فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ ﴾ نو راوېې ايستل دوی دواړه له هغو نعمتونو څخه چې دوی پکې وو ﴿ وَقُلْنَا اهْبِطُوا ﴾ (او موږ وويل چې کوز شئ) له جنت نه مځکې ته او خطاب آدم ﷺ، حواء ﷺ او ابليس لعين ته دی ﴿ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ﴾ حال دا چې ځنې ستاسې به له ځينو نورو سره دښمنان وي يعنى شيطان به ستاسو او تاسو به دهغه دښمنان ياست بل ځای فرمايي: ﴿ إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا ﴾ [فاطر: ٦] ﴿ وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ ﴾ تاسې ته په مځکه کې ځای دهستوګنې دی ﴿ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴾ (او اسباب دګټې اخيستلو تر يو وخته، چې اجل يا قيامت دی ﴿ فَتَلَقَّىٰ آدَمُ مِنْ رَبِّهِ كَلِمَاتٍ ﴾ يعنى واخيستى آدم له خپل رب نه دعا ګانې، چې الله ورته الهام کړې وې او بيا يې هغه لوستلې او دغه کلماتې پخپل ځای کې په تفصيلي توګه راغلى چې داعراف سورت دا آيتونه دی: ﴿ قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا ﴾ [الأعراف: ٢٣] ﴿ فَتَابَ عَلَيْهِ ﴾ پس قبوله کړه (الله) توبه دده ﴿ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴾ بيشکه الله تعالی ډير توبه قبلونکی دی ډېراخ رحمت څښتن دی ﴿ قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا ﴾ (ووېل موږ چې کوز شئ له جنته ټول) دکښته کيدلو امرېې تکرارې دتاکيد لپاره راوړی او بل دا څرګندونه چې دآدم ﷺ او داولادې هستوګنځي به يې په مځکه کښې وي نه په جنت کښې (۱) ﴿ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى ﴾ (پس که راغی تاسې ته له مانه کوم هدايت) چې رسول درته استوم او کتاب دربانديې نازلوم ﴿ فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ ﴾ پس هر څوک چې پيروي وکړي زما دهدايت، په ما ايمان راوړي او په امر مې عمل وکړي ﴿ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ پس نه به وی هيڅ ويره په دوی باندې او نه به وی دوی غمګين او خپه په آخرت کې ﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ﴾ او هغه کسان چې کافران شوی او دروغ ګڼی آيتونه زموږ، يعنی زموږ پيغمبران او کتابونه نه منې ﴿ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴾ هم دغه کسان څښتنان داور دی همدوی به په هغه کې هميشه وی، چې دوزخ دی الله ﷻ مودې ځنې وژغوري.

(۱) دغه دجلالين دمفسرينو غوره ده او لومړۍ رايه طبرې غوره ګڼلې ده.

## بلاغت

۱. دجمعې صيغه په دې کلمه کې (وَإِذْ قُلْنَا) دتعظيم لپاره دى او په هغې کلمې عطف کړل شوى چې فرمايي: (وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ) پدې کې له غائب نه متکلم ته التفات دى چې دجلال او مهابت ځرګندونه کوي.

۲. په دې کلمه کې چې (فَسَجَدُوٓا) ده (فا) دامر دامتثال دچټکتيا لپاره راوړل شوې يعني سمدستي يې سجده وکړه او ځنډيې ونکړ.

۳. همدا راز په آيت شريف کی ايجاز بالحذف دى چې يوازې (فَسَجَدُوٓا) راغلی تقدير يې داسې کيږي چې (فَسَجَدُوٓا له) بل دا چې د (أبى) مفعول محذوف دى او هغه دا چې (أبى السجود).

۴. دا وينا چې فرمايي: (وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ ٱلشَّجَرَةَ) منع خو دميوې له خوړلو ښخه ده او دلته له قرب ښخه منع راغلې چې له خوړلو ښخه يې زښته زياته منع ده ځکه دنژديکت ښخه منع خو له خوړلو ښخه زياته او په اولی طريقه سره ده لکه چې دزنا په باب فرمايي: (وَلَا تَقْرَبُوا ٱلزِّنَىٰٓ) ځکه زنا ته دنژدې کيدلو ښخه منع دوسائلو غوښول دى تر څو د زنا مرتکب نشي.

۵. پدې کلام سره تعبير چې: (مِمَّا كَانَا فِيهِ) ابهام ددې لپاره دي چې دهغې سوکالي او نعمتونو په ستر والى دلالت وکړی که ويل شوى واى (من الجنة او من النعيم) دومره ښکلا به يې نه واى ځکه دبلاغت اسلوب دادى چې کله ديوشي په سترتوب او عظمت دلالت مقصود وى هغه مبهم ذکر کوى لکه (مِمَّا كَانَا فِيهِ) تر څو اوريدونکی دهغي وروستى مرحلې چې له هغې زيات امکان نلرى تصور وکړي.

۶. (إِنَّهُۥ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ) دواړه صفات دمبالغې له صيغو ښخه دى چې زيات توبه قبلونکی او دپريمانه رحمت خاوند يې معناده.

### فوائد او ګټې:

لومړى فائده: ځرنګه له الله ﷻ ښخه پرته بل چاته سجده کول صحيح دى؟ ځواب دا چې دملائکو سجده حضرت آدم ته دتحيې او تعظيم لپاره وها. عبادت پکې مقصود نه وو ، زمخشري وايي: سجده الله ﷻ ته دعبادت په وجه ده او نوروته دتعظيم او تکريم لپاره لکه دملائکو سجده آدم ته او يا هم ديوسف ﷺ دپلار او ورونو سجده حضرت يوسف ﷺ ته. (۱)

دوهمه فائده: ځينو عارفانو ويلی دى چې په پخواني عنايت او لوربينه کی دجنايت پيښيدل څه اغيزه نکوى او نه هم دولايت له رتبې ښخه لويږى دآدم ﷺ مخالفت کوم چې دهغه په سبب له جنت نه راوايستل شو خو

---

(۱) الكشاف ۹۵/۱.

هغه يې د خلافت له رتبې څخه ونه غورځاوو بلکه نورهم الله وربانده ی پیرزوینه وکړه چې فرمایي: (ثُمَّ اجْتَبَهُ رَبُّهُ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدَىٰ).

دريمه فائده: ايا ابليس دملائکو له ډلي څخه وو ؟ مفسرين پدې کي اختلاف لري څوک وايي چې هغه دملکو څخه وو ځکه استثنا هم داسي راغلې چې (فَسَجَدُوٓاْ إِلَّآ إِبْلِيسَ) چا بيا ويلي چې دلته استثناء منقطع ده او ابليس له پيريانو څخه دی او همدا قول قتاده او حسن رحمهما الله کړی چې زمخشري غوره کړی دی حسن بصری وايي چې يوه شيبه هم ابليس دملايکو څخه نه دی ګڼل شوی او موږ هم دوهم قول ته ترجيح ورکوو ځکه ۱-ملائک له ګناه او معصيت څخه پاک دی (لَّا يَعْصُونَ ٱللَّهَ مَآ أَمَرَهُمْ) [التحريم:۶] او ابليس خو دالله تعالی معصيت او سر غړونه وکړه ۲- ملائکي له نور څخه پيدا شوي او شيطآن له اور څخه نو ددوی طبيعتونه يو له بله مخالف دی ۳- داچې ملائکی ذوذات او نسل نلری او شيطآن نسل او ذريه لری لکه چې الله فرمايي: (أَفَتَتَّخِذُونَهُۥ وَذُرِّيَّتَهُۥٓ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِى) [الكهف:۵۰] ۴- دابليس په هکله صريح نص هم راغلی چې له جن څخه دی او هغه دا چې: (كَانَ مِنَ ٱلْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِۦٓ) [الكهف:۵۰] او دغه دليل او برهان کفايت کوی.(۱)

الله تعالی فرمايي:

﴿ يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱذْكُرُواْ نِعْمَتِىَ ٱلَّتِىٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَوْفُواْ بِعَهْدِىٓ أُوفِ بِعَهْدِكُمْ وَإِيَّٰىَ فَٱرْهَبُونِ ﴿٤٠﴾ وَءَامِنُواْ بِمَآ أَنزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُونُوٓاْ أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهِۦ ۖ وَلَا تَشْتَرُواْ بِـَٔايَٰتِى ثَمَنًا قَلِيلًا وَإِيَّٰىَ فَٱتَّقُونِ ﴿٤١﴾ وَلَا تَلْبِسُواْ ٱلْحَقَّ بِٱلْبَٰطِلِ وَتَكْتُمُواْ ٱلْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٤٢﴾ وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱرْكَعُواْ مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ ﴿٤٣﴾ ﴾ البقرة: ۴۰ - ۴۳

مناسبت او تړاو:

ددې آيت له پيل څخه بيا تر ۱۴۲ آيت پورې دبني اسرائيلو په باب خبري دی قرآنکريم له دوی څخه ډير په تفصيل غږيدلی چې تقريبا يوه سيپاره تشکيلوي او دا پدې چې قرآنکريم ديهودو دحقائقو په څرګندولو او لوخولو کی پوره پاملرنه کړی ددوی تګی برګی ، پليتي او نور شرارتونه يې ښکاره کړی تر څو مسلمانان له دوی څخه وويروي او مناسبت ددې آيتونو له پخوانيو سره دا چې کله الله ﷻ انسانان خپل عبادت او توحيد ته وبلل او څرګند دلائل يې په خپل وجود او وحدانيت ورته واورول بيا يې هغه نعمتونه وريه ياد کړل کوم چې ددوی په پلار حضرت آدم ﷺ يې لورولی وو نو بيا يې بني اسرائيل او په ځانګړي توګه يهودان ايمان ته راوبلل چې په خاتم الانبياء او هغه کتاب چې ده راوړی ايمان راوړی ځکه دا ددوی په کتاب (تورات) کی ليکل شوی مومي او په ډول ډول يې له دوی سره مخاطبه کړی کله يې په نرمي او پسته ژبه رابللی کله يې ويرولی او کله يې د نعمتونو

(۱) زموږ په کتاب النبوة والانبياء کي مفصل تحقيق وګوره.

وربه يادولو په شکل کی اوبيايي پردوي باندي ددوی دبدواعمالو په کولو دلائل راوړی او هغوی يې ترټلی او توبيخ کړی دی او دا ډول آيتونه دعمومی نعمتونو يادولو څخه چې دبشريت په پلار الله ﷻ لوروللی وو خانګړو نعمتونو ته چې بني اسرائيلو ته يې ورکړی انتقال کوي.

## لغتونه:

(اسرائيل) عجمي نوم او معنی يې عبدالله يعنی دالله بنده ده او دا دحضرت يعقوب عليه السلام نوم دی چې دآل عمران په سورت کی په صراحت ذکر شوی ﴿إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَٰٓءِيلُ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ﴾ [آل عمران: ٩٣] (اوفوا) وفا وکړي وفا يو شی په بشپړه توګه راوړلو ته وايي ، وايي چې (وفیٰ) يعنی په بشپړه توګه يې ترسره کړ (تلبسوا) لبس خلط او ګډيدلو ته وايي لکه چې وايي (لبس الشئ) يعنی ګډ او خلط شو الله فرمايي: ﴿وَلَلَبَسْنَا عَلَيْهِم مَّا يَلْبِسُونَ﴾ [الأنعام: ٩] په صراح کي وايي (لبس الثوب) جامه يي واغوسته د تعب له باب څخه او مصدر يې لبسا راځي چې مضموم العين ده او (لبست عليه الأمر) چاره مي ورته ګډه وډه کړه دضرب له باب څخه دی چې مصدر يې مفتوح العين دی معنی يې خلط او ګډيدل دی (الزکاة) له (زکا الزرع يزکو) څخه اخيستل شوی چې وده کولو او نما ته وايي څکه چې دزکات ايستل مال ته وده ورکوی او يا هم له زکات څخه اخيستل شوی چې پاکي ته وايي څکه زکات مال پاکوي لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَٰلِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا﴾ [التوبة: ١٠٣]

## تفسير:

﴿يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ﴾ اي دصالح نبي حضرت يعقوب عليه السلام زامنو ﴿ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتِىَ ٱلَّتِىٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ﴾ (ياد کړی نعمت زما هغه چې ما انعام کړی دی په تاسو) او ستاسو په پلرونو ډير نعمتونه چې شمير يې نه کيږي ﴿وَأَوْفُوا۟ بِعَهْدِىٓ﴾ (وفا وکړئ په عهدزما) کوم څه چې تاسو عهد کړی وو دايمان او طاعت هغه بشپړ پرځای کړئ ﴿أُوفِ بِعَهْدِكُمْ﴾ (چې زه هم وفا وکړم په عهد ستاسي) کوم چې ما تاسو سره دنيک ثواب عهد کړی ﴿وَإِيَّٰىَ فَٱرْهَبُونِ﴾ (او خاص له مانه پس وويريږئ) نه له بل چا څخه ﴿وَءَامِنُوا۟ بِمَآ أَنزَلْتُ﴾ (او ايمان راوړئ په هغه کتاب چې نازل کړی دی ما) يعنی قرآنکريم ﴿مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ﴾ حال دا چې تصديق کوونکی دی دهغه کتاب چې تاسو سره دی يعنی دنبوت او توحيد په امورو کي دتورات تصديق کوي ﴿وَلَا تَكُونُوٓا۟ أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهِۦ﴾ (او مه کيږئ لمړی کافران په هغه) ستاسو حق خو دادی چې په دې کتاب لومړی ايمان راوړنکی ياست ﴿وَلَا تَشْتَرُوا۟ بِـَٔايَٰتِى ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ (او مه پيرئ (اخلئ) په آيتونو زما بيه لږ) يعنی زما په آيتونو ددنيا ناڅيز مال مه بدلوئ ﴿وَإِيَّٰىَ فَٱتَّقُونِ﴾ او خاص له مانه پس وويريږئ نه بل چا څخه ﴿وَلَا تَلْبِسُوا۟ ٱلْحَقَّ بِٱلْبَٰطِلِ﴾ او مه ګډوئ حق له باطل سره ، يعنی هغه دالله ﷻ نازل شوی حق له هغه ستاسو له خانه جوړشوی باطل سره مه ګډوئ

او هغه څه چې په تورات کي دي په هغه بهتان چې تاسو له ګيډي جوړ کړی مه ګډوی ﴿ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ ﴾ او مه پټوی حق ، کوم چې ستاسي په کتاب کي د پيغمبر (محمد ﷺ) صفتونه راغلی ﴿ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ او حال دا چې تاسو پوهيږئ ، په تاوان او ضرر د پټولو ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ ﴾ او سم قائموی لمونځ او ورکوی زکات او رکوع وکړی سره له رکوع کونکو ، يعنی هغه فرائض چې لمونځ او زکات دی پر ځای کړی او له نورو لمونځ کوونکو سره يو ځای په جماعت لمونځ کوی يا هم د پيغمبر له ملګرو (اصحابو) سره يو ځای لمونځ کوی.

## بلاغت:

۱ - دنعمت نسبت الله ته دنعمت دښه والی لوی والی او قدر من توب په معنا ده لکه بيت الله ، ناقة الله.

۲ - (وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي) دلته حقيقي پيرودنه (اخيستل) مراد نه ده بلکه په مجازي توګه راغلی لکه چې په ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ ﴾ کي راغلې

۳ - دحق کلمه په تکراري ډول راوړل شوی لکه: (تَلْبِسُوا الْحَقَّ ، وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ) چې دمنع شوی په باب تاکيد راشي ځکه کوم شيز چې په صراحت سره ذکر شي تر هغه لوړ دی چې په ضمير سره ياد شي او دغه اطناب ته ترنور ولوړ وايي.

۴ - (وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ) پدې کي مرسل مجاز دی ځکه ذکر دجزء او مراد ځني کل دی دلته رکوع او راکعين راغلی چې مراد تري لمونځ او لمونځ کوونکی دی.

۵ - (وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ، وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ) اختصاص او ځانګړتيا ځرګندوی.

## ګټي او فائدي:

ځيني عارفانو ويلی دی چې بندګان په دوه ډوله دی يو دنعمت بندګان او يو هم دنعمت ورکونکي (منعم) بندګان دمنعم بندګان لږ وي لکه چې الله ﷻ بني اسرائيلو ته خپل نعمتونه ورپه ياد کړل تر څو چې دمنعم نعمت وپيژني ويې فرمايل: (اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ) او دمحمد ﷺ امت ته يې دمنعم ور په يادول ونبودل چې: (فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ) تر څو له منعم څخه نعمت وپيژني او دا دواړه ډير سره ليري دی.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ وَأَنتُمْ تَتْلُونَ الْكِتَابَ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٤٤﴾ وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ ۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ ﴿٤٥﴾ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ﴿٤٦﴾ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ

الَّتِيٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَنِّي فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿٤٧﴾ وَاتَّقُوا يَوْمًا لَا تَجْزِي نَفْسٌ عَنْ نَفْسٍ شَيْئًا وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ ﴿٤٨﴾ ﴾ البقرة: ٤٤ - ٤٨

## مناسبت او تړاو:

اوس هم آيتونه دبني اسرائيلو کره وړه بيانوي او پدې آيتونو کې ددوی دهغو بدو کارونو يادونه ده چې دوی به خلکوته دخير کارونه ورښودل خو پخپله يې نه کول خلک به يې سمې لارې او هدايت ته رابلل مګر پخپله يې سمه لاره نه نيوله.

## لغتونه:

(بالبر) بر نيکی ته وايي دا دټولو ښو کارونو لپاره نوم دی او کله چې وايي (بر الوالدين) مراد ځنی دهغوی امر منل دی په حديث شريف کې راځي (البر لا يبلیٰ والذنب لاينسیٰ)نيکي نه زړېږي او ګناه نه هېرېږي (وتنسون) پرېږدی مراد له نسيان نه پرېښودل دی لکه چې الله فرمايي: (نسوا الله فنسيهم) او دلته هم دامراد دی دغه رنګه نسيان هيری ته وايي لکه چې الله فرمايي: (فنسي ولم نجد له عزما) (تتلون) لولې او تدريس کوی (الخاشعين) خاضع متواضع ته وايي چې له ذلت او استکانت څخه اخيستل کيږی زجاج وايي چې خاشع هغه چاته وايي چې دذلت اثر وربانډی څرګند وی او ددې آيت چې فرمايي (وخشعت الاصوات) معنی داده چې کرار شي ږغونه [۱] (يظنون) ظن دلته ديقين په معنی ده نه دشک په معنی او داله اضدادو څخه ګڼل کيږی او عبيد وايي چې عرب يقين ته ظن وايي او شک ته هم ظن وايي [۲] او په يقين کې يې استعمال زيات ده لکه چې الله فرمايي: (اني ظننت اني ملاق حسابيه) او (فظنوا انهم مواقعوها) (شفاعة) شفاعت له شفع څخه چې دوتر ضد دی اخيستل شوی او هغه ديو بل چا پيوسته کول دی چې ستا وسيله شي څکه يې شفاعت بولی او دا دشفيع درتبې اظهار او څرګندول هم دی چې هغه يې دمشفع په وړاندی لری (عدل) دعين توری په فتحه سره بدل (فداء) ته وايي او دعين توري په کسره سره بيا مثل او ساري ته وايي لکه(عدل وعديل لک) يعنی ستا سيال ،ساری (انډيوال) دی

## دنزول سبب:

دغه آيتونو ديهودانو دځينو عالمانو په باب نازل شوی هغوی چې به خپلو خپلوانو ته کومو چې ايمان يې راوړی وو ويل د (محمد ﷺ) په دين ثبات او استقامت وکړه چې هغه حق دی مګر پخپله يې ايمان نه راووړ [۳]

---

(۱) القرطبي ۳۷۴/۱.
(۲) مجاز القرآن ص ۳۹.
(۳) الصاوی ۲۲/۱.

تفسير:

الله تعال دیهودانو علماوو ته خطاب کوی او دتوبیخ په ډول ورته فرمایي ﴿ أَتَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ ﴾ (ایا امر کوئ خلکو ته په نیکي او پریږدی خانونه خپل) یعنی تاسو خلک ښیگڼي او په محمد باندی ایمان راوړلو ته رابولئ او خپل خانونه پریږدئ دخیر ښیګڼي کار نه کوئ ﴿ وَأَنتُمْ تَتْلُونَ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ حال دا چې تاسي لولئ کتاب (تورات) او په هغه کی دمحمد ﷺ نعت او صفت شته ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ ایا تاسو نه پوهیږئ (چې دابد کار دی ؟) نو هسي مه کوئ بیا الله ﷻ دوی ته په شهوتونو دبری لاره وروښودله چې ځرنګه (دجاه او سلطنت ، ریاست له محبت ځخه ځانونه وژغورئ وبې فرمایل: ﴿ وَٱسْتَعِينُوا۟ ﴾ مرسته وغواړئ اپه ټولو امورو کي ﴿ بِٱلصَّبْرِ وَٱلصَّلَوٰةِ ﴾ په صبر (زغم) او لمانځه سره یعنی هغه شرعي تکالیف وزغمئ او لمنځونه ادا کوی چې هغه ددین ستني دی ﴿ وَإِنَّهَا ﴾ او بیشکه دا لمونځ ﴿ لَكَبِيرَةٌ ﴾ سخت او دروند دی ﴿ إِلَّا عَلَى ٱلْخَٰشِعِينَ ﴾ مگر نه په عاجزی کوونکو باندی هغوی چې نفسونه یې دالله لپاره سپیځلی شوی وی ﴿ ٱلَّذِينَ يَظُنُّونَ ﴾ هغه کسان چې (پوخ) یقین کوی کوم شک ورسره نه وی ﴿ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا۟ رَبِّهِمْ ﴾ چې بیشکه دوی مخامخ کیدونکی دی له رب خپل سره ،چې بیا هغه ددوی په اعمالو جزا ورکوي ﴿ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ ﴾ (او بیشکه دوی هغه ته رجوع کوونکی وی) یعنی دقیامت په ورځ هغه ته ورتلونکی دی بیا الله ﷻ دخپلو بی شمیره نعمتونو ورپه یاد ولو ورته داسي وویل ﴿ يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتِىَ ٱلَّتِىٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ ﴾ اې بني اسرائیلو (دیعقوب ﷺ اولادې) یاد کړئ نعمت زما هغه چې انعام مي کړی په تاسو یعنی شکر دنعمت په طاعت کولو ادا کړئ ﴿ وَأَنِّى فَضَّلْتُكُمْ ﴾ چې بیشکه ما غوره کړی پلرونه ستاسو ﴿ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ دخپلی زماني په خلکو چې انبیاء مي ورته رااستولې او کتابونه مي پرې نازل کړی پاچهان او سرداران می گرزولی او دغه دپلرونو نعمت ددوی دشرافت نښه ده .

﴿ وَٱتَّقُوا۟ يَوْمًا لَّا تَجْزِى نَفْسٌ عَن نَّفْسٍ شَيْـًٔا ﴾ (او وویریږئ له هغې ورځی چې لیري کولی به نشي هیځ نفس له هیځ نفس ځخه هیځ شی) له حقوقو ځخه ﴿ وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَٰعَةٌ ﴾ او نه به منل کیدی شی له دغه نفس ځخه شفاعت دکافر په هکله کوم چې په الله ﷻ کافر وی ﴿ وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ ﴾ او وابه نه خیستل شي له دغه نفس نه بدل (فدیه) ﴿ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴾ او نه به له دوی سره مدد وکړی شي چې دالله ﷻ له عذاب ځخه یې وژغوري.

بلاغت:

۱ - (أَتَأْمُرُونَ ) استفهام دی اوله خپل حقیقت ځخه یې توبیخ ته رااېستلي دي.

۲ - د (أَتَأْمُرُونَ) په کلمه کې د مضارع صیغه راوړل شوه که څه هم دا عمل خو دوی پخوا تر سره کړی وو خکه د مضارع صیغه په تجدد او حدوث دلالت کوی او د فعل له ترک او پرېښودلو څخه یې په نسیان تعبیر وفرمایل چې: (وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ) څکه دا په پرېښودلو کی مبالغه ده لکه چې هیڅ یې په خاطر کی هم نه ورتیرېږی او دا چې وروسته یې حالیه جمله راوړه لکه (وَأَنتُمْ تَتْلُونَ ٱلْكِتَٰبَ) پدې کی هم توبیخ او تقریع نغښتی شوې ده.

۳ - (وَأَنِّي فَضَّلْتُكُمْ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ) دغه عطف د خاص په عام باندی بللی شوي څکه یو ځل خو په (اذکروا نعمتي) کی واړه (ګرد) نعمتونه ذکر شول او بیا یې دغه ځانګړي نعمت راوور.

۴ - (وَٱتَّقُواْ يَوْمًا) دیوم تنکیر د شدت او هیبت لپاره دي او د نفس نکره ذکر کول پدې کلمه کی چې (نَفْسٌ عَن نَّفْسٍ) د عموم دافاده کولو او بشپړه ناهیلي دپاره راوړل شوی دی.

## ګټې او فائدې

**لومړۍ ګټه:** قرطبي وایي څرنګه چې لمونځ یې په ځانګړی توګه ذکر کړی چې دهغه داهمیت څرګندونه وشي او رسول الله ﷺ به چې کله خواشینی شو نو به یې په بیړه دلمانځه ادا کول پیل کړل او دلمانځه په هکله به یې بلال رضي الله عنه ته ویل: (ارحنا بها یا بلال).

**دوهمه فائده:** علی کرم الله وجهه وایي زما ملا دوو تنو را ماته کړي (عالم متهتک وجاهل متنسک) یو هغه عالم چې عمل نلری او بل هغه بې علمه سړی چې شیخي کوی هو هغه څوک چې بل سمی لاري ته رابولي خو پخپله په سمه لاره نه درومي لکه هغه څراغ غوندي دی چې نوروته لاره روښانه کوی خو پخپله سوځي.

## الله تعالی فرمایي:

﴿وَإِذْ نَجَّيْنَٰكُم مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ يُذَبِّحُونَ أَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ ۚ وَفِى ذَٰلِكُم بَلَآءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿٤٩﴾ وَإِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ ٱلْبَحْرَ فَأَنجَيْنَٰكُمْ وَأَغْرَقْنَآ ءَالَ فِرْعَوْنَ وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ ﴿٥٠﴾ وَإِذْ وَٰعَدْنَا مُوسَىٰٓ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ثُمَّ ٱتَّخَذْتُمُ ٱلْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَنتُمْ ظَٰلِمُونَ ﴿٥١﴾ ثُمَّ عَفَوْنَا عَنكُم مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٥٢﴾ وَإِذْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿٥٣﴾ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ يَٰقَوْمِ إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنفُسَكُم بِٱتِّخَاذِكُمُ ٱلْعِجْلَ فَتُوبُوٓاْ إِلَىٰ بَارِئِكُمْ فَٱقْتُلُوٓاْ أَنفُسَكُمْ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ عِندَ بَارِئِكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴿٥٤﴾﴾ البقرة: ۴۹ - ۵۴

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې ړومبی الله تعالی خپل نعمتونه په اجمالي توګه بني اسرائيلو ته وریاد کړل بیا یې دهغو ذکر په تفصیلي توګه راوړل ترڅو ښه ورته څیر او شکرته یې متوجه شي لکه چې الله ګواکي ورته داسي ويلي: (اذکروا نعمتی) (واذکروا اذنجیناکم من آل فرعون) (واذکروا اذ فرقنا بکم البحر...) ترپایه چې دا ټول دشکر موجب دی او دوی یې باید کفران ونکړي.

## لغتونه:

(آل فرعون) دآل اصل اهل وو ځکه یې تصغیر په (اهیل) سره راځي داهل هاء په الف بدله شوه نو آل وګرځیدو او ددې استعمال دلویو خلکو له نامه سره ځانګړی شوي لکه پاچهان او سلاطین او هیڅکله داسي نه ویل کیږي چې دموچي آل او یا دډم (حجام) آل (فرعون) دادعمالقه دپاچهانو نوم دی لکه قیصر چې دروم، او کسری دفارس دخلکو دپاچهانو نوم، فرعون یې له دې کبله بولی چې جبروت او تکبر لري له تفرعن څخه اخیستل شوی دی.[۱] (یسومونکم) درځکی له سامه څخه اخیستل شوی او ځکلوته وایي طبري وایي چې رسوی تاسي ته او درځکي تاسي ته (یستحیون) ژوند کولو ته پریږدی (بلاء) امتحان او ازموینی ته وایي او په خیر او شر دواړو کې استعمالیږي لکه چې الله تعالی وایي: (ونبلوکم بالشر والخیر فتنة) (فرقنا) فرق جلا والی او تمیز ته وایي او له دې څخه دی (وقرآنا فرقناه) یعنی په بیان سره مو بیل او تفصیل کړی دی (بارئکم) باري هغه پیدا کونکی ذات ته وایي چې داسي څه پیدا کوي چې پخوایي مثال نه وی او (بریة) خلکوته وایي.

## تفسیر:

﴿ وَإِذْ نَجَّيْنَٰكُم ﴾ او یاد کړی، هغه وخت کله چې نجات درکړی وو مونږ (نیکونو) ستاسی ته ﴿ مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ ﴾ (له عمل دفرعون څخه) دلته خطاب هغو بني اسرائیلو ته دی کوم چې رسول الله ﷺ معاصر وو ځکه چې نعمت په پلرونو نعمت په زامنو دی ﴿ يَسُومُونَكُمْ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ ﴾ (چې رسوا وو به یې تاسي ته سخت عذاب ﴿ يُذَبِّحُونَ أَبْنَآءَكُمْ ﴾ چې ذبح کول به یې زامن ستاسی ﴿ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ ﴾ او ژوندي به یې پریښودلې ښځې (لوڼې) ستاسی دخدمت دپاره ﴿ وَفِى ذَٰلِكُم بَلَآءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴾ او په دې کې (حلالول دزامنو، پریښودل دلوڼو یا ټولو کی) ازموینت وو له طرفه دپروردګار دتاسي ډیر لوی، ترڅو نیکو کار له بد کاره څخه جلا کړي. ﴿ وَإِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ ٱلْبَحْرَ ﴾ (او یاد کړی، هغه وخت چې څیری کړ مونږ ستاسی له پاره دریاب) وچه مځکه درته څرګنده شوه او بیا وربانذی تیر شوی. ﴿ فَأَنجَيْنَٰكُمْ وَأَغْرَقْنَآ ءَالَ فِرْعَوْنَ ﴾ (نو مونږ نجات درکړ تاسي ته (ومو ژغورلی) او ډوب مو کړل عمله دفرعون) له هغه سره چې دا یوه څرګنده نښه دالله ﷻ له علاماتو څخه ده چې څرنګه خپل دوستان ژغوري او دښمنان هلاکوي؟ ﴿ وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ ﴾ په داسي حال کي چې تاسي

---

(۱) الکشاف ۱۰۲/۱.

ورته کتل ﴿ وَإِذْ وَٰعَدْنَا مُوسَىٰٓ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ﴾ (او یاد کړئ هغه وخت چې وعده کړې وه موږ له موسی سره څلویښت ورځې) چې وروسته له دې به تورات ورکول کیږي او دا وروسته ستاسی له نجات او د فرعون له ډوبیدلو وو ﴿ ثُمَّ ٱتَّخَذْتُمُ ٱلْعِجْلَ ﴾ (بیا تاسي خوسی (په خدایي) ونیو) یعنی د هغه عبادت مو کاوو ﴿ مِنۢ بَعْدِهِۦ ﴾ (پس له تللو د موسی) ﴿ وَأَنتُمْ ظَٰلِمُونَ ﴾ (او وئ تاسي (په دې کارکی) ظالمان پخپلو ځانونو ﴿ ثُمَّ عَفَوْنَا عَنكُم مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ ﴾ بیا موږ عفو وکړه تاسي لره له (دې سختی ګناه څخه) وروسته له دغه د خوسي له عبادت کولو نه ﴿ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ (دپاره ددې چې تاسي شکر ګذار شئ) وروسته له دې طاعت ته مخه کړې ﴿ وَإِذْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْفُرْقَانَ ﴾ (او یاد کړئ هغه وخت چې ورکړې وو موږ موسی ته کتاب (تورات) او بیلوونکی (دحق او باطل لپاره) او په نورو معجزاتو مو د هغه ملا تړ کړی وو ﴿ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴾ (لپاره ددې چې تاسي سمه لاره پیدا کړې) او په هغو احکامو عمل وکړئ چې په تورات کې دی بیا الله ﷻ د دغي عفوې څرنګوالی داسي بیان کړ فرمایي: ﴿ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ يَٰقَوْمِ إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنفُسَكُم ﴾ (او یاد کړئ هغه وخت چې وویل موسی خپل قوم ته اې قومه زما بیشکه تاسي پر خپلو ځانونو ظلم کړی دی) یعني هغه وخت در په یاد کړئ کله چې موسی له خپل موعد څخه راستون شو او ویې لیدل چې خپل قوم یې د خوسي عبادت ، کوي نو بې ورته وویل چې بیشکه تاسي پخپلو ځانونو ظلم کړی دی ﴿ بِٱتِّخَاذِكُمُ ٱلْعِجْلَ ﴾ (په سبب د نیولو ستاسی خوسی لره) په خدایي سره چې تاسي یې عبادت یې کوئ ﴿ فَتُوبُوٓا۟ إِلَىٰ بَارِئِكُمْ ﴾ پس توبه وباسي خپل خالق لره ، چې له هر عیب او نقصان څخه یې سپیڅلی پیدا کړی یاست ﴿ فَٱقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ ﴾ نو ووژنئ ځانونه خپل یعنی بری دی مجرم ووژنی ﴿ ذَٰلِكُمْ ﴾ دغه وژل ﴿ خَيْرٌ لَّكُمْ عِندَ بَارِئِكُمْ ﴾ بهتر دی تاسي ته په نزد د خالق ستاسي یعنی ستاسی رضا د الله په حکم او د هغه د امر منل ستاسی د خالق په نزد بهتره دی ﴿ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ﴾ پس قبوله یې کړه توبه ستاسي ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ بیشکه هم دی ښه توبه قبلوونکی ښه مهربان دی په توبه کوونکو باندی

## بلاغت:

ابن جزي وایي: (يَسُومُونَكُمْ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ) په بد عذاب یې ملزم کړی او دا استعاره ده له سوم په بیع او شراء کی او د (سوء العذاب) تفسیر یې پدې قول فرمایلی: (يُذَبِّحُونَ أَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ) څکه عطف هم ندی ورباندی کړل شوی.(۱)

۱ - تنکیر په (بلاء) او (عظیم) کی د لوی والي او سخت والي معنیٰ لري.

---

(۱) کتاب التسهیل ۴۷/۱.

۲ - دمفاعلې صيغه په (واذواعدنا) کې په خپل باب نه دی پاتي ځکه پدې کي ددوارو خواوو مشارکت نشته او يوازې دثلاثي په معنی ده چې (وعدنا) راغې.

۳ - ابوالسعود وايي: (فَتُوبُوٓاْ إِلَىٰ بَارِئِكُمۡ) دلته دباري کلمه ذکر کول ددې خبرتيا ورکوي چې دوی هغه خپل وروستي دجهالت پولي ته رسيدلی دی دومره ناپوهان دی چې دعليم حکيم ذات هغه چې دوی يې په لطيف حکمت سره پيدا کړي دهغه عبادت يې پريښود او دغوايي دزوی (خوسي) عبادت يې پيل کړ، هغه (خوسي) چې په غباوت او ناپوهي کښې وربانديز مثال ويل کيږي. (١)

## گټې او فائدې:

لومړی فائده: پدې قول کې چې فرمايي: (الکتاب والفرقان) عطف دصفت پر صفت دی ځکه کتاب خو (تورات) دی اوفرقان هم (تورات) او دعطف ښکلا پدې کی ده چې معنايې داسي وشي چې دغه هم منزل کتاب دی او هم دحق او باطل بيلتون او فرق کونکی دی. (٢)

دوهمه فائده: سبب دوژلو دماشومانو دبني اسرائيلو هغه څه وو چې ځيني مفسرينو ذکر کړی چې فرعون په خوب کې وليدل له بيت المقدس څخه يو اور راپورته شو او په مصر راوگرځيد ټول قبطي توکم يې وسوځول او په بني اسرائيلو يې هيڅ غرض هم ونکړ نو فرعون هک پک حيران شو او له کاهنانو او کوډگرانو څخه يې وپوښتل هغوی ورته ووېل په بني اسرائيلو کي يو ماشوم زيږيدونکی دی چې دهغه په لاس به ستا او ستا دپاچهي ورکه وي نو فرعون امر وکړ چې په بني اسرائيلو کي هر ماشوم زيږي هغه دی ووژل شي.

دريمه فائده: قشيری وايي خوک چې دالله په قضا صبر او زغم ولری الله ﷻ به يې دخپلو او لياوو سره ملگری کړی همدا بني اسرائيل وو چې دفرعون او دهغه دقوم سختي يې په ځان ومنلې نو الله ﷻ له دوی څخه نبيان او پاچهان غوره کړل هغه څه يې ورکړل چې بل چاته يې له مخلوقاتو هلته و ورکړی نه وو.

## الله تعالى فرمايي:

﴿ وَإِذۡ قُلۡتُمۡ يَٰمُوسَىٰ لَن نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى ٱللَّهَ جَهۡرَةٗ فَأَخَذَتۡكُمُ ٱلصَّٰعِقَةُ وَأَنتُمۡ تَنظُرُونَ ﴿٥٥﴾ ثُمَّ بَعَثۡنَٰكُم مِّنۢ بَعۡدِ مَوۡتِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ ﴿٥٦﴾ وَظَلَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ ٱلۡغَمَامَ وَأَنزَلۡنَا عَلَيۡكُمُ ٱلۡمَنَّ وَٱلسَّلۡوَىٰۖ كُلُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقۡنَٰكُمۡۚ وَمَا ظَلَمُونَا وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ يَظۡلِمُونَ ﴿٥٧﴾ وَإِذۡ قُلۡنَا ٱدۡخُلُواْ هَٰذِهِ ٱلۡقَرۡيَةَ فَكُلُواْ مِنۡهَا حَيۡثُ شِئۡتُمۡ رَغَدٗا وَٱدۡخُلُواْ ٱلۡبَابَ سُجَّدٗا وَقُولُواْ حِطَّةٞ نَّغۡفِرۡ لَكُمۡ خَطَٰيَٰكُمۡۚ وَسَنَزِيدُ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿٥٨﴾ فَبَدَّلَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ قَوۡلًا غَيۡرَ ٱلَّذِي قِيلَ لَهُمۡ فَأَنزَلۡنَا عَلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ رِجۡزٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ بِمَا كَانُواْ يَفۡسُقُونَ ﴿٥٩﴾ ﴾

البقرة: ۵۵ - ۵۹

(١) ابو السعود ١/٨٧.

(٢) داسي زجاج ويلي او زمخشری غوره کړي دي

## مناسبت او تړاو:

وروسته له دې چې الله تعالی خپل نعمتونه وریاد کړل نو ددوی د طغیان له رنګونو او دولونو څخه يې دلته يو ډول بيان کړ هغه چې ددوی انکار څرګند وي او دوی د الله ﷻ اوامر تبديلوي يهود څومره بد او شرميدلی امت دی سره له دې چې دوی کفر او طغيان لري خو الله ﷻ ورسره د لطف او احسان معامله کوي

طبري وايي: کله چې بني اسرائيلو د(خوسی) له عبادت څخه توبه وايستله الله ﷻ موسی ﷺ ته امر وکړ چې له خپل قوم څخه خوتنه غوره کړي تر څو دخوسی دعبادت کولو معذرت الله ﷻ ته وړاندې کړي نو موسی ﷺ اويا تنه مخه ورکسان سپين رو يې غوره کړل لکه چې الله ﷻ وايي: (وَٱخۡتَارَ مُوسَىٰ قَوۡمَهُۥ سَبۡعِينَ رَجُلٗا لِّمِيقَٰتِنَا) [الاعراف ۱۵۵] او هغوی ته يې وويل چې روژې ونيسي، ځانونه ښه پاک کړي، او جامې موهم پاکې کړي، هغوی همداسې وکړل نو يې (طور سينا) ته راوستل هغوی موسی ﷺ ته وويل موږ ته د الله ﷻ څخه وغواړه چې کلام يې واورو هغه ورته ويل زه به وغواړم کله چې موسی ﷺ غره ته نژدې شو نو وريځې هغه پټ کړ آن تردې چې ټول غر پټ شو نو دوې واوريدل چې الله ﷻ موسی ﷺ ته دامر او نهی خبري کوی کله چې وريځې الونياشوې او حضرت موسی ﷺ څرګند شو نو له دوی سره مخامخ شو هغوی موسی ﷺ ته وويل: (لَن نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى ٱللَّهَ جَهۡرَةٗ) هيڅکله به ستا په خبره باور ونکړو تر څو چې الله ﷻ ښکاره ونه وينو (۱)

## لغتونه:

(جهرة) څرګند د جهر اصل ظهور ته وايي لکه جهر د قرائت او جهر په ګناهونو يعنی په څرګنده دګناهونو تر سره کول لکه څوک چې وايي (رأيت الامير جهرة وجهاراً) يعنی ما وليد امير ښکاره چې هيڅ پټ نه وو ابن عباس ﷺ دجهرة معنی عيان ښودلې ده (الصاعقة) دعذاب چيغه او يا سوځونکی اور (بعثناکم) ژوندی کړی مو ياست تاسې طبري وايي (بعث اصلي معنی پورته کول ديوشي له خپله ځايه (الغمام) دغمامة جمع لکه سحاب او سحابة په وزن او معنی کی څکه هغه آسمان پټوی او کله چې وايي (غم الهلال) يعنی چې وريخ يې پټ کړي او ونه ليدل شي (حطة) له حط څخه اخيستل شوی چې کله ويل کيږي (حط عنا ذنوبنا (۲) دا داستغفار کلمه ده او دايې معنی ده چې زموږ ګناهونه راوبخښه (رجز) عذاب ته وايي لکه دا چې: (لئن کشفت عنا الرجز) يعنی عذاب (يفسقون) دوی تجاوز کوي فسق له طاعت څخه وتلو ته وايي.

## تفسير:

﴿ وَإِذۡ قُلۡتُمۡ يَٰمُوسَىٰ ﴾ (دريه ياد کړی، هغه وخت چې وويل تاسو اي موسیٰ) يعنی کله چې تاسی له موسی ﷺ سره يو ځای دالله حضور ته دعذر وړاندې کولو لپاره ووتلاست او بيا مو وويل ﴿ لَن نُّؤۡمِنَ لَكَ ﴾ (هيڅکله به له سره باور ونکړو) هغه څه چې اورو يې چې دا دالله کلام دی ﴿ حَتَّىٰ نَرَى ٱللَّهَ جَهۡرَةٗ ﴾ (تر څو چې

---

(۱) مختصر ابن کثير ۶۴/۱.
(۲) مجاز القرآن ۴۷/۱.

خپله ووينو الله ښكاره) ﴿فَأَخَذَتْكُمُ ٱلصَّٰعِقَةُ﴾ (بيا ونيولی تاسي تندر (اور) هغه چې الله ﷻ له اسمانه اور راوليږل او دوی يې وسوخول ﴿وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ﴾ او حال دا چې تاسي ورته كتل، بيا كله چې مړه شول موسی ﷺ الله ته وژړل او ويل يې اې ربه زه به بني اسرائيلو ته څه وايم؟ په داسي حال كی چې تاسي سپين روږي او ستانه كسان ووژل، او پر له پسې دعاګانی يې كولې تر څو الله ﷻ بيرته ژوندی كړل ﴿ثُمَّ بَعَثْنَٰكُم مِّنۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ﴾ پس له هغه بيا ژوندی كړی موږ تاسي يعنی وروسته له دې چې تاسي يوه شپه او ورځ مړه واست او بيا را پاڅيدلی يو بل ته مو كتل چې څنګه ژوندی شوی ﴿لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ دپاره ددې چې تاسي شكر ګذار شی، په راژوندی كيدلو او پاڅيدلو وروسته له مرګ څخه بيا الله ﷻ هغه نعمت ورته ياد كړ كوم چې دوی دجبارينو ښارته له ننوتلو او له هغوی سره دجنګ كولو څخه ډډه وكړه او موسی ﷺ ته يې وويل: ﴿فَٱذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَٰتِلَآ﴾ [المائدة: ٢٤] نو پدې باندی الله ﷻ څلويښت كاله دوی په (تيه) كی لالهاند كړل الله ﷻ فرمايي: ﴿وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ ٱلْغَمَامَ﴾ (او ياد كړی هغه وخت چې سيوری ګرځولې وو موږ په تاسی وريځ) ﴿وَأَنزَلْنَا عَلَيْكُمُ ٱلْمَنَّ وَٱلسَّلْوَىٰ﴾ (او نازل كړی وو موږ په تاسی من او سلوی) يعنی تاسو ته مو ډول ډول نعمتونه دركړی وو چې داسي بې ربړ او زحمته خوراک څښاک وو لكه من او سلوی من لكه عسل غوندی خوندور څيز وو چې له اوبو سره به يې ګډول او څښل[1] او سلوی د(مرغ) په شان مرغان وو چې خورا خوندور وو[2] ﴿كُلُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ﴾ وخوری له پاكيزه دهغو شيانو چې روزي دركړې ده موږ تاسي ته ﴿وَمَا ظَلَمُونَا وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ﴾ (او ظلم نه وو كړی دوی پر موږ باندی ليكن دوی په خپلو ځانونو باندی ظلم كاوو) يعنی دوی پر دادومره ډيرو نعمتونو كفران وكړ دوی په موږ ظلم ندی كړی بلكه پخپلو ځانونو يې وكړ دعصيان وبال په دوی پريوت ﴿وَإِذْ قُلْنَا ٱدْخُلُوا۟ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةَ﴾ او در په ياد كړی هغه وخت چې وويل موږ چې ننوځی دغه قريې ته يعنی هغه وخت درياد كړه چې كله له تيه څخه راووتی موږ درته وويل بيت المقدس ته ننوځی ﴿فَكُلُوا۟ مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا﴾ پس خوری له ميوو دهغو څخه هر چيری هر څومره چې موخوښه وی ﴿وَٱدْخُلُوا۟ ٱلْبَابَ سُجَّدًا﴾ او ننوځئ په دروازه (ددې ښار كی) سجده كوونكی څكه چې الله ﷻ له (تيه) څخه راوايستلې شكر يې ادا كړی ﴿وَقُولُوا۟ حِطَّةٌ﴾ اوواياست اې ربه وبښه زموږ ګناهونه ﴿نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطَٰيَٰكُمْ﴾ چې وبښو تاسي ته ګناهونه ستاسي ﴿وَسَنَزِيدُ ٱلْمُحْسِنِينَ﴾ اوژر ده چې زيات به كړو نيكانوته اجر او ثواب لوی ﴿فَبَدَّلَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟﴾ (پس بدل كړی هغو كسانو چې ظلم يې كړی وو) يعنی تغيير يې كړ امر دالله او ويې ويل:

---

(١) دادربيع بن انس قول دی.

(٢) دادجمهورو مفسرينو وينا ده.

﴿ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ ﴾ ( خبره بل شان له هغې چې دوی ته ویلی شوی وه ) چې دوی دشا په څټ په کوناتیو ورښوئیدلو او دملنډو په شان یې ویل (حبة في شعيرة) او دالله په اوامرو یې ریشخندواهو ﴿ فَأَنزَلْنَا عَلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ ﴾ پس نازل کړ موږ په هغو کسانو چې ظلم یې کړی وو عذاب له آسمانه چې هغه طاعون او وباوه ﴿ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴾ په سبب ددې چې دوی به (دالله له فرمانونو) سر غړاوو ، روایت کاوه شي چې په یوه ساعت کې دطاعون په ذریعه اویا زره کسان یهودان مړه شول.

## بلاغت:

۱. کله چې یې (بعث) په (بعد الموت) مقید کړ دادزیات تاکید لپاره چې څوک داسي ونه انګیري چې ګواکې دابه بیهوښي وه او یا به خوب وو ځکه نو بعث وروسته له مرګه یې وویل چې هغه حقیقی مرګ دی.

۲. پدې آیتونو کې ایجاز بالحذف دی چې فرمایي: (کلوا...) او تقدیر یې داده چې (قلنا لهم کلوا...) او پدې آیت کې چې (وماظلمونا ) تقدیر یې دا چې (فظلموا انفسهم بان کفروا وماظلمونا بذلک) او پدغه حذف باندی داقول دلالت کوی چې فرمایي (ولکن کانو انفسهم یظلمون) او کله چې دماضي او مضارع صیغې یوځای راوړي لکه (وظلمونا ) او (یظلمون) تر څو داددوی په استمراری کفر او زیاته سر غړونه او عصیان دلالت وکړی([1])

۳. ظاهر دضمیر په ځای کې راوړل لکه (فانزلنا علی الذین ظلموا ) او داسي یې ونه ویل (فانزلنا علیهم ) دادزیاتي تقبیح او بدي لپاره او (رجزا ) دهیبت لپاره([2])

**تنبیه:**

راغب وایي چې: عذاب په دوه ډوله دی یو هغه دانسانانو په لاس عذاب دی چې دهغه مخنیوی دبنیادمانو په لاس ممکن وی لکه نړیدل ، ډوبیدل او یانور او بل ډول هغه عذاب دی چې دبشر په وس کې دهغه مخنیوی ممکن نه وی لکه طاعون ، تندر ، او مرګ او په (رجزا من السماء) کې همدادوهم ډول مراد دی.

***

---

(۱) الفتوحات الالهیة ۵۷/۱.
(۲) ارشاد العقل السلیم ۸۳/۱.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ وَإِذِ ٱسْتَسْقَىٰ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ فَقُلْنَا ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْحَجَرَ ۖ فَٱنفَجَرَتْ مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۖ كُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟ مِن رِّزْقِ ٱللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿٦٠﴾ وَإِذْ قُلْتُمْ يَٰمُوسَىٰ لَن نَّصْبِرَ عَلَىٰ طَعَامٍ وَٰحِدٍ فَٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلْأَرْضُ مِنۢ بَقْلِهَا وَقِثَّآئِهَا وَفُومِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا ۖ قَالَ أَتَسْتَبْدِلُونَ ٱلَّذِى هُوَ أَدْنَىٰ بِٱلَّذِى هُوَ خَيْرٌ ۚ ٱهْبِطُوا۟ مِصْرًا فَإِنَّ لَكُم مَّا سَأَلْتُمْ ۗ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ ٱلذِّلَّةُ وَٱلْمَسْكَنَةُ وَبَآءُو بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ ۗ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا۟ يَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَيَقْتُلُونَ ٱلنَّبِيِّۦنَ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ۗ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا۟ وَّكَانُوا۟ يَعْتَدُونَ ﴿٦١﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱلَّذِينَ هَادُوا۟ وَٱلنَّصَٰرَىٰ وَٱلصَّٰبِـِٔينَ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٢﴾ ﴾ البقرة: ۶۰-۶۲.

## مناسبت او تړاو:

تړاو سره پوري لا آيتونه دبني اسرائيلو نعمتونه بيا نوی او دا يو بل ستر نعمت دی چې کله دوی په (تيه) کې لالهاندوو او سخت تږی شول چې نږدې وو هلاک شي نو موسی ﷺ الله ته دعا وکړه چې دوي ته اوبه ورکړي خو تنده يې ماته شي الله ورته وحی وکړه چې په لکړه دې ډبره ووهه نو بيا ددوی دټبرونو او قومونو په شمير ويالې خنی راوبهيدې دوي دوولس توکمه ووا و ددوولس لنبتي خنی را بهر شول چې هر چابه له خپل لنبتي او ويالې څخه خپل حاجت بشپړاوو چې دبل چا به ورسره کار نه وو او دا داوبولو پيښه دحضرت موسیٰ ﷺ ښکاره معجزه وه خو له هغه سره سره دوی بيا هم انکار او کفران کاوو.

## لغتونه:

(استسقی) اوبه غوښتل ښکه سين او تا دطلب او غوښتنې لپاره راځی لکه: (استنصر) او (استخبر) ابو حيان وايي: استسقا داوبو هغی غوښتنی ته وايی چې اوبه نه وی او يا لږ وی او دلته مفعول محذوف دی يعنی کله چې وغوښتې موسی اوبه له خپله ربه[۱] (فانفجرت) انفجار څيريدلو ته وايي لکه چې (فجر) هم درنا رادبره کيدل بولی (انفجر) او (انبجس) دواړه په يوه معنی راځي لکه (فانبجست منه) [الاعراف: ۱۶۰] (مشربهم) ځای داوبو څښلو (تعثوا) عيث دفساد شدت ته وايي لکه عثی يعثی وعثا فهو عاث[۲] طبری وايی چې معنی يې طغيان او په اصل کې دفساد شدت ته وايي (فومها) فوم (ثوم) هوږې ته وايي چا بيا ويلی غنمو ته وايي (يستبدلون) استبدال ديو څيز پريښود واو دهغه په ځای بل څيز اخيستلو ته وايي (ادنی) بيکاره او چټي هغه سړی ته دنئ وايي چې په خسيسو شيانو پسي ګرځي (الذلة) سپکتيا او خواری ته وايي (المسکنة) بيوزلی او عاجزی ته وايي له سکون څخه اخيستل شوی او بيوزله هم ډير لږ خوځيږی ځکه هغه فقير او نيستمن وی (باءوا)

---

(۱) البحر المحيط ۲۳۲/۱.

(۲) کذافي المصباح.

رجوع او انصراف ته وايي امام رازي وايي چې (باء) يوازې په شرکۍ راځي (يعتدون) اعتداء له حد او پولې څخه تجاوز ته وايي او دا هم په ګناه او ظلم کې.

تفسير:

﴿ وَإِذِ ٱسْتَسْقَىٰ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ ﴾ (او ياد کړۍ هغه وخت چې اوبه وغوښتې موسى خپل قوم لره ) کله چې په تيه کې هغوى تږي شول ﴿ فَقُلْنَا ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْحَجَرَ ﴾ (نو موږ ورته وويل ووهه په همسا خپلې سره تيږه ) هره يوه چې وى زموږ په قدرت به ځنې او به راوزى ﴿ فَٱنفَجَرَتْ مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ﴾ نو وخوټيدې له هغې تيږې څخه (دوولس چينې) خومره چې ددوى ټبرونه او قبيلې وې ﴿ قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ﴾ (په تحقيق سره وپوهيدل هر قوم ځاى د (اوبو څښلو څپلو ) تر څو يو له بله جګړه ونکړي ﴿ كُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟ مِن رِّزْقِ ٱللَّهِ ﴾ (خورۍ او څښئ له روزي دالله ﷻ ) چې (من او سلوى ) ده او څښئ له دغو اوبو څخه (بې له واسطې داسبابو ) او دا يوازې دالله انعام دى ﴿ وَلَا تَعْثَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴾ (او مه تيريږئ له حده په فساد کولو په ځمکه کې )

﴿ وَإِذْ قُلْتُمْ يَٰمُوسَىٰ ﴾ (او ياد کړئ هغه وخت چې وويل تاسې اې موسى ) کله چې تاسې ته من او سلوى دررسيدل او په صحراء کې او سيدلې ﴿ لَن نَّصْبِرَ عَلَىٰ طَعَامٍ وَٰحِدٍ ﴾ (هيڅکله موږ په يوه خوراک صبر نشو کولاى ) کوم چې من او سلوى دى ﴿ فَٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلْأَرْضُ ﴾ (پس وغواړه زموږ لپاره له خپل پرور دګار نه چې راوباسي موږ لره له هغو شيانو چې زرغونوي يې ځمکه) نور له من او سلوى خورلو څخه خاتورى شوو او زړه مونه غواړى هغه څه غواړو چې له ځمکې راشنه کيږى لکه غلې دانې او سبزى ،سابو ﴿ مِنۢ بَقْلِهَا ﴾ لکه شنه نعناع ، ګندنا او کاهو ﴿ وَقِثَّآئِهَا ﴾ او لکه بادرنګ يا خيار، ترې ﴿ وَفُومِهَا ﴾ او لکه هوږه ﴿ وَعَدَسِهَا ﴾ او له نسکو ﴿ وَبَصَلِهَا ﴾ او له پيازو ﴿ قَالَ أَتَسْتَبْدِلُونَ ٱلَّذِى هُوَ أَدْنَىٰ بِٱلَّذِى هُوَ خَيْرٌ ﴾ نو وويل موسى ايا بدلوئ هغه څه چې ناکاره دي په هغه څه چې بهتر او غوره دى ؟ دغه استفهام يې دانکار په ډول وکړ يعنې افسوس ده تاسې لره ﴿ ٱهْبِطُوا۟ مِصْرًا فَإِنَّ لَكُم مَّا سَأَلْتُمْ ﴾ (کوزشئ يوه ښارته پس بيشکه تاسې لره دى هغه څه چې غواړۍ يې) .بيا الله تعالى ددوى دګمراهى ، فساد ، دښمني او سرغړونې دتنبيه لپاره وفرمايل: ﴿ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ ٱلذِّلَّةُ وَٱلْمَسْكَنَةُ ﴾ (او مقرر شو په دوى ، ذلت او محتاجى ) دهغه نعمت دکفران په سبب په دوى سپکتيا او بيوزلى دتل لپاره وتړل شوه چې هيڅکله به ځنې نه وزګاريږي. ﴿ وَبَآءُو بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ (او اخته شول دوى په غضب له جانبه دالله) ﴿ ذَٰلِكَ ﴾ (دغه سپکاوى) او دخداى غضب او ذلت دهغو جرائمو له امله ده چې دوى به کول ﴿ بِأَنَّهُمْ كَانُوا۟ يَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَيَقْتُلُونَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ﴾ (دا خوارى او ذلت وو په سبب ددې چې دوى دالله په آيتونو کافران وو ) او نبيان بې په نا حقه وژل ﴿

ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴾ دغه کفر او قتل) په سبب د دې وو چې سرغړونه يې کړې وه ) او دعصيان په سبب به له حدودو تيريدل د الله احکام به يې نه منل بيا الله ﷻ ټول ملتونه او پرګنې که مسلمانان دی که يهود، نصاری او صابئين دوی يې رښتيني ايمان ته راوبلل کوم چې يوازې په الله ايمان او دهغه لپاره خالص عمل وي او دخبر په صيغه يې وفرمايل: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ بيشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی) دمحمد ﷺ امتيان ﴿ وَٱلَّذِينَ هَادُوا ﴾ (يهودان دحضرت موسی ﷺ (اتباع) ﴿ وَٱلنَّصَٰرَىٰ ﴾ (دحضرت عيسی ﷺ (اتباع) ﴿ وَٱلصَّٰبِـِٔينَ ﴾ (هغوی چې يهوديت او نصرانيت يې پرې ايښي ) او دملائکو پرستش کوي ﴿ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ ﴾ (چې ايمان يې راوړی په الله او باور لري د آخرت په ورځ) ﴿ وَعَمِلَ صَٰلِحًا ﴾ او عمل يې کړی دی دنيکو په دنيا کی ﴿ فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ (نو وي به ثواب ددوی په نزد درب ددوی) چې يوه ذره ثواب به يې کم نشي ﴿ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ (او نه به وی هيڅ ډول ويره په دوی او نه به دوی خپه کيږی) يعنی کله چې په ورځ د آخرت کفار ويريږي او يا هم ګنهکاران دخپل ژوند په تباه کولو او دثواب په بايللو خپه کيږی دوی ته به هيڅ ويره او خفګان نه ورپيښيږي.

بلاغت:

۱. درزق په نسبت کولو کی چې الله ته يې کوی (كُلُوا وَٱشْرَبُوا مِن رِّزْقِ ٱللَّهِ) دهغه انعام او احسان تعظيم او دې ته اشاره ده چې بې له کوم تکليف او زحمت نه پرته ورپا لاس ته راغلی دی.

۲. دمخکی په صراحتا يادولو کی کله چې فرمايي: (وَلَا تَعْثَوْا فِى ٱلْأَرْضِ) دفساد په بدګڼلو کی مبالغه ده او کله چې (مُفْسِدِينَ) موکد حال راغلی دا ددې لپاره چې کله کله متکلم له دې امله چې دامر او يا نهی په خواوشا کی شک او شبه پاتې نشي زياته پاملرنه او لورينيه کوی او هغه بيا په تاکيدی حال بيانوی چې دغه مفسدين کلمه يې هم ددغه فساد څخه په قوت او سختی سره دممانعت په معنی ده.

۳. دالله تعالی په دغه وينا کی چې (مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلْأَرْضُ) ده اصلی زر غوونکی او شين کوونکی خو الله تعالی دې دلته دمجاز عقلي صنعت دی او علاقه يې سببيت دې څکه ځمکه هم دزرغونيدلو سبب دی.

۴. (وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ ٱلذِّلَّةُ وَٱلْمَسْكَنَةُ) پدې قول کی کنايه استعمال شوې او لکه چې خيمه په چا وهل شوې وی دا رنګه ذلت او بيوزلي په هغوی وهل شوی ده.

۵. دانبیاوو قتل چې په غیر حق سره یې مقید کړی سره له دې چې په حق هیڅکله نه دی وژل شوی دا دزیات بدوالی او ددوی دسختی دښمني له کبله ده.

## ګټې او فائدې:

لومړۍ فائده: مفسرینو دهغې ډبرې په هکله کومه چې اوبه ځنې راوخوټیدې ډیر اقوال روایت کړی مونږ له هغو نه تیر شو او هغه چې دآیت دپوهیدلو په هکله کفایت کوی دادی چې کومه ډبره چې موسی ﷺ په همسا ووهله هغه دهغو ډبرو له ویش څخه و. کومې چې عادتا او به هیڅکله ځنې نه راوزې خکه نو څرګنده معجزه ده حسن بصری رحمه الله وایی چې الله ﷻ یوازې کومه معلومه ډبره ورته نه ده ښودلې خکه دا لا دڅرګندې معجزې یو بل دلیل او د الهی قدرت نښانه ده.(۱)

دوهمه فائده: که څوک وایي ولی دوولس چینې وبهیدلې؟ خواب دا چې دموسی ﷺ قوم ډیر او په صحراء کی وو او کله چې په خنکو زیاته تنده راشی او بیا اوبه پیدا کړی خامخا یې تر منځ اخ اوډب پیښیږي نو الله دغه نعمت هم وریشپړ کړ او دهرقوم په سر یې یوه ویاله ورکړه دوی دیعقوب ﷺ دوولس زامنو اولاده دوولس خیله وو والله اعلم.

دریمه فائده: ځینې مفسرینو وایي چې مراد له(فوم) څخه غنم دی خو درنه رایه داده چې هوږه (ثوم) ته ویلې شي او دابن مسعود ﷺ قرائت چې (وثومها) یې تلاوت کړی هم ددغې رایې ملاتړکوی او بل دا چې پیاز ورسره وروسته ذکر شوی دي، فخر رازي وایي چې: هوږه له عدس (نسک) او پیاز سره مناسب ده او قرطبي دحضرت حسان ﷺ په قول دلیل راوړی چې هغه وایي:

وانتم اناس لئام الاصول طعامکم الفوم والحوقل

تاسي هغه خلک یاست چې پلرونه مو ناخوانه وو ستاسو هوږه او پیاز خواړه دی.

## الله تعالی فرمایي:

﴿ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ ٱلطُّورَ خُذُوا۟ مَآ ءَاتَيْنَٰكُم بِقُوَّةٍ وَٱذْكُرُوا۟ مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿٦٣﴾ ثُمَّ تَوَلَّيْتُم مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ ۖ فَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُۥ لَكُنتُم مِّنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿٦٤﴾ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ ٱلَّذِينَ ٱعْتَدَوْا۟ مِنكُمْ فِى ٱلسَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ كُونُوا۟ قِرَدَةً خَٰسِـِٔينَ ﴿٦٥﴾ فَجَعَلْنَٰهَا نَكَٰلًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٦٦﴾ ﴾ البقرة: ٦٣ - ٦٦

(۱) الکشاف ۱/۱۰۷.

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله ﷻ دخپلو سترو نعمتونه يادونه وکړه ورپسې يې دهغو عذابونو ذکر راوړ چې په دوی باندې ددوی دکفر او عصيان له امله نازل شوی وو دوی دالله ﷻ دنعمتونو کفران وکړ او دالله ﷻ له اوامرو څخه يې سرغړونه وکړه وعده او عهد يې مات کړ او دشنبې په ورځ يې تجاوز ته ملاوتړله څو چې الله ﷻ دوی مسخ او بيزوګان کړل همداسې به دهر متجاوز امت او د هغه چا حال وی چې دخپل پروردګار او دهغه دپيغمبرانو له غوښتنو څخه سرغړوي.

## لغتونه:

(ميثاقکم) ميثاق محکم عهد ته وايي چې په يمين( قسم )او يا بل څه يې تاکيد شوی وی او دلته مراد دتورات په حکمونو عمل کول دی (الطور) هغه غره ته وايي کوم چې الله تعالی له موسی ﷺ سره وباندې خبرې کړې دی (بقوة) په کلک عزم او حزم سره (توليتم) تولّی اعراض او مخ ګرزولو ته وايي (خاسئين) دخاسئ جمع او سپک خوارته ويل کيږي دلغت پوهان وايي چې خاسئ شړل شوی او سپک ته وايه شي لکه چې سپی خلکو ته نژدې شي دوی ورته وايي (اخسئ )يعنی ورک او ليرې شه (نکالاً) سخت عذاب ته ويل کيږي هر عذاب ته نکال نه ويل کيږي ترڅو زجرورکونکی او ويروونکی نه وی.

## تفسير:

﴿ وَإِذۡ أَخَذۡنَا مِيثَٰقَكُمۡ ﴾ (اوياد کړی هغه وخت چې واخيست موږ محکم عهد ستاسې څخه ) چې تاسو ويل موږ به په تورات عمل کوو ﴿ وَرَفَعۡنَا فَوۡقَكُمُ ٱلطُّورَ ﴾ او پورته کړ موږ په سر ستاسې دطور غر؛ او لکه سيوری غوندې وو موږ تاسو ته وويل ﴿ خُذُواْ مَآ ءَاتَيۡنَٰكُم بِقُوَّةٖ ﴾ (واخلی هغه احکام چې درکړی دی موږ تاسې ته په ښه کوښښ سره ) يعنی عمل وکړی په هغو احکامو چې په تورات کې دی په ښه زيار او جديت سره ﴿ وَٱذۡكُرُواْ مَا فِيهِ ﴾ (او ياد کړی هغه احکام چې په ده کې دی ) مه يې هيروی او مه ځنې غافل کيږی ﴿ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ﴾ لپاره ددې چې په دنيا او آخرت کې تاسو له هلاکت څخه وژغول شی ) -او يا -هيله ده چې تاسو دمتقينو له ډلې څخه وګڼل شی ﴿ ثُمَّ تَوَلَّيۡتُم مِّنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ ﴾ بيا شاکړه تاسې وروسته له دې عهد نه ﴿ فَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ ﴾ نو که چېرې نه وی په تاسې دالله فضل دتوبې په قبلولو سره ﴿ وَرَحۡمَتُهُۥ ﴾ (او مهرباني دهغه چې تاسې ته يې ګناه دروبښله ) ﴿ لَكُنتُم مِّنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ﴾ (نو هرو مرو به شوی وی تاسې له زيانکارانو ) په دنيا او آخرت کې ﴿ وَلَقَدۡ عَلِمۡتُمُ ٱلَّذِينَ ٱعۡتَدَوۡاْ مِنكُمۡ فِي ٱلسَّبۡتِ ﴾ (او خامخا په تحقيق سره ښه پيژندلی دی تاسو هغه کسان چې تجاوز يې کړی وو له تاسې څخه (دماهيانو په ښکار) په ورځ دشنبې کې) يعنی تاسې ته معلومه ده هغه چا چې زموږ له امر څخه غاړه غړوله او چې موږ ځنې منع کړی وو دهغه په خلاف يې دشنبې په ورځ دماهيانو ښکار کاوو ﴿ فَقُلۡنَا لَهُمۡ كُونُواْ قِرَدَةً خَٰسِـِٔينَ ﴾ نو وويل موږ دوی ته چې شی بيزوګان ذليل (خوار شوی) يعنی

دوې بشر وو خو موږ په ذليلو بيزوګانو مسخ کړل ﴿ فَجَعَلْنَٰهَا نَكَٰلًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا ﴾ نو وګرزوله موږ دغه مسخ يو عبرتناک عذاب دحاضرو امتونو﴿ وَمَا خَلْفَهَا ﴾ او دهغوي چې وروسته راځي ﴿ وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴾ او پند لپاره دپرهيزګارانو او دسبحانه وتعالى دصالح بندګانو.

## بلاغت:

۱ - (خُذُواْ مَآ ءَاتَيْنَٰكُم بِقُوَّةٍ) دلته ايجاز بالحذف دى يعنى موږ ورته وويل واخلئ. او دالکه چې زمخشرى ليکي دقول په راوړلو سره بشپړيږي يعنى: قلنا لهم خذوا...

۲ - (كُونُواْ قِرَدَةً خَٰسِـِٔينَ) دلته امر له خپل حقيقت څخه دتحقير او اهانت معنى ته راووت ځينو مفسرينو ويلي چې دغه پخپله دتحقير او تکوين امر دى او دا دقدرت له تعلق څخه عبارت دى چې دوى بې دبشريت له حقيقت څخه دبيزوګانو حقيقت ته وليږدول(۱)

۳ - (لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا) دلته کنايه ده له هغو خلکو او امتونو څخه چې تر دوى مخکې او يا وروسته راځي او يا عبرت دى رومبنيو او وروستنيو ته.

## ټکي او فائدې:

لومړۍ فائده: قفال وايي دا چې يې وفرمايل: (مِيثَٰقَكُمْ) او داسي يې ونه ويل (مواثيقكم) څکه ددوى د هريوه ميثاق يې جلا جلا اراده کړې لکه چې بل ځاى فرمايي (ثم يخرجكم طفلا) يعنى راباسي هريو ستاسي ماشوم(۲)

دوهمه فائده: د لطافت دپوهې ځينې خاوندان وايي چې دبني اسرائيلو نفسونه له تاريکي څخه ډک وو خودبيني او تکبر يې اوج ته رسيدلى وو کله چې دتورات دحکمونو دمنلو امر ورته وشو دوى ته ډېر دروند ښکاره شو نو سر يې وغړاوو الله تعالى دطور غر ورباندى دپاسه کړ او بيا يې سوچ وکړ چې داغرخو دتورات تر حکمونو لا پسې دروند دى نو يې تورات ته غاړه کښيښوده.

دريمه فائده: دمتقيانو لپاره پند چې ځانګړي وګڼل شو (وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ) څکه په پند او وعظ سره دوى نفع اخلى لکه چې الله فرمايي (وذكر فان الذكرى تنفع المؤمنين).

---

(۱) الفتوحات الالهية ۷۳/۱.
(۲) البحر المحيط ۲۴۳/۱.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦٓ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا۟ بَقَرَةً ۖ قَالُوٓا۟ أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ۖ قَالَ أَعُوذُ بِٱللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ
ٱلْجَٰهِلِينَ ﴿٦٧﴾ قَالُوا۟ ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا هِىَ ۚ قَالَ إِنَّهُۥ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ عَوَانٌۢ بَيْنَ ذَٰلِكَ ۖ
فَٱفْعَلُوا۟ مَا تُؤْمَرُونَ ﴿٦٨﴾ قَالُوا۟ ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا لَوْنُهَا ۚ قَالَ إِنَّهُۥ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ فَاقِعٌ
لَّوْنُهَا تَسُرُّ ٱلنَّٰظِرِينَ ﴿٦٩﴾ قَالُوا۟ ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا هِىَ إِنَّ ٱلْبَقَرَ تَشَٰبَهَ عَلَيْنَا وَإِنَّآ إِن شَآءَ ٱللَّهُ لَمُهْتَدُونَ
﴿٧٠﴾ قَالَ إِنَّهُۥ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُولٌ تُثِيرُ ٱلْأَرْضَ وَلَا تَسْقِى ٱلْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيهَا ۚ قَالُوا۟ ٱلْـَٰٔنَ جِئْتَ بِٱلْحَقِّ ۚ
فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا۟ يَفْعَلُونَ ﴿٧١﴾ وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَٱدَّٰرَْٰٔتُمْ فِيهَا ۖ وَٱللَّهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ﴿٧٢﴾ فَقُلْنَا ٱضْرِبُوهُ
بِبَعْضِهَا ۚ كَذَٰلِكَ يُحْىِ ٱللَّهُ ٱلْمَوْتَىٰ وَيُرِيكُمْ ءَايَٰتِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٧٣﴾ ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُم مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ فَهِىَ كَٱلْحِجَارَةِ
أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً ۚ وَإِنَّ مِنَ ٱلْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ ٱلْأَنْهَٰرُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ ٱلْمَآءُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ
مِنْ خَشْيَةِ ٱللَّهِ ۗ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٧٤﴾ ﴾ البقرة: ٦٧ - ٧٤

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله د يهودانو ځيني جرائم او بدي ذکر کړې چې هغو ي وعدې ماتوي د الله له اوامرو سرغړوي کوم چې د شنبې په ورځ ښکار کوي او د الله نازل شوي شريعت او حکمونه يې نه پرځای کوی الله د دوی يو بل رنګه جرم او معصيت بيانوی هغه دا چې دوی د انبياوو عليهم السلام هم مخالفت کوی هغوی ته دروغجن وايي او کوم الهی حکمونه چې په همدې انبياوو رانازليږي دوی يې امتثال ته چمتو نه دی او بيا ډيرې پوښتني اوزياته سپين سترګي له انبياوو سره کوی او دا چې له خپل پيغمبر حضرت موسی ﷺ سره يې په مخاطبه کې څومره بې دريغه جفا کړی ده.

## لغتونه:

(هزوا) هزو مسخرې او ملندو ته وايي (هزوا) لکه (کفوا) داسي ده بيا يې زا ته ضمه ورکړه او همزه يې په واو سره بدله کړه او دلته مضاف حذف شوی چې تقدير يې داده (اتتخذنا موضع هزو) يعنی ايا ته موږ د مسخرو ځای ګڼې او يا هم مصدر د مفعول په معنی دی چې ايا ته موږ مسخره کړل شوی ګرځوې (فارض) زړه (بکر) ځوانه هغه چې لا لنګه شوې نه وي فحل هم د هغې د کوچنيوالی له امله ورنږدې شوی نه وی (عوان) ميانه حاله ده نه ډيره زړا ده او نه ډيره وړه او چا بيا ويلی دی هغه چې يو ځل او يا دوه ځلی لنګه شوې وی (فاقع) فقوع د ژيړوالی وروستی حد ته وايي (چې موږ په پښتو کی ورته تک ژيړ وايو) لکه چې ويلی کيږی (احمر قانٍ) يعنی تک سور طبری وايي او د الکه چې تک سپين ته وايي (ابيض ناصع) ، (ذلول) يعنی نه ده تکليف کښونکی د قلبې لپاره (مسلمة) له عيوبو خلاصه ده (شية) داغ (مخالف) تکي له رنګه د هغې له اصلی رنګ څخه په کي نشته (۱) (فادارأتم) په

---

(۱) البحر المحيط ۲۴۸/۱ .

جګړه شوی اختلاف او شخړې مو رامنځ ته کړې اصل د دغې کلمې (تدارأتم) وو او د (درء) معنی دفع کول دي او دوارو قبیلو یو بل څخه دفع کوله نو (تا) یې په دال کې مدغم کړه او همزه دوصل یې ددې لپاره راوړه چې په ساکن توري پیل او ابتداء رانشي (ادّارأتم) شو او په حدیث شریف کې راځي (أدرؤا الحدود بالشبهات) (قست) سخت شول درقت (نرم والی) ضد ته ویل کیږي (یشقق) څیرل په اوږده او پسورته وایي (یهبط) ښکته رارغړیدل.

## د مړي دژوندي کولو معجزه او دغوا کیسه:

ابن ابي حاتم له عبیده السلماني څخه روایت کوی هغه وایي: په بني اسرائیلو کې یو موړ سړی وو چې اولاد یې نه درلود وراره یې وارث وو نو یې خپل تره وواژه او دشپې یې دیو چا په دروازه کې وغورځاوو او بیا یې په هغوی دوژلو دعوی وکړه آن تر دې چې( دتورن قاتل اومقتول )دواړه خواوی جګړې ته تیار شول نو بیا هوښیارانو وویل موږ ولې یو بل سره وژنو؟ دادی دالله استازی موجود دی حضرت موسی ﷺ ته راغلل او کیسه یې ورته وکړه هغه ورته وویل: ﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا۟ بَقَرَةً﴾ الله درته امر کوی چې غوا حلاله کړئ که چېرې دوی اعتراض نه وی کړی هره غوا چې یې حلاله کړی وای هغه کافي وه خو دوی ډیرې پوښتنې پیل کړې آن تر دې چې هغې غوا ته خبره ورسیده چې بیا یې وموندله دا دیو سړي غواده چې له هغې پرته بله یې نه درلوده نو یې ورته وویل چې زما دی په خدای لوړه وی که به یې زه تردې کمه درکړم تر څو چې څرمن یې له سرو زرو راډکه نه کړئ نو دوی هم موافقه ورسره وکړه او څرمن یې په سرو زرو ورډکه کړه هغه یې حلاله کړه او په یوه ټوټه یې مړی وواهو هغه رااوچت شو دوی ورته ویل چا ووژلې؟ ده ورته ویل دغه سړی ! او خپل وراره ته یې اشاره وکړه او بیرته ومړ (وفات شو) نو یې وراره له میراث څخه محروم شو اوله هغه را وروسته اوس هیڅکله هم قاتل میراث نشي وړای (۱)او په یو روایت کې هغه هلک بیې وواژه.

## تفسیر:

﴿ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦٓ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا۟ بَقَرَةً ﴾ (یاد کړئ (اې بني اسرائیلو) کله چې وویل موسی خپل قوم لره چې بیشکه الله امر کوی تاسو ته چې حلاله کړئ غوا) ﴿ قَالُوٓا۟ أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ﴾ (وویل دوی ایا ګرځوی ته موږ مسخره) یعنی خپل نبی ته ستاسی بیکاره خواب هم داوو ﴿ قَالَ أَعُوذُ بِٱللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْجَٰهِلِينَ ﴾ (وویل موسی) پنا ه غوارم په الله له دې چې شم زه له ناپوهانو (مسخره چیانو) ﴿ قَالُوا۟ ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا هِىَ ﴾ (وویل دوی وغواړه دپاره زموږ له رب ستا څخه چې څرنګه غوا ده ؟) ﴿ قَالَ إِنَّهُۥ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ ﴾ (وویل موسی چې بیشکه هغه وایی چې بیشکه هغه یوه غواده چې نه ډیره زړه ده او نه ډیره وړه) ﴿ عَوَانٌۢ بَيْنَ ذَٰلِكَ ﴾ میانه ده په منځ ددې کې ﴿ فَٱفْعَلُوا۟ مَا تُؤْمَرُونَ ﴾ (وکړئ هغه څه چې دربانذی مامور شوی یاست) سختي مه کوی الله به درسره سختي وکړی ﴿ قَالُوا۟ ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا

(۱) مختصر ابن کثر ۷۶/۱ .

لَوْنُهَا ﴾ (وويل دوی وغواړه له رب ستا څخه چې بيان کړی موږ ته څرنګه ده رنګ دهغې ) سپين دی تور دی او يا بل دول ؟﴿ قَالَ إِنَّهُۥ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ ٱلنَّٰظِرِينَ ﴾ (وويل موسی ) بيشکه الله وايی چې بيشکه هغه غواده ژيړه تک ژيړ دی رنګ دهغې خوشحالوی زړونه دکتونکو ﴿ قَالُوا۟ ٱدْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا هِىَ ﴾ وويل دوی وغواړه له ربه ستا نه چې بيان کړي څه ده هغه غوا؟ بيرته يې سوال راوګرزواوو وروسته له دې چې دغوا تونه ، غابن او رنګ تول ورته معلوم شو نويې وويل چې داسي ميانه غواوی چې تک ژيړ رنګ لری ډيري دی کومه يوه يې رابنيي ﴿ إِنَّ ٱلْبَقَرَ تَشَٰبَهَ عَلَيْنَا ﴾ (بيشکه غوا په موږ مشتبه شوه ) موږ نه پوهيږو دکومي غوا په حلالولو راته امر شوی دی ﴿ وَإِنَّآ إِن شَآءَ ٱللَّهُ لَمُهْتَدُونَ ﴾ او بيشکه موږ که اراده وکړی الله خامخا لار پيدا کوونکي يو ﴿ قَالَ إِنَّهُۥ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُولٌ تُثِيرُ ٱلْأَرْضَ وَلَا تَسْقِى ٱلْحَرْثَ ﴾ وويل موسی بيشکه الله وايي چې بيشکه دا غواده چې نه ده تکليف ايستونکی چې مځکه اړوی (قلبه کوی) او نه اوبه کوی کښت ﴿ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيهَا ﴾ ساتلې شوې او سالمه ده له نورو رنګونو چې پکې هيڅ بل رنګ نشته تکه ژيړه ده ﴿ قَالُوا۟ ٱلْـَٰٔنَ جِئْتَ بِٱلْحَقِّ ﴾ وويل دوی (بنی اسرائلو ) اوس دی روښانه خبره وکړه چې هيڅ پټ والی پکې نشته ﴿ فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا۟ يَفْعَلُونَ ﴾ (پس هغه يې حلاله کړه او نه وو دوی نژدې دې ته چې دا کار به يې کړی وای ) يا له دې چې قيمت او بيه يې لوړه وه او يا هم دقاتل دپيدا کيدلو له شرمه بيا الله تعالی دخپل دغه امر چې دوی ته يې دغوا په حلالولو کړی وو داسي اخبار وفرمايه: ﴿ وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا ﴾ (ياد کړی هغه وخت چې مړ کړ (پلرونو ستاسي) يو سړی ﴿ فَٱدَّٰرَْٰٔتُمْ فِيهَا ﴾ او تاسو په جګړه او شخړه کی شوی په هغه (مقتول )کښې هر چا به دقتل تور له ځان څخه ليری کاوو او پر بل چا باندی به يې اړاوو ﴿ وَٱللَّهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ﴾ او الله ښکاره کوونکی دی دهغه څه چې تاسو هغه پټاوو (قتل) ﴿ فَقُلْنَا ٱضْرِبُوهُ ﴾ نو وويل موږ چې ووهی دامړی په يوه بوټی دغوا ؛چې ژوندی به شی او تاسو به له حقيقت څخه خبر کړي چې قاتل څوک دی ؟ ﴿ بِبَعْضِهَا ۚ كَذَٰلِكَ يُحْىِ ٱللَّهُ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾ دغه رنګه الله تعالی مړی ژوندی کوی لکه دغه سړی چې يې ستاسو په وړاندی ژوندی کړ ﴿ وَيُرِيكُمْ ءَايَٰتِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴾ او دربنيي دخپل قدرت دلائل لپاره ددي چې فکر او سوچ وکړی ،پدې وپوهيږی چې الله تعالی په هرڅه قادر دی . بيا الله تعالی ددوی دزړه له سخت والی او جفا څخه خبر راوړی فرمايي ﴿ ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُم ﴾ بيا سخت شو زړونه ستاسی، اې يهودانو چې وعظ او نصيحت ورباندی اغيزه نکوی ﴿ مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ ﴾ وروسته له دې (معجزاتو ) نه ﴿ فَهِىَ كَٱلْحِجَارَةِ أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً ﴾ نو دغه (زړونه) لکه تيږي دی او يا سخت تر تيږو ؛ لکه اوسپنه غوندی ﴿ وَإِنَّ مِنَ ٱلْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ او بيشکه چې له ځينو تيږو څخه هغه دي چې

خامخا خوتيږي ځنی لويې لويې ويالې ﴿ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَآءُ ﴾ او په تحقيق سره ځينی له دغو تيږو څخه هغه دی چې چوی او راوزی له هغوی نه اوبه؛ دغه چودل يې دالله له ويری وی ﴿ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ﴾ (او ځينی له هغو څخه هغه دی چې رارغړی دخدای له ويری نه ) دا ډيری ستاسو تر زړونو نرمی او اغيز منونکی دی ستاسی زړونه نه تاثير منی او نه هم نرميږی ﴿ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ او نه دی الله يې خبر له هغه څه نه چې تاسی يې کوی بلکه الله ﷻ څارونکی دی او پدې به دقيامت په ورځ جزا در کوی پدې کی وعيد او تهديد پټ دی.

## بلاغت:

۱ - ايجاز بالحذف لکه پدې کلام کی (فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ) له صدر د دغی جملې څخه دوه جملې چې دکلام له پيلتوب څخه معلوميږی حذف شوی تقدير يې داسي ده (فطلبوا البقرة الجامعة للاوصاف السابقة وحصلوها فلما اهتدوا اليها فذبحوها ).

۲ - دالله ﷻ داقول چې فرمايي (وَاللَّهُ مُخْرِجٌ مَا كُنْتُمْ تَكْتُمُونَ) دغه جمله اعتراضيه ده چې ددوو جملو يوه يې (فَادَّارَأْتُمْ فِيهَا) او بله يې (فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ بِبَعْضِهَا) ده ددوی تر منځ راغلې او کله چې معترضه دهغو ددو جملو ترمنځ چې شان يې پيوستون وی راشي کلام ته دبلاغت دپلوه ښکلا وربښي او داعتراض فائده دلته داده چې مخاطبين وپوهوي چې خا مخا به حقيقت ځليږی.

۳ - (ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُم) پدې جمله کی تصريحي استعاره ده څکه زړونه يې په ټينګ والی او سخت والی وستايل هغه چې وعظ او پند وربانذی اغيزه نلری ابو السعود وايی چې قسوت عبارت له ټينګ والی او جفا څخه دی او هغه سخت والی چې په ډبره کی ده که چېري داسي وعظونه او اخطارونه لکه چې ددوی زړونو ته مخامخ کيږی ډبرو او غرونو ته مخ شي ويلې کيږي او پستيږي (۱)

۴ - (فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ) دغي تشبيه ته مرسله مجمله وايي څکه دتشبيه توری او ادات موجود دي خو دشبه وجه يې حذف شوي ده.

۵ - (لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْأَنْهَارُ) دلته مجاز مرسل دي څکه ويالې خو نه بهيږي بلکه اوبه يې خو تيږي عرب کُله کله دمحل ذکر کوی چې مراد ځنی حال وی لکه چې روډ ذکر کوی خو مراد يې درود اوبه وی.

---

(۱) ارشاد العقل السليم ۹۰/۱.

## فوائد او ګټي:

لومړۍ فائده: دا چې الله تعالی وفرمایل: (قَالَ أَعُوذُ بِٱللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْجَٰهِلِينَ) ددې تنبيه ورکوی چې ملنډی په دینی امورو ستر جهل او ناپوهي ده ځکه نو ځیرونکو پوهانو دآیتونو لوستل په هغه ځای کی چې مسخری توکي کول کیږی منع کړی دی وایي چې قرآنکریم دتفکر او خشوع لپاره نازل شوی دتوکو ټکالو په ځای کی یې لوستل یې مناسب نه دی.

دوهمه ګټه او فائده: پدې قول کی چې الله ﷻ فرمایي (وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا) حاضرینو یهودوته خطاب دی او عادت داسي ده کله څوک یو چاته خطاب کوی دتیرو پلرونو کارنامې یې دوی ته نسبت کوی کله چې دوی هم دهغوی په پلونو پل ایږدی او دهغوی په کړو وړو خوښ وی او پدې کي توبیخ او ترټنه ده پخوانیو او وسنیو ته.

دریمه ګټه او فائده: دقتل پیښه دغواتر حلالولو دمخه پیښه وه که څه هم په یادولو کی وروسته راغلې او پدې کی دا راز نغښتی ده چې دغوا دحلالو دسبب لپاره تشویق پیدا کړی او بل دا چې ترټنه او ټکونه تکرار شی علامه ابوالسعود وایي چې ترتیب ددې لپاره واړول شو چې توبیخ او ترټل تکرارشی ځکه دیو چا وژل په ناحقه سره په موسی ﷺ ملنډې وهل او دهغه په غوښتنه باندی غوړ کوڼ اچول دا ډیر ستر جنایت او ګناه ده له دې سره ښایي چې څو څو ځله دوی وترټل شي (۱) څلورمه فائده: الله تعالی پدې مبارک سورت کښي دمړیو ژوندی کول پنځه ځله راوړی (الف): (ثُمَّ بَعَثْنَٰكُم مِّنۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ) (ب): (فَقُلْنَا ٱضْرِبُوهُ بِبَعْضِهَا) (ج): دهغو کسانو په باب چې ددوی له ښارونو خپلو په زرهاوو کسان راووتل (فَقَالَ لَهُمُ ٱللَّهُ مُوتُوا۟ ثُمَّ أَحْيَٰهُمْ) [البقرة: ۲۴۳] (د) او دحضرت عزیر ﷺ په کیسه کی (فَأَمَاتَهُ ٱللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُۥ) [البقرة: ۲۵۹] (هـ) او دحضرت ابراهیم ﷺ په کیسه کی: (رَبِّ أَرِنِى كَيْفَ تُحْىِ ٱلْمَوْتَىٰ) (۲) [البقرة: ۲۶۰].

پنځمه فائده: پدې کلمه کی چې فرمایي: (فَهِىَ كَٱلْحِجَارَةِ أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً) دلته د(او) کلمه دبل په معنی ده یعنی لکه تیږې غوندی بلکه زیات تر تیږو سخت دی لکه چې الله ﷻ بل ځای فرمایي (وارسلناه الی مائة الف او یزیدون) چا بیا ویلی چې (او) دتردید لپاره دی او یا هم دتخییر لپاره یعنی پدې تشبیه کی تالره اختیار دی چې ډیره یې بولې او که تر هغې سخت لکه اوسپنه غوندی څوک چې ددوی حال ورته معلوم دي هغه یې ډیره او یا تر هغې لاسخت ګڼی او چاته چې یې حال معلوم ندی هغه یې ډیره غوندي ګڼي.

شپږمه فائده: ځینی مفسرینو ویلی چې (خشیة) دلته پخپله حقیقي معنا دی او الله دغو ډبرو ته هم دویری اوخشیت څخه برخه اوونده ورکړې ده لکه چې الله دتسبیح په باب فرمایي:(وَإِن مِّن شَىْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِۦ) [الاسراء: ۴۴] نور چا بیا ویلي چې دلته مجازی معنا مراد کیږی لکه چې وایي: قال الحائط للمسمار: (لم تشقنی؟ قال سل من یدقنی)! یعني دیوال موږې ته وویل ولي مي څیري؟ هغه ورته وویل داپوښتنه له هغه چاڅخه کوه چې ما تک وهي والله اعلم؟.

---

(۱) ارشاد العقل السلیم ۹۰/۱.

(۲) همداسي علامه ابن کثیر فرمایلي دي

## الله تعالى فرمايي:

﴿ أَفَتَطْمَعُونَ أَن يُؤْمِنُوا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ مِن بَعْدِ مَا
عَقَلُوهُ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿۷۵﴾ وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم
بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَاجُّوكُم بِهِ عِندَ رَبِّكُمْ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿۷۶﴾ أَوَلَا يَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا
يُعْلِنُونَ ﴿۷۷﴾ وَمِنْهُمْ أُمِّيُّونَ لَا يَعْلَمُونَ الْكِتَابَ إِلَّا أَمَانِيَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَظُنُّونَ ﴿۷۸﴾ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ يَكْتُبُونَ
الْكِتَابَ بِأَيْدِيهِمْ ثُمَّ يَقُولُونَ هَٰذَا مِنْ عِندِ اللَّهِ لِيَشْتَرُوا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا كَتَبَتْ أَيْدِيهِمْ وَوَيْلٌ
لَّهُم مِّمَّا يَكْسِبُونَ ﴿۷۹﴾ وَقَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً قُلْ أَتَّخَذْتُمْ عِندَ اللَّهِ عَهْدًا فَلَن يُخْلِفَ اللَّهُ
عَهْدَهُ أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿۸۰﴾ بَلَىٰ مَن كَسَبَ سَيِّئَةً وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَتُهُ فَأُولَٰئِكَ
أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿۸۱﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا
خَالِدُونَ ﴿۸۲﴾ ﴾ البقرة: ۷۵ - ۸۲

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله تعالى ديهودانو عناد ، او دالله ﷻ حکم نه منل او له انبياء عليهم السلام سره مجادله کول دالله او پيغمبر له اوامرو څخه سر غړول ذکر کړی له دي وروسته يې ددوی نوري بدي ګناوی او جرائم کوم چې دوی تر سره کړی وو لکه دالهي کلام تحريف او دادعوی چې دوی دالله دوستان او غوره احباب دي بيشکه چې دوی به اور، ونه ... خوی مګر لږ يو څو شپې او ددوی نوری دروغجنی دعوې او هيلي کومی چې له پلرونو او نيکونو ورته په ميراث پاتی وی نو الله ﷻ ددوی له ايمان راوړلو څخه دمسلمانانو په ناهيلی کولو پيل وکړ څکه ددوی خته په ګمراهي او ضلالت اغښلی شوي او دوي له عناد او تکبر څخه جوړدی.

## لغتونه:

(افتطمعون) طمع دنفس هغه تړاو ته وايي چې ديو شی په تر لاسه کولو کی يې لری که ډير او سخت تړاو وو طمع او که چېری بيا کمزوری وو ورته رجاء او هيله وايي (فريق) ټولی ته وايي اسم جمع دي او له خپل لفظ څخه واحد نلري لکه رهط او قوم غونډی (عقلوه) يعنی پري پوهيدلی او هغه يې پيژندلي وی (اميون) مورته يې نسبت شوی يعنی هغسی پاتی لکه څرنګه چې له موره زيږيدلی دی يعنی په څه نه پوهيږي (امانی) د(امنية) جمع ده هغه څه ته وايي چې انسان يې تمنا او ارزو لري او يايې له هيلو او تمنياتو څخه له خانه جوړوی څکه نو دروغو ته هم (تمنی) وايی لکه چې يو اعرابی بل ته وويل (اهذا شئ رايتَه ام تمنيتَه) يعنی ايا داتا پخپله ليدلی شئ ده او که دی له خانه جوړ کړی ده کله کله دلوستلو په معنی هم راځي لکه چې حسان ﷺ وايي (تمنی کتاب الله اول ليلة) يعنی لوستي يې وو دالله کتاب لومړی شپه (فويل ) ويل هلاک ته وايي چا بيا ويلی شرميدلو او بنوئيدلو ته وايي داهسي کلمه ده چې په عذاب او په شرکی استعماليږی قاضي وايي چې دادوعيد او تهديد وروستنی

مرحله ده لکه (ویل للمطففین) او سیبویه وایي چې (ویل) دهغه چا لپاره وی چې په هلاکت کی لویدلی او (ویح) دهغه چا لپاره چې په پوله یې ولاړوی؛ ورنژدې شوی وی.

## دنزول سبب او تړاو:

۱: دا آیتونه دانصارو په هکله نازل شوی څوک چې دیهودو حلفاء وو دوی یوله بله سره همسایه گان وو انصارو هیله درلوده کاشکې دغه یهودان مسلمانان شي نو الله وفرمایل: (أَفَتَطْمَعُونَ أَن يُؤْمِنُوا لَكُمْ)(۱)

۲: مجاهد له ابن عباس ﷺ څخه روایت کوی چې یهودو به ویل دا دنیا اوه زره کاله دې او په هر یو زر کاله به فقط یوه شپه په اور کی لویږو بیشکه دغه اوه ورځی یوه اونۍ شمیرلې شپې دی نو الله ﷻ نازل کړ (وَقَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً) (۲)

## تفسیر:

الله مؤمنانو ته خطاب کوي فرمایي: ﴿ أَفَتَطْمَعُونَ أَن يُؤْمِنُوا لَكُمْ ﴾ ایا نو تمه کوي تاسي چې دوی به ایمان راوړی ؟ او ستاسی په دین کی به درگډ شي ﴿ وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللَّهِ ﴾ (او بیشکه چې وه یوه ډله ددوی څخه چې اوریده به یې کلام دالله) یعنی حال دا چې ددوی دعلماوو او احبارو یوه ډله وه چې دالله کلام به یې لوستل او اوریدل، ښه ورته معلوم وو ﴿ ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ مِن بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ ﴾ (بیا به یې اړول وروسته له دې چې دوی به پرې پوهیدل ) یعنی هغه آیتونه به یې په تبدیل او تأویل اړول ﴿ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ (حال دا چې دوی به پدې پوهیدل ) چې دوی دگناه مرتکب کیږی قصداً دغه مخالفت ترسره کوی پدې کی کوم خطاء او نسیان نشته ﴿ وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا ﴾ ( او کله چې ملاقات وکړي هغه کسان یهودان له مؤمنانو سره وایي چې موږ ایمان راوړی دی یعنی کله چې درسول الله ﷺ له اصحابو سره یو ځای شي نو دغه منافق یهودان دایمان دعوی کوی وایي چې تاسی په حق یاست او محمد ﷺ هغه پیغمبر دی چې دوی ته ورباندی زیری ورکول شوی وو ﴿ وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ ﴾ او کله چې یواځې شي ځینی ددوی له ځینو نورو سره ﴿ قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ ﴾ نو وایي دوی (دعتاب په ډول) ایا خبر وی تاسي مؤمنان په هغه څه چې پرانستلي الله پر تاسي (په تورات کښي ) ﴿ لِيُحَاجُّوكُم بِهِ عِندَ رَبِّكُمْ ﴾ تر څو چې جګړه وکړی له تاسی سره مؤمنان په هغه سره په نزد دپروردگار ستاسو، یعنی تاسو دپیغمبر متابعت پرې ایښي وو سره له دې چې په ربښتنولی، مو علم درلود ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ (ایا نو نه پوهیږي په دې ؟ ددغه قول قائلین یهود دی او معنی یې دا چې دوی به ځینو نوروته یې ویل چې پدې نه پوهیږي چې دښمن ته حجت ورښیي؟ الله تعالی پر دوی باندی

(۱) البحر المحیط ۲۷۷/۱.
(۲) مختصر ابن کثیر ۸۲/۱.

تردید په توګه داسي وفرمایل: ﴿ أَوَلَا يَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴾ (ایا نه پوهیږي دغه یهودان) چي بیشکه الله پوهیږي په هغه چي دوی یې پټوي او په هغه څه چي دوی یې څرګندوي) الله په هر څه عالم او پوه دی دوی ولی هسي وایي او بیا دایمان لرلو ګومان هم کوی کله چي الله لومړی ددوی عالمان یاد کړل هغوی چي دتورات آیتونه یې اړول یا یې بدلول وروسته یې عوام الناس ذکر کړل چي دنوموړو عالمانو پیروی یې کوله او داسي یې وښودله چي دواړه ډلي په ضلالت او ګمراهی کی دی ویې فرمایل: ﴿ وَمِنْهُمْ أُمِّيُّونَ لَا يَعْلَمُونَ الْكِتَابَ ﴾ (او ځینی له دغو (یهودو) څخه امیان دی چي نه پوهیږی په کتاب (تورات) باندی یعنی دهغوی لوستل او لیکل زده نه دی چي په تورات وپوهیږي ﴿ إِلَّا أَمَانِيَّ ﴾ مګر آرزوګاني هغه چي دوی ته احبار او عالمانو یې ورکړی چي الله عفوه درته کوی او اور مو نه سوځوی مګر یو خوشبې او ددوی نبیان پلرونه به ددوی شفاعت کوي او دوی دخدای زامن او خپلوان (دوستان) دی او داسي نور ﴿ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَظُنُّونَ ﴾ (او نه دی دوی مګر (بې دلیله) ګومان کوی) یعنی دوی دپلرونو روند تقلید او پلوی کوی بیا الله دغو مشرانو ګمراهانو جرم او ګناه بیانوی کوم چي دوی عام خلک ګمراهی ته بیولی او داهم ددنیا دناچیز شی په بدل کی الله فرمایي:

﴿ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ يَكْتُبُونَ الْكِتَابَ بِأَيْدِيهِمْ ﴾ نو عذاب او هلاک دی دهغو کسانو لپاره چي لیکی کتاب له خپله خانه، په خپلو لاسونو یعنی هغه کسان چي اړوی تورات او بیا لیکی دغه تحریف شوی آیتونه پخپلو لاسونو ﴿ ثُمَّ يَقُولُونَ هَٰذَا مِنْ عِندِ اللَّهِ ﴾ (او بیا وایي دغه له نزده دالله ﷻ ده) یعنی دوی خپلو امیانو اتباعوته وایي چي دغه لیکل شوی دالله آیتونه دی کوم چي په تورات کی یې په موسی ﷺ نازل کړی دی سره له دې چي دوی له خانه پخپلو لاسونو لیکلی او الله ﷻ ته یې په دروغو نسبت کوی ﴿ لِيَشْتَرُوا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ لپاره ددې چي واخلی په دغه (اړولی لیک) قیمت لږ ﴿ فَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا كَتَبَتْ أَيْدِيهِمْ ﴾ هلاک او خرابي ده دوی لره په سبب دهغه شی چي لیکلی دی لاسونو ددوی له تحریف دتورات څخه ﴿ وَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا يَكْسِبُونَ ﴾ او هلاک دی دوی لره له سببه دهغه چي دوی یې کوی یعنی حرام او باطل مالونه خوري ﴿ وَقَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً ﴾ (او وایي دوی هیڅرې به نه رسیږي موږ ته اور مګر څو ورځي شمیرلې شوی) هغه چي د(خوسی) دعبادت موده او یا فقط اوه ورځي ﴿ قُلْ أَتَّخَذْتُمْ عِندَ اللَّهِ عَهْدًا ﴾ ووایه ته (اي محمد !) دوی لره ایا اخیستی ده تاسی په نزد دالله وعده؟ یعنی دغه خبره دانکار او توبیخ په توګه ورته وکړه نو که چیرې یې ورسره وعده کړي وی ﴿ فَلَن يُخْلِفَ اللَّهُ عَهْدَهُ ﴾ نوله سره مخالفت نه کوی الله ﷻ له خپلی وعدې څخه ﴿ أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ ایا وایي او جوړ وی په الله (دروغ) هغه څه چي پرې نه پوهیږي یعنی هغه څه وایاست چي الله نه دی ویلی نو دوې ګناوي جمع کوي! یوه دتحریف او بله په الله ﷻ باندی دروغ او بهتان ویل بیا الله ﷻ دیهودو دغه ناروا ګومان چي وایي دوی ته اور نه رسیږی مګر یو څو شپې داسي باطل کړ ویې فرمایل: ﴿ بَلَىٰ مَن كَسَبَ سَيِّئَةً ﴾ (هو رسیږي (تاسی ته دائمي اور) هر چا چي دبدي کسب وکړ ﴿ وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَتُهُ ﴾ او

چاپیره شوه په ده گناه دده) یعنی له ټولو خواوو یې پټ کړ او د خلاصون ټولې لارې یې وربانددې وتړلې لکه تاسو غونډې ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ نو دغه کسان داور ښېتنان دي تل به په اور کې وي ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ او هغه کسان چې دوی ایمان راوړی او نیک صالح عملونه یې سرته رسولي یعنی ایمان او صالح عمل یې یوځای کړی هغوی ته اور نه رسیږي او په جنتونو کې به وي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَنَّةِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ (دغه کسان ښېتنان دجنت دي دوی به تل په همدې جنت کې وي) هیڅکله به ځنې نه وزي.

(اللهم اجعلنا منهم یا أرحم الراحمین).

بلاغت:

۱ - (وهم یعلمون) پدغه جمله کې ددوی دکړو وړو بشپړه بدې او قباحت بیان شوی ځکه دتورات تحریف اواړول دوی پداسي حال کې کاوو چې پوهه یې درلوده په خطاء او نسیان یې نه کاوو او څوک چې په قصد کومه گناه تر سره کوی هغه تر هغه چا چې ورباندې نه پوهیږي دسخت عذاب مستحق اووړوی.

۲ - پدې جمله کې چې الله ﷻ فرمایي: (یکتبون الکتاب بأیدیهم) دلته یې دلاسونو ذکر وفرمایل تر څو دمجاز توهم دفع شي او دا چې دغه کار دوی په لوی لاس تر سره کړی دی لکه چې یو څوک وایي پخپل لاس یې لیکلي پخپلو غوږونو یې اوریدلی دی.

۳ - دطباق صنعت چې پدې دوو کلمو کې راغلی (ما یسرون وما یعلنون) دلته دغه دوه لفظونه چې (یسرون) او (یعلنون) دی دی دایجاب طباق چې دبدیعي محسناتو څخه دی راغلی.

۴ - تکرار د (ویل) په کلمه چې په (فَوَيۡلٞ لِّلَّذِينَ يَكۡتُبُونَ ٱلۡكِتَٰبَ) او (فَوَيۡلٞ لَّهُم مِّمَّا كَتَبَتۡ أَيۡدِيهِمۡ) او (وَوَيۡلٞ لَّهُم مِّمَّا يَكۡسِبُونَ) کې راغلې ددې لپاره دی چې ددوی جرم اوجنایت خپل وروستي پړاو ته رسیدلی نو باید څوځو ځله په عذاب او هلاک توبیخ ورکول شي.

۵ - پدې قول کې چې الله ﷻ فرمایي: (وَأَحَٰطَتۡ بِهِۦ خَطِيٓـَٔتُهُۥ) دلته استعاره کړل شوې ځکه گناهونه یې له هغه لښکر سره مشابه کړي چې کله په یو قوم راوگرځي داسې یې خواوشا احاطه کړي ته به وا لاسونډی په مړوند راځرخیدلي وي او داحاطې لفظ یې دگناهونو لپاره راووړ چې گوا کې تر نیکیو زیات او غلبه وربانددې لری لکه چې له ټولو خواوو وربانددې راگرځیدلي وي[۱]

---

(۱) تلخیص البیان ۸/۱.

## فوائد او گټې:

**لومړۍ فائده:** دالله ﷻ دکلام تحریف په فاسد تأویل او یا تغیر او تبدیل دواړو باندې مصداق مومي او دیهودو داحبارو څخه دواړه ډول پیښ شوي دي لکه چې درسول الله په هکله یې داسې تحریف کړی دی ابو السعود وايي چې روایت کیږي دیهودو احبار او علماء دخپل ریاست په زوال ویریدل او هغه څه صفات چې په تورات کې لیکلي وو چې دآخر الزمان پیغمبر ﷺ به ښکلی مخ تکی توری ګڼې ول ول تاوشوي ښنې توري سترګې میانه قد او غنم رنګه وي خو دوی هغه واړولي داسې یې ولیکل: چې قد یې اوږد سترګې یې شنې ښنې یې ساده او خوړندې او زیږی وی کله چې به امیانو له دوی څخه دپیغمبر ﷺ صفتونه وپوښتل دوی به هغه ورته ویل چې پخپله یې لیکلي وو نو به دوی چې پیغمبر ﷺ ته کتل له هغه څخه به یې مخالف لیدل کوم چې ددوی په تحریف شوي تورات کې وو نو ایمان به یېورباندې نه راووړ (۱)

**دوهمه فائده:** تحریف په دواړو ډولونو په آسماني کتابونو لکه تورات او انجیل کې واقع شوی لکه چې الله تعالی فرمايي (يُحَرِّفُونَ ٱلْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِۦ) [المائدة: ۱۳] او هغه چې تحریف په باطل تأویل سره ده په قرآن کریم کې دملحدانو او جاهلانو له خواکیږي خو دآیتونو بدلول او یا غورځول له دې څخه قرآن عظیم خوندی ساتل شوی لکه چې الله فرمايي: (إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا ٱلذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ) [الحجر: ۹]

**دریمه فائده:** امام بخاری له ابو هریرة ﷺ څخه روایت کوي چې هغه وویل: (لما فتحت خيبر اهديت لرسول الله ﷺ شاة فيها سم فقال رسول الله ﷺ: اجمعوا لي من كان من اليهود هنا) فقال لهم رسول الله (من ابوكم) قالوا فلان قال: (كذبتم بل ابوكم فلان) فقالوا صدقت وبررت ثم قال لهم: (وهل انتم صادقي ان سألتكم عنه؟) قالوا: نعم يا اباالقاسم وان كذبناك عرفت كذبنا كما عرفته في أبينا فقال لهم رسول الله ﷺ: (من اهل النار؟) فقالوا نكون فيها يسيرا ثم تخلفونا فيها فقال لهم ﷺ (واخسئوا والله لا نخلفكم فيها ابدا) ثم قال لهم رسول الله ﷺ: (هل انتم صادقي عن شئ ان سألتكم عنه؟) قالوا نعم يا ابا القاسم قال: (هل جعلتم في هذه الشاة سما؟) فقالوا نعم قال (فما حملكم على ذلك؟) اردنا ان كنت كاذبا ان نستريح منك وان كنت نبيا لم يضرك؟. (۲)

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَانًا وَذِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْيَتَٰمَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينِ وَقُولُوا۟ لِلنَّاسِ حُسْنًا وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنكُمْ وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ ﴿٨٣﴾ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَكُمْ لَا تَسْفِكُونَ دِمَآءَكُمْ وَلَا تُخْرِجُونَ أَنفُسَكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ وَأَنتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿٨٤﴾ ثُمَّ أَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ وَتُخْرِجُونَ فَرِيقًا مِّنكُم مِّن دِيَٰرِهِمْ تَظَٰهَرُونَ عَلَيْهِم

---

(۱) تفسير ابي السعود ۹۳/۱.
(۲) مختصر ابن كثير ۸۲/۱.

بِٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ وَإِن يَأْتُوكُمْ أُسَٰرَىٰ تُفَٰدُوهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ ۚ أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ ٱلْكِتَٰبِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ ۚ فَمَا جَزَآءُ مَن يَفْعَلُ ذَٰلِكَ مِنكُمْ إِلَّا خِزْىٌ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۖ وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ يُرَدُّونَ إِلَىٰٓ أَشَدِّ ٱلْعَذَابِ ۗ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٨٥﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱشْتَرَوُا۟ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا بِٱلْءَاخِرَةِ ۖ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ ٱلْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٨٦﴾ ﴾ البقرة: ۸۳ - ۸۶

## مناسبت او تړاو:

لاتر اوسه پورې آيتونه ديهودانو جرائم شميرې او پدې آيتونو کې ددوی په دښمني سرغړونه او فساد اچولو کې څرګند مثالونه دي څکه دوی وعده ماته کړې کومه چې په تورات کې له دوی څخه اخيستل شوې وه دوی به خلک وژل دخلکو مالونه به يې په ناروا خوړل، روا ګڼل او پخپلو ورونو يې تجاوز وکړ چې له خپلو کورونو يې وايستل څکه دوی دهر لعنت، عذاب او هلاکت وړ او مستحق دي.

## لغتونه:

(ميثاق) ميثاق هغه عهد ته وايي چې په قسم، لوړه او يا بل تاکيد ټينګ شوی وي، او که چېرې مؤکد نه وي بيا ورته عهد وايي (حسنا) حسن عام نوم دی چې هرې ښيګڼې ته وايي لکه پسته خبره ښه ادب ښه خويونه او ضديې ټول قبائح دی معنی يې داده چې (قولوا قولا حسنا) څکه دغه دمحذوف مصدر صفت واقع شوی دی (توليتم) تولی اعراض او مخ اړولو ته وايي چې نه يې منی لکه چې الله فرمايي: (فَأَعْرِضْ عَن مَّن تَوَلَّىٰ عَن ذِكْرِنَا) [النجم: ۲۹] او څينو پوهانو دتولی او اعراض داسي فرق کړی وايي چې تولی په جسم او اعراض په زړه پورې اړه لري [۱] (تظاهرون) يو له بله مرسته کوی دغه دمضارع صيغه او يوه تا يې حذف شوی لکه چې متظاهرين يو دبل ملا ټينګوی او ترې او ظهير د مرستندوی په معنی ده (الاثم) هغې ګناه ته وايي چې ګنهکار يې دملامتيا وړوی جمع يې آثام راځي (العدوان) په ظلم کې له حد څخه تجاوز کولو ته وايي (خزی) رسوايي، سپکتيا، خواری او عذاب ته ويل کيږي.

## تفسير:

﴿ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ او ياد کړی (اې يهودانو) هغه وخت چې مونږ واخيست محکم عهد له بني اسرائيلو (ستاسو له پلرونو) ﴿ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ ﴾ چې عبادت مه کوی، مګر يوازي دالله ﷻ ﴿ وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَانًا ﴾ او له مور او پلار سره نيکی کوی ﴿ وَذِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْيَتَٰمَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينِ ﴾ او له خپلوانو او هغو ماشومانو سره چې پلار مړی وی او له بيوزلانو سره ﴿ وَقُولُوا۟ لِلنَّاسِ حُسْنًا ﴾ او وايا ست خلکو ته ښې خبرې

---

(۱) البحر المحيط ۲۸۱/۱.

خبری په نرمي او لطف سره ورته خبري کوی ﴿ وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ ادا کوی لمونځ ورکوی زکات لکه څرنګه چې الله ﷻ دربائدی فرض کړی دی څکه دغه دوه رکنونه ستر بدنی او مالی عبادات دی ﴿ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنكُمْ وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ ﴾ بیا وګرځیدی تاسي (او ستاسي پلرونه) مګر ونه ګرځیدل لږکسان له تاسي حال دا چې هم تاسو مخ ګرځونکی یاست ﴿ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَكُمْ لَا تَسْفِكُونَ دِمَآءَكُمْ ﴾ او یاد کړی (اې بني اسرائیلو) هغه وخت چې واخیست موږ عهد محکم چې مه تویوی وینې تاسي یعنی یو او بل مه سره وژنی ﴿ وَلَا تُخْرِجُونَ أَنفُسَكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ ﴾ او مه باسی خانونه خپل له کورونو خپلو (یعنی یو اوبل په ظلم سره) ﴿ ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ وَأَنتُمْ تَشْهَدُونَ ﴾ بیا تاسو عهد وکړ (یعنی پلرونو ستاسي) او حال دا چې تاسي شاهدان یې ﴿ ثُمَّ أَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ مِّن دِيَٰرِهِمْ ﴾ پس له دې عهده تاسي هغه کسان یاست چې وژنی خانونه خپل) یعنی عهد مومات کړ او خپل دینی ورونه مو ووژل او هغه څه چې تاسو څنی منع شوی واست هغه مو تر سره کړل ﴿ وَتُخْرِجُونَ فَرِيقًا مِّنكُم ﴾ او باسی یوه ټولی له تاسو له خپلو کورونو څخه او عهد ته مو هیڅ پام هم نکوی ﴿ تَظَٰهَرُونَ عَلَيْهِم بِٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ ﴾ مرسته غواړی یو له بله پر دوی باندی په ګناه او دښمنی یعنی په دغو شړل شوو باندی دنور ظلم لپاره یو دبل مرستندوی یاست ﴿ وَإِن يَأْتُوكُمْ أُسَٰرَىٰ تُفَٰدُوهُمْ ﴾ او که چېرې دوی بندیان شي مال بې په فدیه کی ورکوي ﴿ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ ﴾ شان دا چې حرام کړی شو پر تاسو ایستل ددوی، څرنګه وژل او شړل روا ګڼي؟ خو بندي کیدل په لاس ددښمن کي روانه بولي ﴿ أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ ٱلْكِتَٰبِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ ﴾ ایا ایمان راوړی په ځینی احکامو دکتاب (تورات) چې فدیه ده ) او کافران کیږی په ځینو نورو چې بیګناه وژل ، په ګناه سره مرسته کول او له کورونو شړل دی دلته غرض ددوی توبیخ دی څکه دوی کفر او ایمان یوځای کړی او کفر په ځینو احکامو کفر په ټول کتاب دی څکه الله فرمایي ﴿ فَمَا جَزَآءُ مَن يَفْعَلُ ذَٰلِكَ مِنكُمْ إِلَّا خِزْيٌ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ پس نه ده سزا دهغه چا چې کوی (دا کارونه) له تاسو مګر رسوایي ذلت او عذاب په ژوند ددنیا کی دی ﴿ وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ يُرَدُّونَ إِلَىٰٓ أَشَدِّ ٱلْعَذَابِ ﴾ او په ورځ دقیامت ګرځول کیږی دوی ډیر سخت عذاب ته هغه چې تل تر تله او پای نلری ﴿ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ او الله ﷻ غافل نه دی له هغه څه نه چې کوی یې تاسي (اې یهودانو) پدې جمله کی ډیر سخت وعید او اخطار دی دهغه چا لپاره چې دالله ﷻ له اوامرو څخه غاړه غړوي بیا الله ﷻ ددغه طغیان او عصیان سبب داسي ښیي: ﴿ أُولَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱشْتَرَوُاْ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا بِٱلْءَاخِرَةِ ﴾ (دا هغه کسان دی چې پیرلی (اخیستی) یې دی ژوند ددنیا په آخرت باندی) یعنی غوره کړی یې دی ﴿ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ ٱلْعَذَابُ ﴾ سپک به نه کړی شي له دی څخه عذاب (یوه شیبه) ﴿ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴾ (او نه به له دوی سره مرسته وکړه شي) چې دالله ﷻ له دردناک عذاب څخه یې وژغوري.

**تنبیه:**

(بنی قریظة) او (بني النضیر) دواړه تبره یهودان وو بني قریظة له (اوس) قوم سره دوستي او تحالف درلود او (بني نضیر) له (خزرج) قوم سره کله چې به داوس او خزرج تر منځ جګړه پیښېده شوه نو دغو یهودانو به له خپلو دوستانو سره یوځای جګړه کوله نو به یو یهودي بل ورور یهودي وژل او له خپلو کورونو څخه به یې پسي اخیستل په مال او دولت سامان به یې چور تالان ګڼاوو او اودغه ددوی په دین اودتورات په نصوصوحرام وو اوچې کله به بیا جنګ سوړ شو نو دبندیانو په راخلاصولو کی به یې په فدیه ورکولو بدي راوغړلي او ګواکی ددوی د(تورات) په حکم عمل کوی څکه الله ﷻ وفرمایل: (أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ ٱلْكِتَٰبِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ)(١)

**بلاغت:**

١ - (لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ) دغه جمله خبر خو دنهی په معنا ده او دا له صریح نهی څخه ابلغ ګڼل کیږی څکه پدې کی داسي اشاره شته چې دغه ممنوع امر باید ډیر ژر پای ته ورسیږي او بس کړل شی او لکه چې بس کړل شوی وی څکه خبر راغی او نهی مراد ده.(٢)

٢ - (وَقُولُوا۟ لِلنَّاسِ حُسْنًا) پدې جمله کي (حسنا) مصدر او دصفت په ځای کي راغلی معنا یې داده چې (قولوا للناس قولاً حسنا او ذاحسن) او داهم دمبالغې لپاره څکه عرب کله چې دمبالغې قصد لری نو مصدر داسم فاعل او یاصفت پر ځای راوړی لکه: (هوعدل) هغه عدل دی یعنی عادل دی.

٣ - تنکیر پدې قول کې چې فرمایي: (إِلَّا خِزْىٌ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا) دتفخیم او تهویل لپاره ده.

۴ - (تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ) دلته یې دغیر له نفس څخه په خپل نفس تعبیر وکړ څکه څوک چې دبل چا وینی توی کړي لکه چې خپلی یې توی کړی وی او دلته ګواکي مجاز په سبب دادنئ ملابست دي.

۵ - پدې جمله کی (أَفَتُؤْمِنُونَ) همزه دتوبیخي انکار لپاره دی

**فوائد او ګټي:**

لومړی فائده: په وروستي آیت شریف کي ترتیب داهمیت له وجی ده یعنی ډیر مهم له مخه بیا پسي بل مهم او بیا بل نو دالله ﷻ حق یې رومبی کړ چې هغه نعمت ورکونکی دی بیا یې دمور او پلار حق راووړ چې دوی داولاد په روزنه کی دستر حق څښتنان دی او بیا یې خپلوان راوړل هغوی چې صله رحم په دوی کی ده او داحسان اجرهم بیا یې یتیمان ذکر کړل څکه هغه بل خوا خوړی نلری او بیا یې مسکینان راوړل چې ضعیفان او بې وزله دی

---

(١) مختصر ابن کثیر ٨٥/١.

(٢) تفسیر ابی السعود ٩٢/١.

دوهمه فائده : (وَقُولُواْ لِلنَّاسِ حُسْنًا) او داسي يې ونه ويل چې : (قولوا لاخوانکم) او (قولوا للمؤمنين حسنا) ددې لپاره چې امر په احسان دټولو خلکو دپاره ده مسلمان وي او که کافر ښه سړی وي او که بيکاره او بدې کې دپستو خبرو او نرم کلام ،ورين تندی ، ښو اخلاقو او ښائسته ادب مارپينه شوی ده.

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى الْكِتَـٰبَ وَقَفَّيْنَا مِنۢ بَعْدِهِۦ بِالرُّسُلِ ۖ وَءَاتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَـٰتِ وَأَيَّدْنَـٰهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ ۗ أَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوَىٰٓ أَنفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ ﴿٨٧﴾ وَقَالُوا۟ قُلُوبُنَا غُلْفٌۢ ۚ بَل لَّعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾ وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتَـٰبٌ مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ وَكَانُوا۟ مِن قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَلَمَّا جَآءَهُم مَّا عَرَفُوا۟ كَفَرُوا۟ بِهِۦ ۚ فَلَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الْكَـٰفِرِينَ ﴿٨٩﴾ بِئْسَمَا اشْتَرَوْا۟ بِهِۦٓ أَنفُسَهُمْ أَن يَكْفُرُوا۟ بِمَآ أَنزَلَ اللَّهُ بَغْيًا أَن يُنَزِّلَ اللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ۖ فَبَآءُو بِغَضَبٍ عَلَىٰ غَضَبٍ ۚ وَلِلْكَـٰفِرِينَ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٩٠﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ ءَامِنُوا۟ بِمَآ أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا۟ نُؤْمِنُ بِمَآ أُنزِلَ عَلَيْنَا وَيَكْفُرُونَ بِمَا وَرَآءَهُۥ وَهُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ ۗ قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُونَ أَنۢبِيَآءَ اللَّهِ مِن قَبْلُ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٩١﴾ ۞ وَلَقَدْ جَآءَكُم مُّوسَىٰ بِالْبَيِّنَـٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَنتُمْ ظَـٰلِمُونَ ﴿٩٢﴾ ﴾

البقرة: ۸۷ - ۹۲

لغتونه:

(الکتاب) تورات (وقفينا) پرله پسي مو راستولی وو اصل يې له قفا څخه اخيستل شوی چې متابعت ته وايه شي لکه مرادف (البينات) څرګندي معجزې لکه دمړی ژوندی کول د (اکمه) او (ابرص) روغول (ايدنا) مو د قوی کړی (روح القدس) القدس پاکي او برکت ته وايي روح القدس جبريل ﷺ دی (تهوی) مينه او محبت (غلف) جمع د غلف او غلاف ده چې پر دې ته وايي لکه چې وايي (سيف اغلف) کله چې په تيکي کې توره وی او يا (قلب اُغلف) کله چې زړه پټ وی فهم او تميز نشي کولای له (اغلف) څخه مستعار دی هغه چې غير مختون (ناسنته) ته وايي (۱) (لعنهم) دلعن اصل دعربو په کلام کې شړلو ته وايي لکه (ذئب لعين) يعنی شړل شوی ليوه او مراد دلته شړل شوی له رحمته ده (يستفتحون) دفتحی طلب او غوښتنه کولو ته استفتاح وايي (بئسما) اصل يې (بئس) او (ما) ده يعنی بد ده هغه، بئس فعل ذم او نعم فعل مدح ده (بغيا) بغی حسد او ظلم ته وايي اصمعی وايي :اصل يې له (بغی الجرح) څخه اخيستی کله چې پرهار فاسد او خراب شي نو بغی دفساد په معنا شوه (۲) (باؤ) اخته شول ، اکثرا (باء) په شرکی استعماليږي (مهين) له هوان څخه اخيستل شوی دسپک او ذليل په معنی دی.

---

(۱) الکشاف ۱۳۲/۱.

(۲) البحر المحيط ۲۹۸/۱.

## مناسبت او تړاو:

دغه رنګه آیتونه له بني اسرائیلو څخه غږیږي پدې آیتونو کی دوی ته څه نعمتونه وریه یادول کیږي کوم چې بیا دوی دهغو کفران وکړ لکه څرنګه چې ددوی نیمه خوا عادت هم داوو چې داحسان په بدل کي بدې رسوې او دنعمت په وړاندې کفران او انکار کوي.

## تفسیر:

﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَـٰبَ ﴾ او خامخا بیشکه ورکړی وو موږ موسی ته کتاب (تورات) ﴿ وَقَفَّيْنَا مِنۢ بَعْدِهِۦ بِٱلرُّسُلِ ﴾ او استولی وو موږ پس له موسی نور ډیر رسولان ﴿ وَءَاتَيْنَا عِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ ٱلْبَيِّنَـٰتِ ﴾ او ورکړی مو وو عیسی دمریمي زوی ته معجزې څرګندې ﴿ وَأَيَّدْنَـٰهُ بِرُوحِ ٱلْقُدُسِ ﴾ او قوی کړی مو وو په جبریل ﷺ ﴿ أَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوَىٰٓ أَنفُسُكُمُ ٱسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ ﴾ (ایا چې کله به راغی تاسي ته پیغمبر په هغو حکمونو چې ستاسو نفسونو به نه خوښول نو به مو تکبر وکړ نو دانبیاوو یوه ډله مو دروغجنه وګڼله او بله ډله (دنبیانو مو ووژله) بیا الله تبارک وتعالی دهغو موجودو بني اسرائیلو چې درسول الله ﷺ معاصر وو ګمراهی او ضلالت داسي بیان کړ: ﴿ وَقَالُوا۟ قُلُوبُنَا غُلْفٌۢ ﴾ او وایي زړونه مو په پردو کي دی هغه څه وړاندې اثر نکوی چې ته یې وایي اې محمده ﷺ او غرض دهغوی له ایمان راوړلو څخه درسول الله ناهیله کول دی الله تعالی د رد په توګه داسي ورته وفرمایل ﴿ بَل لَّعَنَهُمُ ٱللَّهُ بِكُفْرِهِمْ ﴾ بلکه پردوی الله لعنت کړی دی په سبب دکفر ددوی یعنی دوی یې ددوی دکفر او ګمراهي له امله له خپل رحمت څخه شړلی ﴿ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ﴾ (نو ډیر لږ (له دوی څنی) ایمان راوړی) او یادوی لږ ایمان راوړی چې په یو څه احکامو ایمان راوړی او په نورو کافران کیږي ﴿ وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتَـٰبٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ ﴾ (او کله چې راغی دوی ته کتاب (قرآن) له نزده دالله ) چې تصدیق کوونکی دهغه کتاب دی چې له دوی سره دی (تورات) ﴿ وَكَانُوا۟ مِن قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ او حال دا چې دوی به نصرت غوښتل له الله په هغه (محمد ﷺ) په دښمنانو دهغوی چې کافران وو ویل به یې (اللهم انصرنا بالنبی المبعوث آخر الزمان الذي نجد نعته في التوراة) الهي موږ ته دآخری زمانې په پیغمبر دچاچې په تورات کی صفت راغلی نصرت او بري راکړې ﴿ فَلَمَّا جَآءَهُم مَّا عَرَفُوا۟ كَفَرُوا۟ بِهِۦ ﴾ کله چې راغی دوی ته هغه رسول چې پیژندلی یې وو وړاندې کافران شول یعنی دمحمد ﷺ په رسالت کافران شول ﴿ فَلَعْنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾ پس لعنت (دخدای دوی په کافرانو باندې په هغو یهودانو چې په خاتم المرسلین یې ایمان نه راووړ ﴿ بِئْسَمَا ٱشْتَرَوْا۟ بِهِۦٓ أَنفُسَهُمْ ﴾ بد دی هغه څه (بیکاره شي) چې دوی خانونه وړاندې پلورلی دی ﴿ أَن يَكْفُرُوا۟ بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ ﴾ هغه دا چې کافران شوی په هغه کتاب (قرآن) چې

الله ﷻ نازل کړی ﴿ بَغۡيًا ﴾ په سبب د حسد او کینې ﴿ أَن يُنَزِّلَ ٱللَّهُ مِن فَضۡلِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦ ﴾ دا چې نازولوی الله له خپله فضله په هغه چا چې اراده وکړی له بندګانو خپلو یعنی ددوئ دکفر سبب کینه او حسد دی ﴿ فَبَآءُو بِغَضَبٍ عَلَىٰ غَضَبٍ ﴾ نو اخته شول په یوه غضب دپاسه دبل غضب دالله تعالی ﴿ وَلِلۡكَٰفِرِينَ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴾ او مقرر دی دکافرانو لپاره خوار او سپکونکی عذاب، څرنګه چې ددوی دکفر سبب تکبر او حسد وو نو الله ﷻ په سپکاوي او خواري ورته وکتل ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمۡ ءَامِنُواْ بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ ﴾ کله چې ورته وویل شي ایمان راوړی په هغو کتابو نو چې الله نازل کړی (قرآن) او دهغه تصدیق وکړئ ویې منئ ﴿ قَالُواْ نُؤۡمِنُ بِمَآ أُنزِلَ عَلَيۡنَا ﴾ وایي موږ ایمان راوړی په هغه چې په موږ نازل شوی دی (تورات) ﴿ وَيَكۡفُرُونَ بِمَا وَرَآءَهُۥ وَهُوَ ٱلۡحَقُّ مُصَدِّقٗا لِّمَا مَعَهُمۡ ﴾ حال دا چې کافران کیږی په هغه چې پرته (ماسوی) له تورات څخه دی (انجیل او (قرآن) حال دا چې دا هم حق دی او تصدیق کوی دهغه کتاب چې له دوی سره دی (یعنی دوی په قرآن کافران دی او هغه (قرآن) له هغه کتاب سره موافق دی کوم چې له دوی سره دی ﴿ قُلۡ فَلِمَ تَقۡتُلُونَ أَنۢبِيَآءَ ٱللَّهِ مِن قَبۡلُ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴾ ووایه (اې محمده ادوی ته) نو ولی وژل تاسي انبیاء دخدای پخوا که چېرې تاسي ایمان راوړونکی یاست ؟ ﴿ وَلَقَدۡ جَآءَكُم مُّوسَىٰ بِٱلۡبَيِّنَٰتِ ﴾ او خامخا راوړی وی موسی تاسی ته ښکاره معجزې ﴿ ثُمَّ ٱتَّخَذۡتُمُ ٱلۡعِجۡلَ مِنۢ بَعۡدِهِۦ وَأَنتُمۡ ظَٰلِمُونَ ﴾ (بیا ونیو تاسي (خوسی) ګیلګی په خدایي وروسته له هغه او تاسي ظالمان وی پر ځانو خپلو ) یعنی کله چې موسی ﷺ دطور غره ته ولاړ تاسو دخوسي عبادت پیل کړ او دا ستاسو ظلم وو .

## بلاغت:

۱ - پدې دوو جملو کی دمفعول تقدیم شوی چې : (فَفَرِيقٗا كَذَّبۡتُمۡ ) و(وَفَرِيقٗا تَقۡتُلُونَ ) داددې لپاره چې دسامع اهتمام او تشویق پیدا کړي چې نور به څه اوری.

۲ - په مضارع سره تعبیر کول چې (وَفَرِيقٗا تَقۡتُلُونَ ) او داسي یې ونه ویل چې (قتلم) لکه چې یې وویل (کذبتم) څکه فعل مضارع دبلاغت په اسلوبو کی هلته دماضي په افعالو کي استعمالیږی چې خورا ستر بد او ناروا وی نو دارنګه یې دانبیاو قتل او وژل مخي ته کښېښودل او لکه چې کتونکی پخپلو سترګو ورته ګوري نو دلته انکار هم خورا بلیغ او فظاعت یې هم خورا ستر دی.

۳ - اسم ظاهر دضمیر په ځای راوړل لکه : (فَلَعۡنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ ) او داسي یې ونه ویل (علیهم) تر څو ونبیي چې دلعنت سبب ددوی کفر دی.

۴ - دا چې فرمايي (وَلَقَدۡ جَآءَكُم مُّوسَىٰ بِٱلۡبَيِّنَٰتِ) په دې کي توبیخ دی چې ولی یې دپیغمبر متابعت نه دی کړی ؟.

۵ - داهانت نسبت یې عذاب ته کړی چې فرمایي: (عَذَابٌ مُّهِينٌ) خکه سپکتیا دعذاب په سبب راځي او دبیان له اسلوبو یو دادی چې دافعالو نسبت اسبابو ته کوی.

فائده: حسن بصري رحمه الله وايي حضرت جبريل عليه السلام له دې سببه روح القدس وستایل شو خکه (قدس) الله ﷻ او روح یې جبریل نو نسبت دشرافت لپاره شوی امام الرازي وايي او هغه څه چې پدې دلالت کوی چې روح القدس جبریل دی هغه دا چې الله فرمايي (قُلْ نَزَّلَهُ رُوحُ الْقُدُسِ مِن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ) [النحل: ۱۰۲] (۱)

## الله تعالی فرمايي:

﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ وَاسْمَعُوا قَالُوا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا
وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُم بِهِ إِيمَانُكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿۹۳﴾
قُلْ إِن كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْآخِرَةُ عِندَ اللَّهِ خَالِصَةً مِّن دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿۹۴﴾
وَلَن يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿۹۵﴾ وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَىٰ حَيَاةٍ وَمِنَ الَّذِينَ
أَشْرَكُوا يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ أَن يُعَمَّرَ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿۹۶﴾ قُلْ
مَن كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ
﴿۹۷﴾ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَرُسُلِهِ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَالَ فَإِنَّ اللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَافِرِينَ ﴿۹۸﴾﴾ [البقرة: ۹۳-۹۸]

## مناسبت او تړاو:

دا دیهودانو له جنایاتو څخه یو ډول نور جنایتونه دی خکه دوی مضبوط او ټینګ عهدونه مات کړل تر څو چې دطور غرېې په سر راپورته شو او دوي ته ددې امر وشو چې دتورات حکمونه ومنی دوی په ظاهره منلو ته چمتو شول خو بیرته کفر او عصیان ته وګرځیدل له الله ﷻ څخه پرته دخوسي (ګیلګي) عبادت یې پیل کړ دوی داسي ګومان کاوو چې په خدای ګران دی او جنت یوازي ددوی لپاره دی له دوی څخه پرته به هیڅوک جنت ته نه ورځي له ټولو پرښتو چې په سر کي یې جبرئیل ﷺ وو له دوی سره یې دښمني غوره کړه په نبیانو او پیغمبرانو یې ایمان نه راووړ هغوی یې دروغجن ګڼل په ټولو وختونو کي همدا ددوی حال دی.

## لغتونه:

(میثاقکم) هغه عهد چې په یمین مؤکد شوی وی میثاق بولي (الطور) هغه غر چې الله ﷻ له موسی ﷺ سره وربانده خبری کړې وی (بقوة) په عزم او تصمیم سره (أشربوا) اوبه ورکول شوي وي (اوبول) یعنی زړونو نه بې ورځښل شوي وه مینه دخوسي (خالصة) لکه عافیت او عاقبت غوندی مصدر دی دخلوص په معنی دی چې خاص په دی پوري بل څوک ورسره ګډون نلری (احرص) حرص درغبت زیاتوالی ته وايي او په حدیث کي راځي

(۱) محاسن التأويل ۱۸۲/۲.

(احرص علی ماینفعک) یعنی هغه چي درته گټه رسوي دهغه په هکله زيات رغبت کوه (بمزحزحه) زحزحة ليری والي او گوښه توب ته ويل کيږي الله ﷻ فرمايي: (فمن زُحزِحَ عن النار) يعنی څوک چي ليری شي داوره.

تفسير:

﴿ وَإِذۡ أَخَذۡنَا مِيثَٰقَكُمۡ ﴾ او ياد کړی هغه وخت چي واخيست موږ ستاسي محکم عهد چي تورات به منی (او ورباندی عمل به کوی) ﴿ وَرَفَعۡنَا فَوۡقَكُمُ ٱلطُّورَ ﴾ او لوړ مو کړ ستاسي په سر د(طور) غر دا مو درته وويل ﴿ خُذُواْ مَآ ءَاتَيۡنَٰكُم بِقُوَّةٖ ﴾ واخلی هغه (احکام) چي درکړی مودی تاسو لره په کوښښ او عزم سره او که نه غر به درباندی راوغورځوو ﴿ وَٱسۡمَعُواْ ﴾ او واوری په طاعت کولو او منلو سره ﴿ قَالُواْ سَمِعۡنَا وَعَصَيۡنَا ﴾ دوی (يهودو) وويل: اوريدلی موده او منلي مو نه ده ﴿ وَأُشۡرِبُواْ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلۡعِجۡلَ ﴾ (او ورځښلې شوی دی په زړو نو ددوی کی مينه دخوسي) او مراد دادی چي دخوسي مينه يې له وينی سره گډه شوې او په زړونو يې ننوتلې لکه چي رنگ په جامه کی ننوزی او يا هم اوبه په بدن کی ﴿ بِكُفۡرِهِمۡ ﴾ په سبب دکفر ددوی ﴿ قُلۡ بِئۡسَمَا يَأۡمُرُكُم بِهِۦٓ إِيمَٰنُكُمۡ ﴾ ووايه (اي محمده) دوی ته بد دی هغه څه چي تاسو ته ستاسو ايمان امر کوی يعنی داخبره دتهکم په ډول ورته وکړه چي ستاسو ايمان چي دخوسی دعبادت درته امر کوی دابددی ﴿ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴾ که چېری ياست تاسی مؤمنان يعنی که تاسو دايمان گومان کوئ نو داکار بددی او معنا دا چي تاسي مؤمنان نه ياست ځکه ايمان چاته دخوسي په عبادت کولو امر نه کوی ﴿ قُلۡ إِن كَانَتۡ لَكُمُ ٱلدَّارُ ٱلۡأٓخِرَةُ عِندَ ٱللَّهِ خَالِصَةٗ مِّن دُونِ ٱلنَّاسِ ﴾ ورته ووايه (اي محمده) که چېری تاسی ته يوازی جنت وی په نزد دالله پرته له نورو خلکو لکه چي تاسي گومان کوی ﴿ فَتَمَنَّوُاْ ٱلۡمَوۡتَ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾ نو هيله (تمنا) وکړی که چېری ياست تاسي صادقان تر څو جنت ته ورشی ځکه ددې دنيا نعمتونه له جنت سره بيخي پرتله کيدای نشي او څوک چي داباور لري چي دجنت له اهل څخه دی نو بيا ورته زياته مينه لری الله تعالی ددوی په رد کی فرمايي: ﴿ وَلَن يَتَمَنَّوۡهُ أَبَدَۢا بِمَا قَدَّمَتۡ أَيۡدِيهِمۡ ﴾ او له سره به هيله ونکړی دمرگ په سبب دهغو گناهونو چي ددوی لاسونو پخوا ليږلی ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمُۢ بِٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ الله ﷻ ښه عالم دی په احوالو دظالمانو اوژر ده چي ددوی دظلم جزابه ورکړي ﴿ وَلَتَجِدَنَّهُمۡ أَحۡرَصَ ٱلنَّاسِ عَلَىٰ حَيَوٰةٖ وَمِنَ ٱلَّذِينَ أَشۡرَكُواْ ﴾ او خامخا به ته وموميې يهودان چي ډير حرصناک دی په ژوند او تر هغه چا هم حرص لري چي مشرکان دی ځکه دوی پوهيږي چي دوزخ ته به ځی گنهکاران دی ﴿ يَوَدُّ أَحَدُهُمۡ لَوۡ يُعَمَّرُ أَلۡفَ سَنَةٖ ﴾ خوښوی هر يو ددوی که عمر ورکړ شي زر کاله ﴿ وَمَا هُوَ بِمُزَحۡزِحِهِۦ مِنَ ٱلۡعَذَابِ أَن يُعَمَّرَ ﴾ او نه دی خلاصونکی دده له عذابه چي ډير عمر ولری ﴿ وَٱللَّهُ بَصِيرُۢ بِمَا يَعۡمَلُونَ ﴾ او الله ښه ليدونکی (عالم) دی په هر څه چي دوی يې کوی او په هغو به جزا ورکړي ﴿ قُلۡ مَن

كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ ﴾ (ورته ووايه (اې محمده) څوک چې دجبرائيل دښمن وی ) نو هغه دالله دښمن دی ځکه جبرائيل ﷺ دالله او دپيغمبرانو تر منځ واسطه دی څوک چې دهغه دښمني کوی دالله دښمن دی ﴿ فَإِنَّهُۥ نَزَّلَهُۥ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾ ځکه جبرائيل امين نازل کړی دی (دغه قرآن) دالله په اجازه او حکم په زړه ستا باندې ﴿ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ تصديق کونکی دهغه کتابونو دی چې پخواله ده وو ﴿ وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ او هدايت (لاربنوونکی) او زيری دی مؤمنانو لره دجنت په لور ﴿ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَرُسُلِهِۦ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَىٰلَ ﴾ څوک چې دالله او دهغه دملائکو ، پيغمبرانو او جبرائيل، او ميکائيل دښمن وی (هغه کافر او دالله دښمن دی) ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَٰفِرِينَ ﴾ نو بيشکه الله دښمن دی دکافرانو لپاره ځکه هغه کسان چې دالله اولياء دښمنان ګڼي الله ورباندی غضب کوی او دښمن يې ګڼی پدې کې وعيد او تهديد دی.

## دنزول سبب:

روايت کيږی چې يهودانو رسول الله ﷺ ته وويل هيڅ داسي پيغمبر نشته چې ملائکي ورته دالله له لوري وحی او فرمان نه راوړی تاته کوم ملائک وحی راوړي چې موږ دی متابعت او پيروی وکړو رسول الله ﷺ ورته وويل جبرائيل ، دوی وويل: داخو هغه څوک دی چې دجنګ جګړو په باب به راتو دا زموږ دښمن دی که دی ويلی وای چې ميکائيل نو موږ به ستا پيروی کړې واي نو الله ﷻ دا آيتونه نازل کړل [1] (قُلْ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ فَإِنَّهُۥ نَزَّلَهُۥ عَلَىٰ قَلْبِكَ....) الاية.

## بلاغت:

۱ - (وَأُشْرِبُوا۟ فِى قُلُوبِهِمُ ٱلْعِجْلَ) پدې کلام کی مکنيه استعاره ده ځکه دخوسي دعبادت مينه او محبت يې له خوندورو شربتو سره مشابه کړ او مشبه به يې نه راووړ دهغه متعلقاتو څخه چې څښل دی ذکر شو نو مکنيه استعاره شوه په تلخيص البيان کی وايي چې دا استعاره ده او ګواکی دخوسی دعبادت مينه او محبت ورڅښل شوی او داسي پلکي ګډ شوی لکه څوک چې خوندور شربت وڅښي او په بدن کی يې ګډ شي [2]

۲ - (قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُم بِهِۦٓ إِيمَٰنُكُمْ) دلته دامر نسبت ايمان ته کول استهزاء او تهکم دی لکه چې الله بل ځای فرمايي: (اصلوتک تأمرک) او همدا رنګه دايمان نسبت دوی ته هم تهکم دی دا خبره زمخشری کړې ده.

۳ - (حَيَوٰةٍ) پدې قول کی چې فرمايي: (عَلَىٰ حَيَوٰةٍ) نکره راوړل شوې تر څو په دې تنبيه راشي چې دوی به ځانګړی او خاص حيات باندی کوم چې په زرهاوو کالونو وی حريصان دی.

---

(۱) رواه الترمذي وانظر القرطبي ۳٦/۲.

(۲) تلخيص البيان للشريف الرضي ص۹.

۴ - دا جمله دشرط په ځواب کې واقع ده چې: (فَإِنَّ ٱللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَٰفِرِينَ) او اسميه يې ځکه راوړی چې ثبات افاده کړی او اسم ظاهر يې دضمير په ځای راووړ چې (عَدُوٌّ لِّلْكَٰفِرِينَ) هسې يې نه ويل چې (عدوٌلهم) تر څو دا کفر په دوی ليکلی وښيي او دا پدې چې دوی دملائکو دښمنان دی.

۵ - پدې قول کې (وَجِبْرِيلَ وَمِيكَىٰلَ) ددوی ذکر له ملائکو څخه وروسته ګواکی ذکر دخاص وروسته له عام څخه دی او داهم دتعظيم او تشريف لپاره دی.

## ګټې او فائدې:

لومړی فائده: پدې قول کې چې: (واسمعوا) يوازې اوريدل مراد نه دی بلکه دمنلو او غاړه اېښودلو اوريدل دی ځکه دا دپخواني خبرې چې (خذوا ما اتيناکم بقوة) تاکيد کوی.

دوهمه فائده: يوازې دزړه ذکر يې وفرمايل چې (نَزَّلَهُۥ عَلَىٰ قَلْبِكَ) ځکه هغه دعقل او علم ځای او مرکز دی لکه چې الله ﷻ فرمايي: (لهم قلوب لايعقلون بها).

دريمه فائده: پدې آيت شريف چې فرمايي: (وَلَن يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًۢا) د (لن) توری راوړل شو او دجمعې په سورت کې د (لا) توری چې فرمايي: (ولا يتمنونه ابداً) راغلی داپدې چې ددوی دعویٰ دلته ډيره غټه او ستره ده دوی جنت يوازې دځان لپاره بولی او هلته يې ځانونه دخدای دوستان ګڼلی ځکه دلته د (لن) حرف راوړل شوچې دحاضر او مستقبل نفی کوی او هلته يوازې په نفی کفايت کول شوی دی (۱)

څلورمه فائده: دغه آيت شريف اخبار بالغيب دی چې معجزه ګڼل کيږی او ددې په معجزه کيدلو کې دا کفايت کوی چې دغو يهودانو چې پيغمبر ﷺ په وخت کې وو دمرګ هيله نه کوله او په حديث شريف کې راغلي چې: (لو ان اليهود تمنوا الموت لماتوا وراٌوا مقاعدهم من النار (۲) که چېرې يهودانو دمرګ هيله (تمنا) کړې وای سمدستي به مړه شوی او خپل داور ځايونه به يې ليدلی وای.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ءَايَٰتٍۭ بَيِّنَٰتٍ ۖ وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ إِلَّا ٱلْفَٰسِقُونَ ﴿٩٩﴾ أَوَكُلَّمَا عَٰهَدُوا۟ عَهْدًا نَّبَذَهُۥ فَرِيقٌ مِّنْهُم ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠٠﴾ وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيقٌ مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ كِتَٰبَ ٱللَّهِ وَرَآءَ ظُهُورِهِمْ كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٠١﴾ وَٱتَّبَعُوا۟ مَا تَتْلُوا۟ ٱلشَّيَٰطِينُ عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَٰنَ ۖ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَٰنُ وَلَٰكِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ كَفَرُوا۟ يُعَلِّمُونَ ٱلنَّاسَ ٱلسِّحْرَ وَمَآ أُنزِلَ عَلَى ٱلْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَٰرُوتَ وَمَٰرُوتَ ۚ وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّىٰ يَقُولَآ إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۖ فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا

(۱) الصاوی علی الجلالين ۴۹/۱.
(۲) القرطبي ۳۳/۲.

يُفَرِّقُونَ بِهِۦ بَيْنَ ٱلْمَرْءِ وَزَوْجِهِۦ ۚ وَمَا هُم بِضَآرِّينَ بِهِۦ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۚ وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ ۚ وَلَقَدْ عَلِمُوا۟ لَمَنِ ٱشْتَرَىٰهُ مَا لَهُۥ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنْ خَلَـٰقٍ ۚ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا۟ بِهِۦٓ أَنفُسَهُمْ ۚ لَوْ كَانُوا۟ يَعْلَمُونَ ﴿١٠٢﴾ وَلَوْ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّقَوْا۟ لَمَثُوبَةٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ خَيْرٌ ۖ لَّوْ كَانُوا۟ يَعْلَمُونَ ﴿١٠٣﴾ ﴾

البقرة: ۹۹ - ۱۰۳

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله ﷻ دیهودو خوی خاصیت ذکر کړ چې دوی عهود ماتوی دانبیاوو تکذیب کوی دالله داولیاوو دښمنی ته ملاتړی آن تر دې چې دالله ﷻ دهغه سفیر چې دالله او دمخلوق تر منځ واسطه کیږی (دالله کلام انبیاوو ته راوړی) دهغه دښمنی هم کوی نو بیا یې درسول الله ﷺ دداديني او تسلا لپاره ددوی هغه عادتونه چې په وعده وفا نه کوی انبیاء دروغجن بولی دگمراهی او کوږو لاری نیسي بیا ن کړل ځکه چې دوی له رسول الله ﷺ سره همداسي وکړل چې دالله دکتاب زیری چې دسراج منیر ذات دبعثت په هکله وواودوی په هغه باندی په ایمان راوړلو مکلف وو ونه مانه او هغه کتاب یې شاته وغورځاوو او دکوږ ګرو او شیطانانو خبری یې ومنلې او دایې حضرت سلیمان ﷺ ته نسبت وکړی چې هغه په بشپړه توګه ځنې پاک دی همدا رنګه ددوی حال له هر پیغمبر سره داسی دی نو ته ددوی په هکله مه خواشینی کیږه !:

## لغتونه:

(نبذ) غورځول ځکه ناروا اولاد لقیط ته (منبوذ) وایي چې هغه یې په لارکی غورځولی وی (تتلوا) لولی له تلاوت څخه اخیستل شوی او یا له (تلو) څخه چې د اتباع او پیروی په معنی ده طبری وایي ځوک وایي: (هو یتلو کذا) یوه معنی یې دا چې اتباع کوی دهغه یعنی له شاورپسي ځی او دوهم دا چې قرائت او لوست ته وایي لکه چې فلانی دقرآن تلاوت کوی (١) (السحر) جوهری وایي هر څه چې باریک اخځای (مأخذ) لری سحر ګڼلی کیږی او ویل کیږی (سحره) یعنی هغه یې غولولی وو (٢) او په حدیث شریف کی راځي: (ان من البیان لسحرا) (فتنة) فتنه ابتلاء او ازموینښت ته وایي او وایي: (فتنة الذهب) کله چې یې په اور ویلی کړی چې کوټ او کره یې ځرګند شي (خلاق) نصیب او برخی ته ویل کیږی زجاج وایي دخیر غتی برخی ته خلاق وایي (لمثوبة) مثوبة ثواب او جزا ته وایي.

## تفسیر:

﴿ وَلَقَدْ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ءَايَـٰتٍۭ بَيِّنَـٰتٍ ﴾ او په تحقیق نازل کړی دی موږ تاته (درکړی دی) آیتونه روښانه (چې ستا په نبوت دلالت کوی) ﴿ وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ إِلَّا ٱلْفَـٰسِقُونَ ﴾ او نه کافران کیږی په دې مګر فاسقان هغه چې له طاعت څخه بهر او سرغړونکی کفار وی ﴿ أَوَكُلَّمَا عَـٰهَدُوا۟ عَهْدًا نَّبَذَهُۥ فَرِيقٌ مِّنْهُم ﴾ (او کله چې وبه کړ دوی یو

(١) القرطبي ۴۰۷/۲.

(٢) الصحاح للجوهری.

عهد وبه غورځاوو يوې ډلي له دوی څخه ) يعنی ايا دوی په هغوروښانه آيتونو کافران کيږی او کله چې دوی عهد وکړی يوه ډله يې ماتوی ؟ ﴿ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ بلکه اکثره ددوی (يهودو) ايمان نه راوړی په تورات باندی څکه عهود ماتوی ﴿ وَلَمَّا جَاءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْ عِندِ اللَّهِ ﴾ او کله چې راغی دوی ته رسول له نزده دالله څخه چې هغه محمد ﷺ وو ﴿ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ ﴾ چې تصديق کونکی دهغه کتاب وو چې له دوی سره وو (تورات) ددين په اصولو کی ورسره موافق او دموسی ﷺ دنبوت تائيد کونکی وو ﴿ نَبَذَ فَرِيقٌ مِّنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ كِتَابَ اللَّهِ وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ ﴾ (وغورځاوو يوې ډلی له هغو کسانو چې ورکړ شوی وو کتاب دالله کتاب لره وروسته تر شاوو خپلو) هغوی چې دتورات علماء او احبار وو څکه هغه تورات دمحمد ﷺ په نبوت دلالت کاوو نو دوی تري انکار وکړ ﴿ كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ لکه چې دوی نه پوهيږی په دلائلو دنبوت دهغه ﴿ وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَانَ ﴾او متابعت وکړ يهودانو دهغه څه چې لوست به شيطانانو ) په وخت دپاچهي دسليمان کی ) يعنی سحر او کودي يې زده کړی ﴿ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ ﴾او نه وو کافر شوی سليمان اونه ساحر وو چې سحر يې ورزده کاوو ﴿ وَلَٰكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ ﴾ لکن شيطانان کافران شوی وو خلکوته به يې سحر ښودل تر څو په خلکو کی خپور شو ﴿ وَمَا أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوتَ وَمَارُوتَ ﴾ (او متابعت به يې کاوو دهغه څه چې نازل شوی وو په بابل کی په دوو ملکو هاروت او ماروت هغه چې الله دازموينت لپاره خلکوته را استولي وې ﴿ وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّىٰ يَقُولَا إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ﴾ او نه به کول ښودنه دوی هيچا ته تر څو به يې دنصيحت په توګه وويل دوی بيشکه موږ ازموينه يو له جانبه دالله ﷻ نو مه کافران کيږه ) نو دضرر رسولو لپاره يې مه استعمالوی څوک چې يې ددې لپاره زده کړی چې ضرر يې له خلکو دفع کړی نو نجات يې پيدا کړ او که چا ددې لپاره زده کړ چې خلکو ته ضور ورسوی هلاک او ګمراه شو ﴿ فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُونَ بِهِ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهِ ﴾ نو زده کول به يې له دوی ډوارو هغه چې بيلتون به يې راووړ دميره او ميرمني تر منځ هغه چې پخوا به يې تر منځ مينه او الفت وو بيا به اختلاف او شقاق ورته مخه کره ﴿ وَمَا هُم بِضَارِّينَ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ او نه وو دوی ضرر رسوونکی په دغه سحر دهيچا مګر په حکم دالله ﴿ وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ ﴾ او زده کوي دوی (يهودان) هغه چې ضرر رسوی دوی ته او ګټه نه رسوي دوی ته ﴿ وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴾ او په تحقيق سره دوی پوهيدل چې هغه څوک چې اخلی (زده کوی) سحر نشته ده لره په آخرت کی هيڅ برخه (دنيکي) يعنی برخه دالله درحمت او ياجنت څکه دوی ترکتاب الله سحر غوره ګڼلی دی ﴿ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنفُسَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴾ او ارو مرو ډير بد دی هغه څه چې خرڅ کړی (پلورلی) دی په

هغه ځانو نه خپل که چېرې دوی پوهيدلای فهم او ادراک یې درلودای نو سحر به یې نه زده کاوو ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّقَوْا۟ ﴾ (او که په تحقيق دوی ایمان راوړی او پر هيز یې کړی وای) دالله له عذاب نه ویریدلای ﴿ لَمَثُوبَةٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ خَيْرٌ لَّوْ كَانُوا۟ يَعْلَمُونَ ﴾ خامخا ثواب له طرفه دالله ﷻ ډیر غوره دی که دوی پوهيدلای يعنی الله به تر هغه کار چې دوی وربانډی مشغول دی لکه سحر بهتر ثواب ورکړی وو ځکه سحر دوی ته پرته له هلاکت او زیان څخه بل څه نه راوړی.

## دنزول سبب:

کله چې به رسول الله ﷺ سليمان عليه السلام په انبياوو او پیغمبرانو کی ذکر کاوو نودیهودو علماوو (احبارو) به ویل: ایا تعجب نه کوی چې محمد ﷺ گومان کوی چې سليمان بن داود نبي وو په خدای لوړه چې هغه نه وو مگر جادوگر او کوډگر نو دا آیت شریف نازل شو: ﴿ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَٰنُ وَلَٰكِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ كَفَرُوا۟ يُعَلِّمُونَ ٱلنَّاسَ ٱلسِّحْرَ ﴾ (۱)

## بلاغت:

۱ - پدې جمله کی چې فرمایي: (رَسُولٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ) درسول تنکیر دتفخیم او تعظیم لپاره او دا چې له نزده دالله راځي پدې کی زیات اکرام او عزت دی.

۲ - (وَرَآءَ ظُهُورِهِمْ) دایو متل دی چې عرب وايي فلانی کار یې شاته وغور ځاوو یعنی له هغه څخه یې مخ واړاوو هر کار چې شاته وغور ځول شي بيا ورته نه کتل کيږي نو په دې کی دنه منلو کنایه ده چې بالکلیه یې تورات ته شاکړه.

۳ - پدې برخه دآیت شریف کی چې فرمایي: (كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ) دبلاغت دفنونو هغه اسلوب دی چې که چېرې عالم په خپل علم عمل ونکړی نو هغه دجاهل په منزلت گڼل کيږي او علم داسي ځنی نفی کاوه شی لکه چې له جاهل څخه نفی کاوه شي.

۴ - (لَمَثُوبَةٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ) دلته یې دفعلي جملې پرځای اسمیه راوړه چې په ثبوت او استمرار دلالت وکړي.

فائده: دملائکو په سحری تعلیم ورکولو کی خلکو ته دا حکمت نغښتی وو چې په هغه زمانه کي جادوگران او کوډگرزیات وو او عجیبه دسحر ډولونه یې جوړ کړل او ډیر خله به خلکو دا گومان کاوو چې همدا کوډگر انبیاء دی نو الله ﷻ دوه پرښتي راواستولې چې دوی ته دسحر ډولونه وروښيي تر څو دمعجزې او سحر توپير وکړای شي نو بيا به ددروغو دپیغمبری دعوا کوونکی وپيژني چې دوی نبيان نه بلکه کوډگر دی.

---

(۱) زاد المسير ۱۲۰/۱ و القرطبی ۴۷/۲.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَقُولُوا۟ رَٰعِنَا وَقُولُوا۟ ٱنظُرْنَا وَٱسْمَعُوا۟ ۗ وَلِلْكَـٰفِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ
(۱۰۴) مَّا يَوَدُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنْ أَهْلِ ٱلْكِتَـٰبِ وَلَا ٱلْمُشْرِكِينَ أَن يُنَزَّلَ عَلَيْكُم مِّنْ خَيْرٍ مِّن رَّبِّكُمْ ۗ وَٱللَّهُ
يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِۦ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ (۱۰۵) ۞ مَا نَنسَخْ مِنْ ءَايَةٍ أَوْ نُنسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ
أَوْ مِثْلِهَآ ۗ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ (۱۰۶) أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۗ وَمَا لَكُم
مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ (۱۰۷) أَمْ تُرِيدُونَ أَن تَسْـَٔلُوا۟ رَسُولَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوسَىٰ مِن قَبْلُ ۗ وَمَن
يَتَبَدَّلِ ٱلْكُفْرَ بِٱلْإِيمَـٰنِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ (۱۰۸) وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَـٰبِ لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّنۢ
بَعْدِ إِيمَـٰنِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِّنْ عِندِ أَنفُسِهِم مِّنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلْحَقُّ ۖ فَٱعْفُوا۟ وَٱصْفَحُوا۟ حَتَّىٰ يَأْتِىَ ٱللَّهُ
بِأَمْرِهِۦٓ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ (۱۰۹) وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ۚ وَمَا تُقَدِّمُوا۟ لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ
عِندَ ٱللَّهِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ (۱۱۰) ﴾ البقرة: ۱۰۴ - ۱۱۰

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله ﷻ دیهودو قبائح بیانوي او دا چې دوی سحر او جادو خوړوله کاوو دعوی دیو بل دول شرارت او فساد ذکر یې وفرمایو هغه چې دوی به په زړونو کی له پیغمبر ﷺ او مسلمانانو سره پیغور، کینه، رخه او حسد درلود او هیله یې درلوده له پیغمبر او مسلمانانو څخه نعمت زائل شي اسلامي شریعت به یې د پیغور هدف ګرځاوو هغه په دې چې ځینی شرعي احکام به منسوخ شول نو دوی به ورباندی وارونه کول (چې ګوری محمد نن یو څه وایي سبا بیا هغه پریږدی بل څه وایي).

## لغتونه:

(راعنا) له مراعت څخه دی یعنی موږ ته توجه وکړه څکه رعایت دانسان دمصالحو کتنې ته وایي خو یهودانو داسي اړولی وه چې له رعونت څخه یې اخیستله او هغه حمق او نا پوهي ته ویل کیږی څکه الله ﷻ مؤمنان ورڅخه منع کړل (انظرنا) له انتظار څخه ده لکه چې وایي (نظرتُ الرجلَ) کله چې ورته مهلت ورکول شي او انتظار یې وشي (یوَد) تمنی او هیلی ته وایي (ننسخ) نسخ په لغت کی دیو شرعی حکم پورته کول او په ځای یې بل حکم درولو ته وایي (ننسها) له هیرولو څخه ده او نسیان دیادولو ضد دی یعنی له زړونو څخه یې محو کوو (ولی) ولی هغه چاته وایي چې د سړی دمصلحتونو او امورو چارواکی وی (نصیر) مرستندوی ته وایي او له دې قول څخه اخیستل شوی چې (نصره) هغه چې ورسره به یی مرسته وکړه (أم) دبل په معنی دی چې لیږدیدل او انتقال ځنی معلومیږی لکه چې الله ﷻ فرمایي (أم یقولون افتراه) (یتبدل) له بدل او تبدل څخه دی یو شی دبل په ځای اخیستلو ته تبدل وایي (سواء السبیل) یعنی میانه لاره څکه سواء دهر شي وسط ته وایي (فاعفوا) عفو

دمؤاخذې ترک ته ویل کیږي یعنی ببښنه (اصفحوا ) بخښش وکړي ،دترڅو بخښش ته صفح وایي چې ملا متیا وروبښل شي.

## دنزول سبب:

روایت کیږي چې یهودوویل ایا تعجب نه کوی چې محمد ﷺ یو څلی خپلو ملګروته امر کوی او بیا یې څني منع کوی نن یو څه وایي سبا څني پښیمانه او وګرځي دغه قرآن بل څه نه ده بلکه دمحمد ﷺ خبرې دی چې له ځانه یې جوړوی نو دا آیت نازل شو. (۱)

## تفسیر:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ (اې هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی) داد الله ﷻ له لوری مؤمنانو ته غږ دی وایي ﴿ لَا تَقُولُواْ رَٰعِنَا ﴾ مه وایی لفظ دراعنا چې موږ ته ودرېږه څوموږ هغه څه یاد کړو چې ته یې راته وایې ﴿ وَقُولُواْ ٱنظُرۡنَا ﴾ (ووایاست چې انظرنا یعنی موږ ته منتظر شه او ودرېږه ﴿ وَٱسۡمَعُواْ ﴾ او واورئ تاسي حق یعنی دالله داوامرو منل او اطاعت وکړئ دیهودانو غوندی مه کوی چې وایي : سمعنا وعصینا ﴿ وَلِلۡكَٰفِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴾ او شته کافرانو لره (چې یهود دی ) عذاب الیم دردناک عذاب څکه دوی پیغمبر ته ښکنځل کول (او راعنا کلمه یې دښکنځلو په نیت ویله ) ﴿ مَّا يَوَدُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ وَلَا ٱلۡمُشۡرِكِينَ أَن يُنَزَّلَ عَلَيۡكُم مِّنۡ خَيۡرٖ مِّن رَّبِّكُمۡ ﴾ نه خوښوی هغه کسان چې کافران شوی دی له اهل کتابو څخه او نه له مشرکانو څخه چې نازل کړی شی په تاسي کومه ښه خبره له لوری دپروردګار ستاسی( دکینې او بغض له مخي ) ﴿ وَٱللَّهُ يَخۡتَصُّ بِرَحۡمَتِهِۦ مَن يَشَآءُ ﴾ او الله ځانګري کوی په رحمت خپل سره هغه څوک چې دده رضاشي ) یعنی الله ﷻ چې وغواړي غوره کوی یو څوک په وحی ، فضل او احسان سره ﴿ وَٱللَّهُ ذُو ٱلۡفَضۡلِ ٱلۡعَظِيمِ ﴾ او الله دډیر لوی فضل څښتن دی بیا الله تعالی دیهودانو ددې پیغور په هکله چې ویل به یې ولی دقرآن دیو آیت په ځای بل راوړل کیږي او نسخ صورت نیسی داسي وفرمایل :﴿ مَا نَنسَخۡ مِنۡ ءَايَةٍ أَوۡ نُنسِهَا ﴾ هغه چې منسوخ کوو موږ له کوم آیته یا هیروو( له زړونو ) د مؤمنانو څخه ﴿ نَأۡتِ بِخَيۡرٖ مِّنۡهَآ أَوۡ مِثۡلِهَآ ﴾ نو رالیږو بهتر له هغه (پخواني څخه په سهولت او کثرت د اجر کښي او یا په مثل دهغه ) یعني اې مؤمنانو موږ به تاسو ته راوړو هغه چې تاسو ته په عاجل یا اجل کښي د مشقت په پورته کولو یا د ثواب په زیاتیدلو کښي ډیر ګټور وي ﴿ أَلَمۡ تَعۡلَمۡ أَنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٌ ﴾ ایا نه پوهیږې ته چې الله ﷻ په هر څه ښه قادر (او حاکم) دی له هغه څخه داسي څه نه صادریږي چې هغه دبندګانو لپاره دی په ګټه او احسان کی نه وی .

---

(۱) الکشاف ۱۳۷/۱ ، زموږ کتاب روائع البیان ۱۰۰/۱ وګورئ .

﴿ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ ايا نه پوهيږې ته بيشکه الله لره دا سمانو او مځکې پاچهي دی ؟ هغه پکي هر ډول چې غواړی دخلکو په شؤنو کی تصرف کوی په هغه څه چې وغواړي حکم کوی ﴿ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴾ او نشته تاسي لره پرته له الله څخه دوست مرستندوی ﴿ أَمْ تُرِيدُونَ أَن تَسْـَٔلُوا۟ رَسُولَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوسَىٰ مِن قَبْلُ ﴾ ايا اراده لرې تاسو (اې مؤمنانو) چې سوال وکړی له خپل پيغمبره لکه چې غوښتنه او سوال کړی شوی وو پخوا له موسی ﷺ نه يعنی يهودو ورته ويل (أرنا الله جهرة) نو به تاسو هم داسي گمراه شی لکه دوی غوندی ﴿ وَمَن يَتَبَدَّلِ ٱلْكُفْرَ بِٱلْإِيمَـٰنِ ﴾ او هر څوک چې بدلوی کفر په ايمان يعنی غوره کوی گمراهي تر هدايت او کفر تر ايمان ﴿ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ﴾ پس په تحقيق ورکه کړی سمه لار او کوږ شو له سمي سيخي لاري څخه ﴿ وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَـٰبِ ﴾ خوښوي ډير له اهل کتابو څخه چې يهود او نصاریٰ دی ﴿ لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّنۢ بَعْدِ إِيمَـٰنِكُمْ كُفَّارًا ﴾ چې وگرځوی دوی تاسو لره وروسته له ايمان راوړلو کافران ﴿ حَسَدًا مِّنْ عِندِ أَنفُسِهِم ﴾ دحسد له مخې چې ددوی له خپلو نفسونو څخه پيدا شوي دي ﴿ مِّنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلْحَقُّ ﴾ وروسته له هغه چې ښکاره شو دوی ته حق چې ستاسو دين برحق دی ﴿ فَٱعْفُوا۟ وَٱصْفَحُوا۟ ﴾ نو عفوه وکړی دوی ته او مخ تر واړوی جزا مه ورکوی ﴿ حَتَّىٰ يَأْتِىَ ٱللَّهُ بِأَمْرِهِۦٓ ﴾ ترڅو چې الله ﷻ ددوی دقتال حکم راواستوي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ بيشکه الله ﷻ په هر څه قادر دی کله چې وخت راشي ځني انتقام به اخلی ﴿ وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ او سم دروی (ادا کوی) لمونځ او ورکوی زکات چې دادوه مهم داسلام عمودونه او ستنې دی چې بدنی او مالی عبادات دی ﴿ وَمَا تُقَدِّمُوا۟ لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ او څه چې مخکي ليږی لپاره دځانونو خپلوله نيکي څخه دهغه ثواب به په نزد دالله ومومی هغه که فرض وی او که نفل ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ بيشکه الله په هغه څه چې تاسي يې کوی ښه ليدونکی دی نو په ورځ دآخرت به يې جزا درکړي.

بلاغت:

١ - پدې جمله کی چې فرمايي (من ربکم) اضافت دتشريف لپاره دی او بندگانو ته ددې يادونه کوی چې الله ﷻ يې پالونکی دی.

٢ - دادوه جملې چې په سر کی يې دالله ﷻ لفظ راوړی لکه (وَٱللَّهُ يَخْتَصُّ) او (وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ) دامردا هميت او ستر توب ښيه ده څکه يې تصدير په لفظ الجلالة سره فرمايلی دی.

۳ - (أَلَمْ تَعْلَمْ) استفهام دتقرير لپاره دي خطاب پیغمبر ﷺ ته او مراد امت درسول الله ﷺ دی ځکه چې بیا راځي (وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ...).

۴ - وضع داسم ظاهر دالله ﷻ په ځای دضمیر پدې ځایونو کې چې فرمایي (ان الله) او (من دون الله) کې ددې لپاره ده چې په زړونو کی دهیبت او عظمت پالنه وشي.

۵ - پدې جمله کی چې (فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ) اضافت دصفت موصوف ته شوی یعنی ورکه یې کړه برابره لاره او په آیت کی دهغه چا سخت شناعت او بدی څرګندیږي چې حق ورته معلوم وي خوله هغه څخه کږ ولاړوته درومي.

## ګټې او فائدې:

لومړی فائده: الله ﷻ په دې کلمه چې (يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟) ده اته اتیا ځله (۸۸) په قرآن کې خطاب فرمایلی دی او دا پدې سورت کی لومړنی خطاب دی چې الله ﷻ مؤمنانو ته غږ کوی او دایمان والو په نامه یې ستایي دوی ته ورپه یادوی چې دایمان غوښتنه داده چې دالله ﷻ اوامر او نواهی په خورا ښکلی طاعت او امتثال سره پر ځای کړی.

دوهمه فائده: الله ﷻ مؤمنان له دې څخه منع کړی چې پیغمبر ته ووایي (راعنا) بلکه پرځای یې د (انظرنا) حکم کړی دی او پدې کې دښائسته ادب ښوونه ده چې انسان باید هلته چې تعظیم او محبت مقصد وی له داسي کلماتو څخه ځان وژغوری چې دجفا او سپکتیا توهم پکي کیدای شي.

دریمه فائده: یهودانو به د(راعنا) کلمه دښکنځلو لپاره ویله او روایت کول کیږي چې سعد بن معاذ ځنې واوریدله نو ورته یې داسي وویل: اې دالله دښمنانو پر تاسو دی دالله ﷻ لعنت وی زما دی په هغه الله لوړه او سوګند وی چې زما روح یې په ید دقدرت کي ده که می ستاسي له یو چا څخه واوریدل چې رسول الله ﷺ ته یې وایي زه به یې سر قلم کړم نو دوی ورته وویل ایا تاسو یې نه وایاست؟ بیا دغه آیت نازل شو (يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَقُولُوا۟ رَٰعِنَا وَقُولُوا۟ ٱنظُرْنَا).

## الله تعالی فرمایي:

﴿ وَقَالُوا۟ لَن يَدْخُلَ ٱلْجَنَّةَ إِلَّا مَن كَانَ هُودًا أَوْ نَصَـٰرَىٰ ۗ تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ ۗ قُلْ هَاتُوا۟ بُرْهَـٰنَكُمْ إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ ﴿١١١﴾ بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُۥ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهُۥٓ أَجْرُهُۥ عِندَ رَبِّهِۦ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١١٢﴾ وَقَالَتِ ٱلْيَهُودُ لَيْسَتِ ٱلنَّصَـٰرَىٰ عَلَىٰ شَىْءٍ وَقَالَتِ ٱلنَّصَـٰرَىٰ لَيْسَتِ ٱلْيَهُودُ عَلَىٰ شَىْءٍ وَهُمْ يَتْلُونَ ٱلْكِتَـٰبَ ۗ كَذَٰلِكَ قَالَ ٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ فَٱللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ فِيمَا كَانُوا۟ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿١١٣﴾ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَـٰجِدَ ٱللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا ٱسْمُهُۥ وَسَعَىٰ فِى خَرَابِهَآ ۚ أُو۟لَـٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَآ إِلَّا

خَآئِفِينَۚ لَهُمْ فِي ٱلدُّنْيَا خِزْيٌ وَلَهُمْ فِي ٱلْأٓخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١١٤﴾ وَلِلَّهِ ٱلْمَشْرِقُ وَٱلْمَغْرِبُۚ فَأَيْنَمَا تُوَلُّواْ فَثَمَّ وَجْهُ ٱللَّهِۚ إِنَّ ٱللَّهَ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿١١٥﴾ ﴾ البقرة: ١١١ - ١١٥

## مناسبت او تړاو:

دغه آیتونه داهل کتابو نور چټیات بیانوي هغه چې ددوی هرې یوې ډلې دعوی درلوده چې جنت په دوی پسې ځانګړی دی او دبل په دین پسې به یې پیغوروته تړل یهودانو به نصرانیان کافران اوګمرهان ګڼل او دوی به پخپله په حضرت عیسی ﵇ او انجیل باندې ایمان نه راوړ او نصرانیانو به بیا یهود په دې کافران اوګمرهان ګڼل څکه په مسیح یې ایمان نه وو راوړی هغه چې ددوی دشریعت دبشپړوالی لپاره راغلی وو دغه شخړه دومره اوچتې مرحلې ته ورسیده چې دیو بل په دین پورې به یې پیغوروته تړل او داسې ګومان یې کاوو چې جنت خاص ددوی ځای دی الله ﷻ ددوی دغه خوبونه درواغ وګڼل او داسې یې ښکاره کړه چې جنت دپرهیزګاره مؤمن مسلمان ځای دی.

## لغتونه:

(هودا) یعنې یهود چې دهائد جمع او دهائد معنی تائب او رجوع کوونکی دی چې له هاد څخه اخیستل شوې کله چې توبه وباسي الله فرمایي (انا هدنا الیک) (امانیهم) دامنیه جمع ده چې هیلې او آرزوته وایي (برهان) هغه دلیل حجت ته وایي چې یقین ته رسونکی وي (اسلم) تسلمیدلو ته ویل کیږي (خرابها) ورانولو ته وایي هغه په دوه ډوله دی یویې معنوی لکه چې په مسجد کې دالله شعائر نه پر ځای کیږي ورته دمسجد تخریب وائي او بل یې حسي اوظاهري دې لکه دمسجد نړول (خزی) رسوا کیدل او سپکتیا ته وایي (ثم) دثاء په فتحه سره ظرف مکان معنی مومې هلته (وجه الله) له وجه الله څخه مراد هغه دالله خوښ کړی شوی جهت دی چې الله ورته دمخامخ کیدلو امر فرمایي.

## دنزول سبب:

ابن عباس ﵄ وایي کله چې دنجران نصاری رسول الله ﷺ ته راغلل نو دیهودو علماءهم ورته راغلل او درسول الله ﷺ په وړاندې یې شخړه پیل کړه نو رافع بن حرمله وویل تاسو له دین څخه په هیڅ شی کې نه یاست او په عیسی ﵇ او انجیل کافر شو بیا دنجران دنصاراوو یو تن یهودانو ته وویل تاسې په هیڅ شي کې نه یاست او په تورات او موسی ﵇ کافران او له حقیقت څخه یې منکر شول نو الله ﷻ دا آیتونه نازل کړل (وَقَالَتِ ٱلْيَهُودُ لَيْسَتِ ٱلنَّصَٰرَىٰ عَلَىٰ شَيْءٍ) ([1])

---

(١) مختصر ابن کثیر ١/١٠٨.

## تفسير :

﴿ وَقَالُوا لَن يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَن كَانَ هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ ﴾ او وايي (يهودان) له سره به نه ننوځي جنت ته مگر هغه چې يهود وي او نصارى وايي چې له سره به جنت ته نه ننوځي مگر هغه چې نصراني وي ﴿ تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ ﴾ دا ددوى خيالات او نفساني غوښتنې دي ﴿ قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾ ووايه دوى ته (اې محمده) راوړئ (ښكاره) دليل پدې دعوئ كه چيرى ښتاسو رښتيا ويونكي ياست ؟ ﴿ بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ ﴾ (بلكه له دوى پرته نورهم داخليږي داسي نه ده لكه چې دوى وايي هو) هر څوك چې وسپاري ځان خپل الله ته او نيكو كار وي )دپيغمبر ﷺ تصديق كونكى اومنونكى وي ﴿ فَلَهُ أَجْرُهُ عِندَ رَبِّهِ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ نوده لره اجر او ثواب دي په نزد دپروردگار دده او نشته هيڅ ډول ويره په دوى او نه به هيڅيري خفه كيږي بلكه په تل تر تله نعمت كى به اوسي ﴿ وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصَارَىٰ عَلَىٰ شَيْءٍ ﴾ او وايي يهودان چې نه دي نصرانيان په هيڅ شي (له صحيح دين څخه يعني دين يې باطل دى) ﴿ وَقَالَتِ النَّصَارَىٰ لَيْسَتِ الْيَهُودُ عَلَىٰ شَيْءٍ ﴾ او وايي نصرانيان نه دي يهودان په هيڅ شي (دحق دين څخه) دوى په موسى ﷺ كافران شوي دي ﴿ وَهُمْ يَتْلُونَ الْكِتَابَ ﴾ او حال دا چې دا يهودان او نصرانيان) لولى كتاب (تورات او انجيل) دوى له پوهي سره سره كافران شوي دي ﴿ كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ﴾ همدارنگه ويل هغو كسانو چې نه پوهيدل په شان دويلو ددغو (اهل كتابو) لكه دعربو مشركانو چې به ويل محمد په هيڅ شي كى نه دى له حق دين څخه ﴿ فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴾ نو الله به حكم وكړي په مينځ ددوى كى دقيامت په ورځ په هغه شي كي چې وو دوى او ددين په اره يې پكي جگړې او اختلاف كاوو ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ وَسَعَىٰ فِي خَرَابِهَا ﴾ (څوك دي لوى ظالم تر هغه چا چې بندوى مسجدونه دالله له دي څخه چې پكي يادكړى شى نوم دده اوزيار باسي په نړولو ،شاړولو دهغو كي ) يعني نشته تري بل ظالم دلته استنكار او استبعاد دى معنى دا چې تر دې ستر ظالم بل څوك نشته چې خلك دالله ذكر ته په مساجدو كى نه پريږدي او يا مسجدونه نړوى لكه چې رومان بيت المقدس وران كړ او يا دقريشو كفارو دالله كور ته دذكر لپاره څوك نه پريښودل ﴿ أُولَٰئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَا إِلَّا خَائِفِينَ ﴾ دغه كسان ندى لائق دوى ته چې ننوځي دغو مسجدونو ته مگر ويريدونكى يعني دوى ته دا نه ښايي چې دمساجدو تخريب او تعطيل وكړى مگر دا چې په خشوع او عاجزى ورد ننه شي ﴿ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ﴾ دوى لره په دنيا كى ذلت دى ﴿ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ او شته دوى لره په آخرت كى ستر عذاب چې اور دى ﴿ وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ﴾ او خاص الله لره دي ختيز او لويديز او مراد ټوله مځكه ده ﴿ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ ﴾ او هر لورى ته چې مخ وگرځوئ نو هم هلته

لوری دطاعت دالله او قبله ده دا آیت دهغه چا په هکله نازل شوی چې قبله خنی ورکه شوې ده ﴿ إِنَّ اللَّهَ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴾ بیشکه چې پراخ دی رحمت دالله او ښه عالم او پوهیدونکی دی یعنی په خلکو باندی یې پریمانه نعمتونه لوروړلی دی او ددوی دامورو تدبیر او چلول کوی چې هیڅ یو وړوکی شیز هم ورڅخه پاتې نه دی.

## بلاغت:

۱ - داجمله چې فرمایي: (تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ) اعتراضیه ده او فائده یې ددوی ددعوې بطلان دی چې ددوی دعوه یو مخ ایزه دروغ دی.

۲ - په (قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ) کې امر دتبکیت او ترټنې لپاره دی.

۳ - په دې جمله کی چې فرمایي: (بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ) استعاره دی او یوازې مخ یې ددې لپاره ذکر کړ چې داعضاؤ تر ټولو زیات دشرافت خاوند دی مراد خنی دالله لوری ته توجه کرخول او دهغه عبادت کول دی(۱)

۴ - (عِندَ رَبِّهِ) په دې جمله کی په نزد ذرب دشرافت لپاره ذکر شوی او د(رب) اضافت بیا ضمیر ته دزیات لطف او احسان څرګندونه کوی.

۵ - پدې جمله کی چې فرمایي: (قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ) ستر توبیخ دی چې اهل کتابو سره له پوهی دهغه چا لاره تعقیبوله چې له سره یې علم نه درلود.

۶ - پدې کلمه کی چې (وَمَنْ أَظْلَمُ) ده استفهام دنفی په معنا دی یعنی نشته هیڅوک ستر ظالم.

۷ - کله چې الله تعالی فرمایي: (لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ) دلته تنکیر دتهویل لپاره دی یعنی داسې ستر او هولناک ذلت چې هیڅ بیان یې نه کیږي.

۸ -(علیم) دفعیل صیغه دمبالغې لپاره او معنا یې (واسع العلم) دی

## فائده:

امام فخرالرازی وایي (اسلم وجهه) دمخ اسلام یعنی دالله طاعت ته دنفس سپارل او کله کله په وجه سره له نفس څخه کنایه راځي لکه چې الله فرمایي (کل شئ هالک الا وجهه).

## الله تعالی فرمایي:

﴿ وَقَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ۗ سُبْحَانَهُ ۖ بَل لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ كُلٌّ لَّهُ قَانِتُونَ ﴿١١٦﴾ بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ وَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿١١٧﴾ وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللَّهُ أَوْ تَأْتِينَا آيَةٌ ۗ

(۱) تلخیص البیان ص۱۰.

كَذَٰلِكَ قَالَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِم مِّثۡلَ قَوۡلِهِمۡۘ تَشَٰبَهَتۡ قُلُوبُهُمۡۗ قَدۡ بَيَّنَّا ٱلۡأٓيَٰتِ لِقَوۡمٖ يُوقِنُونَ ﴿١١٨﴾ إِنَّآ
أَرۡسَلۡنَٰكَ بِٱلۡحَقِّ بَشِيرٗا وَنَذِيرٗاۖ وَلَا تُسۡـَٔلُ عَنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡجَحِيمِ ﴿١١٩﴾ وَلَن تَرۡضَىٰ عَنكَ ٱلۡيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ
مِلَّتَهُمۡۗ قُلۡ إِنَّ هُدَى ٱللَّهِ هُوَ ٱلۡهُدَىٰۗ وَلَئِنِ ٱتَّبَعۡتَ أَهۡوَآءَهُم بَعۡدَ ٱلَّذِي جَآءَكَ مِنَ ٱلۡعِلۡمِ مَا لَكَ مِنَ ٱللَّهِ مِن وَلِيّٖ وَلَا نَصِيرٍ ﴿١٢٠﴾
ٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ يَتۡلُونَهُۥ حَقَّ تِلَاوَتِهِۦٓ أُوْلَٰٓئِكَ يُؤۡمِنُونَ بِهِۦۗ وَمَن يَكۡفُرۡ بِهِۦ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ ﴿١٢١﴾ يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ
ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَأَنِّي فَضَّلۡتُكُمۡ عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿١٢٢﴾ وَٱتَّقُواْ يَوۡمٗا لَّا تَجۡزِي نَفۡسٌ عَن نَّفۡسٖ شَيۡـٔٗا وَلَا يُقۡبَلُ مِنۡهَا
عَدۡلٞ وَلَا تَنفَعُهَا شَفَٰعَةٞ وَلَا هُمۡ يُنصَرُونَ ﴿١٢٣﴾ ﴾ البقرة: ۱۱۶ - ۱۲۳

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی دیهودو او نصاراوو دغه افتراء او دروغ ذکر کړل چې دوی به ویل جنت یوازې زموږ دی نور هیڅوک له موږ سره پکې ګډون نشي کولای بیا وروسته یې ددوی څه نور قبائح ذکر کړل او همدارنګه دنورو مشرکینو چې دوی به ګومان کاوو او ویل به یې چې ملائک دالله ﷻ لوڼې دي او یا به یهودانو ویل چې عزیر ﷺ دالله زوی او نصاراوو به بیا حضرت مسیح ﷺ دالله ﷻ زوی باله ، الله ﷻ ددوی دغه دروغژني دعوې باطلې او په غوڅ برهان یې وتکولې.

## لغتونه:

(سبحانه) سبحان دسبح مصدر او دتنزیه او پاکی په معنی دی یعنی پاکی له هر هغه څیز نه چې دالله جلاله سره نه ښایي (قانتون) غاړه ایښودونکی له قنوت څخه اخیستل شوی چې طاعت او خضوع ته وایي (بدیع) له ابداع نه اخیستل شوی او ابداع دیو شی هغه جوړښت ته ویل کیږي چې پخوانی مثال ونلري (قضیٰ) دارادې او تقدیر په معنی دی (بشیراً) بشارت یو ښتونی خبر چې خوشحالونکی وی او راوړونکی ته یې بشیر وایي (نذیراً) دیو ویرونکی خبر راوړنکی ته نذیر وایي (جحیم) لمبې وهونکی اور(مِلَّتَهُم) دین دهغوی جمع یې ملل راځي (ملت) په اصل کی تګ لارې ته وایي او بیا دالله ﷻ رانازل شوی شریعت ته وویلی شو (عدل) بدل او فدیه.

## تفسیر:

﴿ وَقَالُواْ ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ وَلَدٗاۗ ﴾ او وایي کفار (نصرانیان او یهودان) چې نیولی دی الله زوی یهودانو ویل چې (عزیر) دالله زوی دی نصارا وو ویل چې حضرت مسیح دالله زوی دی مشرکانو به ویل چې ملائکې دالله ﷻ لوڼې دي نو الله ددوی ټولو دروغجنتوب څرګند کړی چې ﴿ سُبۡحَٰنَهُۥۖ ﴾ پاکي ده ده لره له هغو ټولو نه چې دوی ګومان کوی ﴿ بَل لَّهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ ﴾ بلکه ده لره دی هر هغه څه چې په آسمانو او ځمکو کی دی هسې نه لکه چې دوی ګومان کوی بلکه الله ﷻ پیداکوونکی دټولو مخلوقاتو دی او دهغوی له جملې څخه عزیر ، عیسی او

ملائكي هم دی ﴿كُلٌّ لَّهُۥ قَٰنِتُونَ﴾ ټول هغه لره حکم منونکی دی چې د الله ﷻ له تکوین او تقدیر څخه سرغړونه نه کوی ﴿بَدِيعُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ نوی پیدا کونکی د آسمانونو او ځمکې چې پخوایې مثال نه درلود ﴿وَإِذَا قَضَىٰٓ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ﴾ (او هر کله چې اراده وکړي د یو کار نو بیشکه همدا خبره ده چې وایي هغه کار ته چې شه نو وشی ) یعنی بې له ځنډه او انکار نه د سترګو په رپ کې هغه کار تر سره شي غوښتنې یې ارو مرو منل کیږی او له امر څخه یې مخالفت نه کاوه شي (وما امرنا الا واحدة کلمح بالبصر) ﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ (او وایي هغه کسان چې دوی نه پوهیږي ) مراد ځني د مشرکینو جاهلان او د قریشو کافران دی ﴿لَوْلَا يُكَلِّمُنَا ٱللَّهُ﴾ ولی خبری نه کوی له موږ سره الله (پخپله) چې موږ ته وحی راواستوی او یا مخامخ راته ووایی چې ته د هغه رسول او پیغمبر یې ؟ ﴿أَوْ تَأْتِينَآ ءَايَةٌ﴾ یاولی نه راځي موږ ته یو آیت چې ستا د نبوت تصدیق وکړی دا به یې د عناد او استکبار له مخې ویل ﴿كَذَٰلِكَ قَالَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّثْلَ قَوْلِهِمْ﴾ (همدارنګه هغو کسانو ویل چې تر دوی له مخه وو په شان د خبرو د دوی ) یعنی د دغو کسانو د باطلو او دروغو په شان پخوا د دوی اسلافو هم د رسولانو د تکذیب په هکله ویناوې کولې ﴿تَشَٰبَهَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ یو رنګ شوی دی زړونه د دوی په دروغ ویلو ، عناد ، رندوالی او تکذیب کی او په دې خبره کې د رسول الله ﷺ د ادینه ده ﴿قَدْ بَيَّنَّا ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ﴾ (په تحقیق بیان کړی دی موږ معجزې هغو خلکو ته چې دوی یقین کوی )او حق غواړی او دا ټول ستا د کتاب او رسالت تصدیق او رښتنولی څرګندوی ﴿إِنَّآ أَرْسَلْنَٰكَ بِٱلْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا﴾ بیشکه موږ لیږلی یې ته (اې محمده ) (په روښانه شریعت او سم دین باندی ) په حقه سره زیری ورکونکی (مؤمنانو ته په نعیم) او ویرونکی (کافرانو ته په جحیم سره) ﴿وَلَا تُسْـَٔلُ عَنْ أَصْحَٰبِ ٱلْجَحِيمِ﴾ او نه به پوښتل کیږی ته له دوزخیانو څخه یعنی ته د هغه چا مسئول نه یې چې په تا ایمان نه راوړی تا خو د دوی د بلنې په لار کې خپل زیار ایستلی دی (انما علیک البلاغ وعلینا الحساب) ﴿وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ﴾ او هیڅکله به راضی نه شي له تا څخه (اې محمده ) یهودان او نصاری تر څو چې ته د دوی د دین متابعت وکړې ﴿قُلْ إِنَّ هُدَى ٱللَّهِ هُوَ ٱلْهُدَىٰ﴾ ووایه (اې محمده ) بیشکه هدایت د الله همدغه هدایت دی ﴿وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم بَعْدَ ٱلَّذِى جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ﴾ او که چیری پیروی وکړی ته د آرزوګانو د دوی (چې فاسد او ناکره دی) وروسته له دې چې راغلی دی تاته له پوهی او علم نه یعنی تاته حق په څرګندو دلائلو او کوټلی براهینو ثابت شوی دی ﴿مَا لَكَ مِنَ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ﴾ نو نه به وی تا لره څوک ساتونکی له عذابه د الله او نه مددګار او خلاصونکی له هغه عذابونو څخه ﴿ٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ﴾ (هغه کسان چې ورکړی دی موږ دوی ته کتاب هغوی د یهودانو او نصاراوو هغه کسان او ټولی دی چې مسلمانان شوی دی ﴿يَتْلُونَهُۥ حَقَّ تِلَاوَتِهِۦٓ﴾ لولی دا کتاب په حق لوستلو

دهغه لکه چې نازل شوی دی ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِۦ ﴾ همدغو کسانو ایمان راوړی په دغه کتاب دغه کلمه خبر دمبتداء دی یعنی یوازی همدغه کسان پرته له منکرینو او تحریف کونکو څخه حقاني مؤمنان دی ﴿ وَمَن يَكْفُرْ بِهِۦ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴾ او هغه څوک چې کافر شي په ده نو دغه کسان هم دوی دی زیانکاران (په دنیا او آخرت کی) ﴿ يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱذْكُرُواْ نِعْمَتِىَ ٱلَّتِىٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ ﴾ (اې بني اسرائيلو ياد کړی زما هغه انعام چې کړی دی ما پر تاسی ) يعنی زما هغه ډير نعمتونه ياد کړئ چې لورولی مي دی په تاسو او ستاسو په پلرونو باندی ﴿ وَأَنِّى فَضَّلْتُكُمْ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ (او بل دا چې بيشکه ما غوره کړی يې تاسي او پلرونه ستاسي په خلکو دزمانې ستاسي ﴿ وَٱتَّقُواْ يَوْمًا لَّا تَجْزِى نَفْسٌ عَن نَّفْسٍ شَيْـًٔا ﴾ (او وويريږی له هغې ورځي چې ليری کولی به نشي هيڅ نفس له هيڅ نفس څخه هيڅ شی اونه به دفع کولای شی له عذابه دالله څخه يو څه ځکه چې (کل نفس بما كسبت رهينة) ﴿ وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ ﴾ او نه به شي قبلولی له هغه نفس څخه بدل او فديه ﴿ وَلَا تَنفَعُهَا شَفَٰعَةٌ ﴾ او نه به ګټه رسوي ده ته شفاعت (سپارښتنه) ځکه هغه کافر شوی ﴿ فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَٰعَةُ ٱلشَّٰفِعِينَ ﴾ [المدثر: ٤٨] ﴿ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴾ او نه به له دوی سره مدد وکړی شي يعنی نه به يې څوک دالله له عذابه ژغوري او نه به څنی عذاب دفع کوی.

## بلاغت:

١ - (سُبْحَٰنَهُۥ) اعتراضيه جمله ده او فائده يې دادی چې دظالمانو ددعوی بطلان کوی هغوی چې ګومان کاوو الله ﷻ زوی لری ، ابو السعود وايي چې په دې کلمه کی بشپړه تنزيه او پاکي ده ځکه له سبح څخه يې اشتقاق شوی او تفعيل ته يې نقل راغلی او مصدرته يې عدول شوی دی مقصد يې داده چې زه دالله هغسي تنزيه او پاکي بيانوم کوم چې له شان سره يې وړ او لائق وی([1])

٢ - (كُلٌّ لَّهُۥ قَٰنِتُونَ) دلته جمع تغليبی دی ځکه قانتون دعاقلانو جمع دی او ګواکې ذوی العقول په غير ذوی العقول باندی غالب ګڼل شوی او دغه هم دبديع دعلم له محسناتو شميرلی کيږی.

٣ - (أَصْحَٰبِ ٱلْجَحِيمِ) دکافرانو او دروغجنو خلکو څخه په دوزخيانو تعبير شوی دی او دا ددې ګواهي ورکوی چې ددوی په زړونو مهر لګول شوی ددې هيله څنی نه کيږی چې دوی به له خپلي ګمراهي او کفر څخه ايمان او دين ته رجوع وکړی ځکه نو دوی اکه پکه دوزخيان دی.

٤ - (هُوَ ٱلْهُدَىٰ ) په جمله کی چې الهدی په الف لام باندی معرفه ذکر شوی سره له دې چې دفصل ضمير ورسره په څنګ کی دی ددې افاده کوی چې هدايت يوازی دالله ﷻ په دين کی دی او دا دصفت قصر او څانګړتيا په موصوف کی ښيي ځکه اسلام خو ګرد دټول بشر هدايت دی او له هغه پرته ګمراهی او ړوندوالی دی.

٥ - (وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم) پدې جملو کی تهيج او الهاب يعنی په غور څنګ راوستل او ايشيدل دی.

---

(١) تفسير ابی السعود ١١٧/١.

**تنبیه:**

قرطبي وايي (بَدِيعُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ) معنا يې داده چې پيدا کوونکی جوړونکی اختراع کونکی د آسمانونو او مځکی دی چې پخوا يې مثال نه وو او هر څوک چې کوم څيز پرته له پخوانی مثال نه جوړ کړی ورته مبدع ويل کيږی څکه نو بدعت ته بدعت وايی دوی په دين کی داسې نوی کارونه پيدا کوی چې پخوانه وی موجود او نه چا ورباندی قول کړی وی او په بخاری شريف کی درمضان دقيام په هکله راغلی چې (نعمت البدعة هذه) او بيا وايي چې هر نوی کار چې له مخلوق څخه صادر شي که چيری يې په شريعت کی اصل وی نو هغه دثنا وړ دې او دحضرت عمر ﷺ قول يې ملا تړ کوی چې ويلی: (نعمت البدعة هذه) او که يې اصل نه درلود نو دکرکی او انکار وړ دې په حديث شريف کی راځي: (څوک چې په اسلام کی نيکه او ښه لاره جوړه کړي نو هغه لره دهغه اجر دي او هرڅوک چې په همغه لاره دروسي دهغوی اجرهم ورکول کيږی او څوک چې بده لاره چاره جوړه کړی هغه ته دهغې سزا ورکول کيږی او څوک چې په هغه لاره عمل کوی دهغوی سزا هم ورکول کيږی(۱)

## الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ وَإِذِ ٱبْتَلَىٰٓ إِبْرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٍ فَأَتَمَّهُنَّ ۖ قَالَ إِنِّى جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا ۖ قَالَ وَمِن ذُرِّيَّتِى ۖ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِى ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٢٤﴾ وَإِذْ جَعَلْنَا ٱلْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا وَٱتَّخِذُوا۟ مِن مَّقَامِ إِبْرَٰهِـۧمَ مُصَلًّى ۖ وَعَهِدْنَآ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَٰعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِينَ وَٱلْعَٰكِفِينَ وَٱلرُّكَّعِ ٱلسُّجُودِ ﴿١٢٥﴾ وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ رَبِّ ٱجْعَلْ هَٰذَا بَلَدًا ءَامِنًا وَٱرْزُقْ أَهْلَهُۥ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ مَنْ ءَامَنَ مِنْهُم بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ ۖ قَالَ وَمَن كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُۥ قَلِيلًا ثُمَّ أَضْطَرُّهُۥٓ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلنَّارِ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴿١٢٦﴾ وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَٰهِـۧمُ ٱلْقَوَاعِدَ مِنَ ٱلْبَيْتِ وَإِسْمَٰعِيلُ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّآ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿١٢٧﴾ رَبَّنَا وَٱجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِن ذُرِّيَّتِنَآ أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَآ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴿١٢٨﴾ رَبَّنَا وَٱبْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُوا۟ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ ۚ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿١٢٩﴾ ﴾ البقرة: ۱۲۴ - ۱۲۹

## مناسبت او تړاو:

وروسته له دې چې په تيرو آيتونو کی الله ﷻ بني اسرائيلو ته دخپلو ورکړل شويو نعمتونو ياد ونه وکړه او دايي څرګنده کړه چې څرنګه به دوي دنعمتونو کفران کاوو او دنعمتونو مقابله به يې په عناد او سرغړونې کوله په خپلو کړو وړو کی به يې منکرات او ناروا لاري چاري غوره کولې نو خبره تر دې راورسيده چې دوی خو به خانونه حضرت ابراهيم ﷺ ته منسوب کول او دهغه بهتری به يې منله نو که په رښتيا هم يهوديان او نصرانيان پخپل قول کی صادق او رښتوني وی نو ددغه عزتمن پيغمبر حضرت محمد ﷺ پيروی او متابعت خو وړباندی لازم وو څکه دی دابراهيم ﷺ ددعا استجابت دی کومه چې داهل حرم لپاره يې کړې وه او بل دی داسماعيل ﷺ له اولاد څخه دی نو دده دشريعت خو بيخی اتباع او پيروی کول لازم وو چې دا دخليل ﷺ شريعت دی.

(۱) القرطبی ۸۷/۲.

## لغتونه:

(ابتلی) امتحان او ازموینت (فاتمهن) هغه یې بشپړ کړل (اماما) امام هغه مقتداء ته وایي چې په کړو وړو کی یې پیروی کول کیږی (مثابة) مرجع له ثاب یثوب څخه اخیستل شوی یعنی دوی به ورته راګرزي هیڅکله به یې ځنی استغنانه راځي (امنا) سلامتیا له ویری څخه او پخپل اهل او نفس اطمنان او بیغمي ته وایي (وعهدنا) امر مو کړی او وحی مو نازله کړې (للطائفین) د طائف جمع دي له طواف څخه اخیستل شوی او طواف خواوشا په یوشی راګرځیدلو ته وایي (فامتعه) زه به ده ته نفع ورکړم له تمتع څخه اخیستل شوی او معنی یې دي انسان ته دداسي شي ورکول چې ورباندی نفع واخلی (قل تمتعوا فان مصیر کم الی النار) (القواعد) د قاعدې جمع دی او هغه بیا اساس او بنسټ ته وایي (مناسکنا) د منسک جمع او هغه عبادت او طاعت ته وایي (الحکمة) ګټور علم چې سره له عمله وی او مراد ځنی نبوی پاکیزه سنت دی (ویزکیهم) له تزکیې څخه اخیستل شوی او هغه تنمیې او ودې ته ویل کیږی او بیا د نفسي طهارت او پاکوالی په معنیٰ استعمال شو الله ﷻ فرمایي: (قد أفلح من زکاها).

## تفسیر:

﴿ وَإِذِ ٱبۡتَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٖ فَأَتَمَّهُنَّۖ ﴾ (او یاد کړه اې محمده) هغه وخت چې وازمایه ابراهیم لره پروردګار دده په څو خبرو نو ده پوره کړی هغه (خبری) یعنی کله چې الله ﷻ خپل بنده ابراهیم په څو اوامرو او نواهیو وازمایو او هغه په ښه توګه ترسره کړل ﴿ قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامٗاۖ ﴾ وویل (الله) چې بیشکه زه ګرځونکی ستایم لپاره دخلکو مقتدا (په دین کی) تر څو خلک ستا په سبب لار ومومی او ته یې لارښوونکی یې ﴿ قَالَ وَمِن ذُرِّيَّتِيۖ ﴾ (وویل (ابراهیم) او له اولادې زما) هم دارنګه امامان ﴿ قَالَ لَا يَنَالُ عَهۡدِي ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ نو وفرمایل (الله) نه رسیږي عهد زما (امانت) زما کافرانو ته) دغه ستر فضل او احسان هیڅ کافرته نه رسیږي ﴿ وَإِذۡ جَعَلۡنَا ٱلۡبَيۡتَ مَثَابَةٗ لِّلنَّاسِ ﴾ او یاد کړه (اې محمده) هغه وخت چې وګرځوله موږ کعبه مرجع لپاره دخلکو چې له هره لوری ورته رادرومی ﴿ وَأَمۡنٗا ﴾ او ځای دامن چې په امن کیږی هر څوک چې ورته پناه راوړی او داله دې وجهي چې الله پاک دعربو په زړونو کی دهغې تعظیم او اجلال خوندی کړی دی ﴿ وَٱتَّخِذُواْ مِن مَّقَامِ إِبۡرَٰهِـۧمَ مُصَلّٗىۖ ﴾ (او ونیسی (اې مؤمنانو) له ځای ددریدلو ) دابراهیم ځنی ځای دلمانځه) او داهغه تیږه ده چې حضرت ابراهیم به دکعبې دجوړلو په وخت کی ورباندی دریدو ﴿ وَعَهِدۡنَآ إِلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ ﴾ او حکم کړی وو وصیت مو کړی وو ابراهیم او اسماعیل ته ﴿ أَن طَهِّرَا بَيۡتِيَ لِلطَّآئِفِينَ وَٱلۡعَٰكِفِينَ وَٱلرُّكَّعِ ٱلسُّجُودِ ﴾ (چې پاک کړی تاسي دواړه (کور دعبادت) زما لپاره دطواف کونکو معتکفینو او لپاره درکوع کوونکو، سجده کونکو) یعنی موږ دواړو ته امر کړی وو چې پاک وساتی (بیت الله) له پلیتي او بتانو څخه چې عبادت کونکو لپاره پناهګاه او سنګروی، په آیت شریف کی دعبادت کونکو څو ډلې ښودلې شوې طواف کونکي معتکفین او لمونځ ګذاره دی بیا الله ﷻ دابراهیم ددعا یادونه کوي ﴿ وَإِذۡ قَالَ إِبۡرَٰهِـۧمُ رَبِّ ٱجۡعَلۡ هَٰذَا بَلَدًا ءَامِنٗا ﴾ (او یاد کړه (اې محمده) هغه وخت چې

وویل ابراهیم اې ربه زما وګرزوه دا ښار ځای دامن) مراد ځنی دمکې ښار دی چې خلک یې په امن او استقرار کې وی ﴿ وَارْزُقْ أَهْلَهُۥ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ مَنْ ءَامَنَ مِنْهُم بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْأَخِرِ ﴾ (او روزی ورکړه او سیدونکوته یې دهرراز میوو څخه هر هغه چا لره چې ایمان یې راوړی دی له دوی ځنې په الله او په ورځ دآخرت باندی) یعنی دمکې مکرمې خلکو اواوسیدونکوته ډول ډول میوې ورکړه تر څو ستا عبادت وکړی او دطاعت لپاره دی چمتو وی او په خانګړی توګه یې دمؤمنانو یادونه وکړه الله ﷺ یې په خواب کی وفرمایل ﴿ قَالَ وَمَن كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُۥ قَلِيلًا ﴾ وویل الله او هر څوک چې کافر شو هغه ته به یې هم ورکړم لږ) یعنی الله ﷺ وفرمایل چې زه به کافرانو ته هم روزي ورکړم ایا زه یو څوک خلق او پیدا کړم او بیا روزي ورنکړم؟ هو کافر ته به په دنیا کی چې دده دژوند لنډه موده ده روزي ورکوم ﴿ ثُمَّ أَضْطَرُّهُۥٓ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلنَّارِ ﴾ او بیا به یې په زور بوزم داکافر عذاب داورته) او هیڅ خلاصون به ځنی نه مومی ﴿ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴾ او بد ځای دورتلو دی هغه اور چې دکافر ځای مرجع او مآل شي، حضرت خلیل خو روزي هم له امامت سره قیاس او پرتله کړه خو الله ﷺ ورته وښودل چې روزي او رزق دنیوي رحمت دی او نیکمرغه بدمرغه دواړوته شامل او ورکول کیږي پرته له امامت نه هغه چې په خواصومؤمنانو پوري ځانګړی شوی دی وروسته بیا الله تعالی دبیت الله دودانولو نکل داسي تیر وی ﴿ وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَٰهِـۧمُ ٱلْقَوَاعِدَ مِنَ ٱلْبَيْتِ وَإِسْمَـٰعِيلُ ﴾ او یاد کړه (اې محمده) هغه وخت چې پورته کړل ابراهیم او اسماعیل تادوونه دکعبې) یعنی داهسي عجیبه کار چې دوه ستر پیغمبران حضرت خلیل او اسماعیل دبیت الله تادوونه پورته کوی او بیا په بشپړه خضوع او عاجزي دعا کوی چې ﴿ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّآ إِنَّكَ أَنتَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ (اې ربه زموږ قبول کړه له موږ څخه دا کار بیشکه چې ته یې ښه اوریدونکی او ښه پوهیدونکی) یعنی دکار کولو په ترڅ کی به یې دغه مبارکی دعا ګانی هم لوستلې چې اې ربه زموږ دغه کار خاص ستا درضا لپاره وګرزوې ته زموږ ددعاګانو اوریدونکی اوزموږ په نیتونو ښه پوهیدونکی یې ﴿ رَبَّنَا وَٱجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ ﴾ (اې زموږ ربه موږ ستا حکم منونکی وګرزوه) او تاته غاړه ایښودونکی ﴿ وَمِن ذُرِّيَّتِنَآ أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ ﴾ او وګرزوه له اولادې او نسل زموږ یوه ډله حکم منونکی ﴿ وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا ﴾ او وښیه موږ ته دعبادت لاری (شرائع) احکام دحج ﴿ وَتُبْ عَلَيْنَآ إِنَّكَ أَنتَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ (او قبوله کړه توبه زموږ بیشکه هم داته یې ښه توبه قبلونکی ښه مهربان) ستا رحمت ډیر پراخ او مغفرت دی ډیر ستر دی ﴿ رَبَّنَا وَٱبْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ ﴾ اې زموږ ربه ولیږه په دوی کی یو استازی (رسول ددوی ځنی) او دا ددوی مبارکانو له دعاګانو څخه یوه وه چې په (پایله) نتیجه کی یې بل مشال (سراج منیر) حضرت محمد ﷺ د الله ﷺ له لوری په استازیتوب راغی ﴿ يَتْلُوا۟ عَلَيْهِمْ ءَايَـٰتِكَ ﴾ لولی پر دوی باندی آیتونه ستا (دقرآن آیتونه) ﴿ وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلْكِتَـٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ ﴾ (اوښیي دوی ته کتاب (قرآن) او حکمت (دنبي سنت) ﴿ وَيُزَكِّيهِمْ ﴾ او پاک کړی دوی له ګناهونو (دشرک څخه) ﴿ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ بیشکه ته هم داته ښه غالب دحکمت خاوند یې) یعنی په تاهیڅوک هم بری نشي موندلای ته په هر چا غالب یې او هسې حکیم ذات یې هغه چې دحکمت له مقتضا او غوښتني پرته هیڅ کار هم نکوې.

## بلاغت:

۱ - دربوبیت عنوان پدې کلمه کې ځرګندول چې (وَإِذِ ٱبۡتَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ) دحضرت ابراهیم ﷺ دتعظیم او تشریف لپاره دی او دا چې دغه ابتلاء دهغه درب له لوری ورکول شوې دده لپاره روزنه او تربیه ده بل دا چې دیو ستر کار لپاره نومول (ترشیح) شوی دی معنی دا چې الله ﷻ ورسره داسې معامله لکه ځرنګه چې ازمویونکې(ممتحن) یې کوی ورسره وکړه چې په اوامرو او نواهیو یې مکلف کړ تر څو دستر امامت لپاره یې استحقاق ځرګند شي.

۲ - دمصدر راتلل داسلم فاعل پر ځای لکه په (امنا) کې دمبالغې لپاره دی او دلته اسناد مجازی دی چې هغه څوک چې پکې داخل شي په امن او بیغمه به وی لکه چې الله بل ځای فرمایي: (ومن دخله کان آمنا).

۳ - دبیت نسبت دالله ﷻ ضمیر ته پدې جمله (وطهر بیتي) کې دتعظیم لپاره راغلی دی.

۴ - پدې کلام کې چې فرمایي: (وَإِذۡ يَرۡفَعُ إِبۡرَٰهِـۧمُ) تعبیر دمضارع په صیغه شوی سره له دې چې له ماضی څخه حکایت کیږی چې داهم بیاني ښکلا ده ددې لپاره چې تیر شوی انځور دسترګو په وړاندی کښینول شي او لکه چې اوریدونکی په سرسترګو هغه حالت ګوری کوم چې ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام دکعبې تادوونه راپورته کوی (دیوالونه اوچتوی او دعا ګاني کوی) معماران حضرت خلیل او اسماعیل علیهما السلام وی، ابو السعود وایي چې دمستقبل صیغه دماضی دحکایت لپاره په دې استعمال شوی چې هغه عجیبه تصویر چې ځرګنده معجزه وه سترګوته راحاضر کاندي ([1])

۵ - (ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ) دادواړه صیغې دمبالغې دی لکه فعال او فعیل غوندی.

## ګټې او فائدې:

لومړۍ فائده: دمفعول ړومبی والی په فاعل باندی پدې کلمه کې چې (ٱبۡتَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ) کې واجب دی څکه فاعل له داسې ضمیر سره متصل دی چې هغه بیرته مفعول ته راجع کیږی نو که چیرې فاعل ړومبی راوړل شي بیا دضمیر عود متأخرته کیږی هغه چې په لفظ او رتبه کې وروسته دی.

دوهمه فائده: ځرنګه چې امتحان دیو شي دربښتونی توب او دروغجن توب معلومولو لپاره کیږی او داخو دالله ﷻ په شان کې محال دی څکه هغه تر امتحانولو پخوا لا وړباندی پوه او عالم دی خو دغه معامله یې دممتحن غوندی ورسره وکړه تر څو چې خلکو ته ځرګنده شي.

دریمه فائده: مفسرین کرام په هغو کلماتو کې چې الله ﷻ وړباندی حضرت خلیل ازمویل مختلف نظرونه لری خو تر ټولو سم یې هغه دحضرت ابن عباس ﷺ روایت شوی قول دی چې فرمایي: هغه کلمات چې الله ﷻ وړباندی حضرت ابراهیم ﷺ وازمویل او هغه پۀ ښه توګه تر سره کړل دادی چې دقوم بیلتون یې چې الله ورته امر وکړ سمدستی پر ځای کړ له نمرود سره یې دالله ﷻ په هکله دلیل ووایو، کله چې یې اورته وغورځاوو په دې یې صبر او زغم وکړ، له خپل هیواد نه یې هجرت وکړ کله چې ورته دوتلو امر وشو، او زوی یې ذبح کړ هله چې دحلالولو امر ورته وشو ([2])

---

([1]) تفسیر ابی السعود ۱۲۴/۱.
([2]) الدر المنثور ۱۱/۱.

**خلورمه فائده**: مراد له امامت نه کوم چې په آیت شریف کې راغلی د دین امامت دی چې هغه نبوت ته وايي که چېرې دنيوی امامت او سلطنت وای نو دابه د واقع سره مخالف وو ځکه ډېر ظالمان سلطنت (امامت) ته رسيدلي دي نو معلومه شوه چې دنيوی نه بلکه ديني امامت مراد دی.

**پنځمه فائده**: علامه ابن القيم وايي چې دبيت الله دفضيلت راز له دې ځخه ښيخي ښرګندی دی چې زړه راښکون لري دهغه راښکون تر مقناطيس لا زيات دی چې اوسپنه خان ته راکاږي ځکه خلک له تولي نړۍ ورته رادرومي او مينه يې نه ماتيږي هر څومره چې ډېر ورته راځي تنده يې لازياتيږي.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَمَن يَرْغَبُ عَن مِّلَّةِ إِبْرَٰهِـۧمَ إِلَّا مَن سَفِهَ نَفْسَهُۥ ۚ وَلَقَدِ ٱصْطَفَيْنَـٰهُ فِى ٱلدُّنْيَا ۖ وَإِنَّهُۥ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ لَمِنَ ٱلصَّـٰلِحِينَ ﴿١٣٠﴾ إِذْ قَالَ لَهُۥ رَبُّهُۥٓ أَسْلِمْ ۖ قَالَ أَسْلَمْتُ لِرَبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴿١٣١﴾ وَوَصَّىٰ بِهَآ إِبْرَٰهِـۧمُ بَنِيهِ وَيَعْقُوبُ يَـٰبَنِىَّ إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰ لَكُمُ ٱلدِّينَ فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿١٣٢﴾ أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ ٱلْمَوْتُ إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ مِنۢ بَعْدِى قَالُوا۟ نَعْبُدُ إِلَـٰهَكَ وَإِلَـٰهَ ءَابَآئِكَ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَـٰعِيلَ وَإِسْحَـٰقَ إِلَـٰهًا وَٰحِدًا وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴿١٣٣﴾ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۖ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ ۖ وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٣٤﴾ ﴾ البقرة: ۱۳۰ - ۱۳۴

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله ﷻ دحضرت خليل ﷺ مآثر (عزتمن سنتونه) او دهغه دکعبې جوړول بيان کړل هغه چې دتوحيد مناره ده بيا يې دهغو کسانو سخت ترټل وښودل څوک چې يهود نصارا او دحضرت ابراهيم دملت مخالف وو او په دې يې ټينګار وکړ چې که څوک له ملت ابراهيمي څخه اعراض کوي او مخ اړوي هغه بدمرغه او دسپکې رايې خاوند دی هغه دشيطان په پله پل ايږدي.

## لغتونه:

(سفه نفسه) سپک ګرزولی دي خان خپل سفه په اصل کې سپک توب ته وايي (اصطفيناه) پاک کړی وو موږ له ناپاکي څخه له (صفو) څخه راغلی (او معنايې غوره چاڼ دی مقصد ځنې په نبوت، خلت او عظمیٰ امامت باندې غوره کول دي (وصیٰ) يو چاته هسې لار ښونه کول چې پکې سم والی او ثواب وي (شهداء) حاضرين (خلت) تير شوي فناشوي دي.

## تفسير:

﴿ وَمَن يَرْغَبُ عَن مِّلَّةِ إِبْرَٰهِـۧمَ إِلَّا مَن سَفِهَ نَفْسَهُۥ ﴾ (او څوک دي چې مخ ګرځوی له دينه دابراهيم څخه؟ مګر هغه څوک چې احمق يې ګرزولی وي خپل خان) يعنی هيڅوک دابراهيم ﷺ له روښانه دين څخه مخ نه اړوی

مگر هغه چې ځان یې سپک ګرزولی وی ﴿ وَلَقَدِ ٱصْطَفَيْنَٰهُ فِى ٱلدُّنْيَا ﴾ (او په تحقیق موږ غوره کړی وو دی (ابراهیم) په دنیا کی په نبوت ، خلت او امامت باندی ﴿ وَإِنَّهُۥ فِى ٱلْءَاخِرَةِ لَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ او بیشکه دی دی په آخرت کی له (خاصو) نیکانو څخه چې په لوړو درجاتو او پوړونو کی به وی ﴿ إِذْ قَالَ لَهُۥ رَبُّهُۥٓ أَسْلِمْ ﴾ (کله چې وویل ابراهیم ته رب دده چې غاړه کښیږده !) زما احکاموته او ځان ورته ځانګړی کړه ﴿ قَالَ أَسْلَمْتُ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ (ویې ویل غاړه می ایښې ده رب دعالمیانوته) ﴿ وَوَصَّىٰ بِهَآ إِبْرَٰهِـۧمُ بَنِيهِ وَيَعْقُوبُ ﴾ او وصیت کړی وو په دین خپل سره ابراهیم زامنو ته او یعقوب هم) چې دابراهیمي ملت اتباع به کوی ﴿ يَٰبَنِىَّ إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰ لَكُمُ ٱلدِّينَ ﴾ اې زامنو الله ﷻ بیشکه غوره کړی دی تاسی ته دین (داسلام) ﴿ فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴾ نو له سره مه مری مګر دا چې مسلمانان یاست ) یعنی په اسلام تر هغو منګولی ولګوی ثابت اوسی کله چې مو مرګ راورسیږي ! ﴿ أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ ٱلْمَوْتُ ﴾ ایا وۍ تاسی حاضران هغه وخت چې راغی یعقوب ته مرګ ؟) یعنی کله چې یې دځنکندن وخت وو او زامنو ته یې دابراهیمی دین دمتابعت مارییته کوله ﴿ إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ مِنۢ بَعْدِى ﴾ کله چې یې زامنو ته وویل چې دڅه شي عبادت به کوی تاسي پس زما له مرګه ؟ ﴿ قَالُوا۟ نَعْبُدُ إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ ءَابَآئِكَ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا ﴾ (نو وویل دوی چې عبادت به کوو دمعبودستا او ستا دپلرونو چې ابراهیم اسماعیل او اسحاق دی هغه الله چې یو دی ) رب العلمین دی ستا دپلرونو او نیکونو معبود دی ﴿ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴾ (او موږ ټول هغه ته غاړه ایښودونکی یو ) غرض پکښی له شرک څخه بیزاری (براءة) دی الله تعالی دغي سپیڅلی ذوذات ته په اشاره داسي فرمايي: ﴿ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ﴾ دغه یوه ټولی وه چې په تحقیق تیر شوی دی اشاره حضرت ابراهیم او دهغه زامنوته ده ﴿ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ ﴾ هغوی ته ده (جزا ) دهغه څه چې یې کړی دی او تاسی ته ده (جزا ) چې کړی دی تاسي ﴿ وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ او نه به پوښتل کیږی له هغه څه چې دوی به کول ، یعنی په قیامت دهغوی له کړنو څخه تاسي نه پوښتیدل کیږی بلکه هر څوک به دخپل عمل ثواب او سزا ګوري.

بلاغت:

۱ - (وَمَن يَرْغَبُ) پدغه استفهام کی انکار او ترټنه ده او دنفی معنی پکي نغښتې یعنی مخ نه اړوی مګر هغه چې احمق وی او دا جمله دکافرانو دترټنی او توبیخ لپاره ده.

۲ - په دې کلام کی چې فرمايي: (وَإِنَّهُۥ فِى ٱلْءَاخِرَةِ لَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ) تاکید په ان او لام دواړو راغلی څکه دا دآخرت په هکله دی او هغه چې له سترګو الونیا ده څکه تاکید ته ضرورت لری هسي نه ده لکه ددنیا حال چې دلیدلو وړ او معلوم دی.

۳ - (إِذْ قَالَ لَهُۥ رَبُّهُۥٓ أَسْلِمْ) پدې کې التفات دی ځکه دکلام سیاق خو داسي ایجابول چې ویل شوی وایي (اذقلنا) او التفات هم دبیان دعلم له ښکلاوو څخه ګڼل کیږي او د (ربه) په کلمه کې زیات لطف او اعتناء څرګندیږي لکه چې خواب حضرت ابراهیم ﷺ هم داسي ورکوی چې (أَسْلَمْتُ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ) او داسي نه وایي چې (اسلمت لک) څو دده داسلام قوت او بشپړتوب ښکاره شي او دا چې الله دټول عالم رب دی نوښایي چې په بشپړه خضوع او عاجزی یې حکم ومنل شي.

۴ - (ءَابَآئِكَ) پدې کلمه کې تره ، پلار ، نیکه ټول ګډدی نیکه ابراهیم دی تره او کاکا اسماعیل او پلار اسحاق دی او دغه ته تغلیب وایي چې له مجازاتو ګڼل کیږي.

## فائده او ګټه:

ابوحیان وایي چې مرګ یې له ځنګندن څخه کنایه راوړ ځکه مړی خو هیڅ هم نشي ویلای او بل دا چې مرګ غائب دی حضورته اړتیا شته لکه چې په دعا کې ویل کیږي (اجعل الموت خیر غائب ننتظره) ([1])

## تنبیه:

دالله تعالی له ظاهری قول څخه چې فرمایي: (فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ) دامعلومیږي چې مه مرئ مګر په اسلام کې مقصد یې دادی چې تاسي په اسلام ثابت واوسئ او هیڅکله اسلام مه پریږدئ چې څو پوری تاسي ته مرګ رسیږي او تاسي په اسلام کې یاست لکه چې یو چاته ووایي لمونځ مه کوه مګر په عاجزی او خشوع باندی یې کوه.

## الله تعالی فرمایي:

﴿ وَقَالُوا۟ كُونُوا۟ هُودًا أَوْ نَصَٰرَىٰ تَهْتَدُوا۟ ۗ قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرَٰهِـۧمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿١٣٥﴾ قُولُوٓا۟ ءَامَنَّا
بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَآ أُنزِلَ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ وَٱلْأَسْبَاطِ وَمَآ أُوتِىَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَمَآ أُوتِىَ
ٱلنَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴿١٣٦﴾ فَإِنْ ءَامَنُوا۟ بِمِثْلِ مَآ ءَامَنتُم بِهِۦ فَقَدِ ٱهْتَدَوا۟ ۖ وَّإِن
تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّمَا هُمْ فِى شِقَاقٍ ۖ فَسَيَكْفِيكَهُمُ ٱللَّهُ ۚ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿١٣٧﴾ صِبْغَةَ ٱللَّهِ ۖ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ صِبْغَةً ۖ
وَنَحْنُ لَهُۥ عَٰبِدُونَ ﴿١٣٨﴾ قُلْ أَتُحَآجُّونَنَا فِى ٱللَّهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ وَلَنَآ أَعْمَٰلُنَا وَلَكُمْ أَعْمَٰلُكُمْ وَنَحْنُ لَهُۥ مُخْلِصُونَ
﴿١٣٩﴾ أَمْ تَقُولُونَ إِنَّ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ وَٱلْأَسْبَاطَ كَانُوا۟ هُودًا أَوْ نَصَٰرَىٰ ۗ قُلْ ءَأَنتُمْ أَعْلَمُ

(۱) البحر المحیط ۱/۴۰۷.

أَمِ اللَّهُ ۗ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَتَمَ شَهَـٰدَةً عِندَهُۥ مِنَ اللَّهِ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَـٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿۱۴۰﴾ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۖ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ ۖ وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿۱۴۱﴾ ﴾ البقرة: ۱۳۵ - ۱۴۱

## مناسبت او تړاو:

هلته چې الله ﷻ وفرمايل چې ابراهيمي ملت حنيفية او پاک دی څوک چې يې پيروی نکوی هغه دجهالت په کندوکی غورځيدلی او حماقت يې په برخه شوی دی بيا يې نو داهل کتابو باطلي دعوا ګاني يادي کړې هغه چې دوی ګومان کاوو هدايت په يهودانو او نصرانيانو کی شته وروسته يې داڅرګنده کړه چې دغه باطلی (دعواګانی) دکوم دليل او شبهې له مخې نه بلکه له انکار او عناد څخه سر چينې اخلی په پای کی الله ﷻ داوښودله چې حق دين په اسلام منګولی خښول دی هغه چې دين دټولو انبياوو پيغمبرانو عليهم السلام دی.

## لغتونه:

(حنيفا) له باطل دين څخه حق ته مائل حنيف بولی او ځکه احنف ته هم وويل شو چې يوه پښه يې کږه وه (الاسباط) دسبط جمع او لمسيانو ته ويل کيږی چې ديعقوب ﷺ دزامنو او لادې چې دوولس سبطه کيږی او دا په بني اسرائيلو کی لکه قبيلې دعربو غوندی دی (شقاق) مخالفت او دښمنی ته ويل کيږی له شق څخه اخستل شوی او داختلاف په وخت کی هم يو په يو شق کې او بل په بل کی وی (فسيكفيكهم) له كفايت څخه دی او ژغورنې ته وايه شي (صبغة الله) له صبغ څخه رايستل شوی او هغه تغير ديو شی ته وايي په يو رنګ له رنګونو څخه وی او مراد دلته دين دی (اتحاجوننا) له محاجات څخه دی او مجادلې جګړې ته وايي (مخلصون) اخلاص هغه څه ته وايي چې په يو کار کی يوازی دالله ﷻ خوښی او رضا مقصد او يوازی دهغه ذات لپاره يې تر سره کوي.

## تفسير:

﴿ وَقَالُوا۟ كُونُوا۟ هُودًا أَوْ نَصَـٰرَىٰ تَهْتَدُوا۟ ۗ ﴾ او وايي دوی (مسلمانانو ته) چې يهودان يا نصرانيان شی چې سمه لاره ومومی) يعنی يهودان يې يهوديت ته رابولی چې زموږ په مذهب يهودان شی او نصارا بيا وايي چې نصرانيان شی سمه لاره به پيدا کړی هر څوک يې خپل کاږه مذهب ته رابولی ﴿ قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرَٰهِـۧمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾ ورته ووايه (اې محمده) موږ داسي نه کوو) بلکه (متابعت کوو) دابراهيمي دين چې حق ته مائل وواو نه وو هغه له مشرکانو څخه) بلکه موحد مؤمن وو او پدې کی کتابيانو ته تعريض دی چې دوی ګواکی په شرک اوګمراهی کی اوسي ﴿ قُولُوٓا۟ ءَامَنَّا بِاللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا ﴾ ووايا ست موږ ايمان راوړی په الله ﷻ او هغه کتاب (قرآن) چې نازل شوی دی موږ ته ﴿ وَمَآ أُنزِلَ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَـٰعِيلَ وَإِسْحَـٰقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ ﴾ او په هغو (لسو صحيفو) چې نازل کړل شوې دی ابراهيم ته او اسماعيل او اسحاق او يعقوب او اولادې (ددوی ته) کوم چې نبوت په دوی کی وو ﴿ وَمَآ أُوتِىَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ ﴾ او په هغو چې ورکړی شوی وو موسی ته (تورات) او هغو چې ورکړل شوی دی عيسی ته (انجيل) ﴿ وَمَآ أُوتِىَ النَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ ﴾ او په هغو (کتابونو) چې ورکړل شوی نورو نبيانو ته له (جانبه) دربه ددوی نه موږ په دې ټولو باور لرو کوم چې دالله له لوری ښکاره آيتونه او څرګندی

معجزې دي ﴿ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ ﴾ (نه كوو فرق په منځ ديو ددوى كى) هسې نه كوو لكه يهود او نصارا چې په يو چا ايمان راوړو په بل چا كافران كيږو ﴿ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴾ او موږ الله ته غاړه ايښودونكي يو ﴿ فَإِنْ ءَامَنُوا۟ بِمِثْلِ مَآ ءَامَنتُم بِهِۦ فَقَدِ ٱهْتَدَوا۟ ﴾ (نو كه ايمان راووړ دوى لكه چې تاسى ايمان راوړى په هغه نو په تحقيق بې ومونده سمه لاره) حق ته ورسيدل لكه چې تاسى رسيدلى ياست ﴿ وَّإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّمَا هُمْ فِى شِقَاقٍ ﴾ او كه بې مخ وګرزاوو (له ايمانه) پس بيشكه هم دا خبره دي چې دوى له تاسره په مخالفت كى دي دوى ستا دښمني او خلاف كوى دحق غوښتونكى نه دي ﴿ فَسَيَكْفِيكَهُمُ ٱللَّهُ ﴾ نو ژر ده چې كافي به شي په (دفع دشر) ددوى كى تالره الله او تا به ددوى له شر او ضرر څخه وژغورى ﴿ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ او هغه ده ښه اوريدونكى (دخبرو) او ښه پوهيدونكى (په احوالو) دوى چې څه وايي الله ﷻ بې اورى او چې څه په سينو كي پټ ساتي الله ﷻ ورباندى ښه پوهيږي ﴿ صِبْغَةَ ٱللَّهِ ۖ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ صِبْغَةً ﴾ (او وايي اى مؤمنانو چې موږ الله رنګ كړى يو) په رنګ دالله ﷻ او څوک ښه دي له جهته د رنګه له الله څخه) يعنى موږ دالله ددين په رنګ پيدا شوى او رنګ شوى يو داسي بې اثر په موږ كي څرګند دي لكه چې درنګ اثر په جامه كى څرګند وى ﴿ وَنَحْنُ لَهُۥ عَٰبِدُونَ ﴾ (او موږ خاص ده لره عبادت كوونكى يو) نه بل چا لره ﴿ قُلْ أَتُحَآجُّونَنَا فِى ٱللَّهِ ﴾ ووايه (اې محمده) دوى ته ايا جګړه كوى تاسي له موږ سره په دين دالله ﷻ كى تاسي ګومان كوئ چې دالله زامن او دوستان ياست انبياء يو ازى ستاسى له ډلى څخه دى ﴿ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ﴾ حال دا چې هغه دى رب زموږ او رب ستاسي دټولو برابر پروردګار دى او موږ بې ټول بندګان يو ﴿ وَلَنَآ أَعْمَٰلُنَا وَلَكُمْ أَعْمَٰلُكُمْ ﴾ او موږ لره دى عملونه زموږ تاسي لره دى عملونه ستاسي) زموږ داعمالو جزا زموږ او ستاسو داعمالو ستاسى ده يو دبل په ګناه نه نيول كيږو ﴿ وَنَحْنُ لَهُۥ مُخْلِصُونَ ﴾ او موږ خاص الله لره په اخلاص (عبادت كوونكى يو) زموږ دين او عمل خاص دالله لپاره دى ﴿ أَمْ تَقُولُونَ إِنَّ إِبْرَٰهِۦمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ وَٱلْأَسْبَاطَ كَانُوا۟ هُودًا أَوْ نَصَٰرَىٰ ﴾ (ايا وايي تاسي (اې كتابيانو) چې ابراهيم ، اسماعيل ، اسحاق ، يعقوب او اولاد ددوى يهوديان او نصرانيان وو؟) ﴿ قُلْ ءَأَنتُمْ أَعْلَمُ أَمِ ٱللَّهُ ﴾ ووايه (اې محمده) ايا تاسي ښه پوهيږي كه الله ؟ يعنى ايا تاسي دهغوى په ديانت ښه خبر ياست كه الله ﷻ هغه چې ددوى لپاره په اسلامي ملت ګواهي ويلى او له يهوديت او نصرانيت څخه بې بيزاره ښودلى دى فرمايي : (ماكان ابراهيم يهوديا ولا نصرانيا ولكن كان حنيفا مسلما ) نو څرنګه ګومان كوى چې هغوى ستاسى په دين وو ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَتَمَ شَهَٰدَةً عِندَهُۥ مِنَ ٱللَّهِ ﴾ (او څوک دى زيات ظالم له هغه چا چې پټوى (له خلكو) شاهدى په نزد ده له طرفه دالله ) يعنى تر هغه چا بل پورته ظالم نشته چې دتورات او انجيل هغه بشارتونه (زيرى) چې درسول الله ﷺ دراتلو په هكله وو او تر هغه چا بل ستر ظالم نشته چې دالله خبرى پټوى چې هغه فرمايي انبياء عليهم السلام داسلام په دين وو ﴿ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ او نه دى الله بې خبر له هغه څه چې تاسي بې كوى ) بلكه الله ستاسى په كړو وړو عالم او پوه دى او په هغه جزا دركوى او په دې كى

سخت وعيد نغښتى دى ﴿ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ دا آيت شريف يې مكرر ددې لپاره راوړ چې دتهديد او وويرولو معنى پکې دى يعنى که چېرى دغه انبياء عليهم السلام سره له خپل لوړ قدر او منزلت په خپلو عملو نو ورته جزا ورکول کيږى نو تاسى ته خامخا دركول کيږى ددې آيت تفسير پخو اتير شوى دراګرزولو اړتيا يې نشته.

## بلاغت:

۱ - پدې کلام کى چې فرمايي: (وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ) ايجاز بالحذف دى يعنى داسي لندون دى چې څه کلماتى يې حذف شوى په اصل کى داسي دى چې (وقال اليهود كونوا يهودا وقال النصارى كونوا نصارى) هسي نه دى چې دواړو ډلو دايوه خبره کوله ځکه ددوى هره يوه ډله دبلى دين باطل ګڼى.

۲ - پدې کلمه چې فرمايي: (فَسَيَكْفِيكَهُمُ ٱللَّهُ) څرګند ايجاز دى يعنى اصل يې دادى چې (ژرده الله به کافي (او ژغورونکى) شي تاله ددوى له شر څخه) او چې د(سوف) کلمى پرځاى د(سين) تورى راغي نو ګواکى دغه بريااليتوب يې هم په ډيره نژدې زمانه کى ده.

۳ - (ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ) دادواړه دمبالغې صيغې دى معنايې داده چې سمع او علم يې په تولو شيانو راګرزيدلى او محيط دى.

۴ - دين ته صبغة او رنګ وويل شو لکه په (صِبْغَةَ ٱللَّهِ) کى ځکه چې ددين ښه او رنګ هم په سرى څرګندوى لکه چې رنګ په خپله جامه څرګند او ښکاره وى(۱) او پدې کي استعاره راغلې ده.

۵ - پدې جمله کى چې فرمايي: (قُلْ أَتُحَآجُّونَنَا فِى ٱللَّهِ) استفهام دتوبيخ او ترټني لپاره واقع شوى دى.

## فوائد او ګټي:

لومړى فائده: څرنګه چې دا آيت شريف چې فرمايي: (وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ) څو ځايه په قرآن کريم کى په تکراري ډول راغلى دى ابوحيان وايي چې دابل وخت نه راځى مګر کله چې ديو ګناه او معصيت ارتکاب وشي نو بيا هغه دوعيد متضمن وى او ګواکى ددې څرګندونه کوى چې الله ﷻ به دوى هسي خوشي نه پريږدى(۲).

دوهمه فائده: ابن عباس رضي الله عنهما وايي کله چې به دنصاراوو ماشوم وزيږيدو نو به داوو شپو شو په هغو اوبو کي به يې ولمباوو چې دوى به ورته (معمودي) ويلې ترڅو پاک سپيڅلى شي او ويل به يې چې دا د(ختان) پرځاى پاکوالى دى چې داسي به يې وکړل بيا به نو حقاني نصرانى جوړ شو بيا الله ﷻ دا آيت رانازل کړى(۳)

---

(۱) تلخيص البيان.
(۲) البحر المحيط ۴۱۲/۱.
(۳) اسباب النزول للواحدى ص ۲۲.

دریمه فائده: اهل کتابو به تورات په عبرانی لوستل او مسلمانانو ته به یې په عربی ژباړل نو رسول الله ﷺ داسي وفرمایل: (لاتصدقوا اهل الکتاب ولا تکذبوهم وقولوا امنا بالله وما انزل الینا. (رواه البخاری).

داهل کتابو تصدیق مه کوئ او مه یې هم تکذیب کوئ او داسي وایاست چې موږ ایمان راوړی په الله او په هغه څه چې موږ ته یې نازل کړي دي (دبخاری روایت).

## الله تعالی فرمایي:

﴿ سَيَقُولُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلَّاهُمْ عَن قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا ۚ قُل لِّلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿١٤٢﴾ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا ۗ وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يَتَّبِعُ الرَّسُولَ مِمَّن يَنقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ ۚ وَإِن كَانَتْ لَكَبِيرَةً إِلَّا عَلَى الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ ۗ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١٤٣﴾ قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ ۖ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا ۚ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ۗ وَإِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴿١٤٤﴾ ﴾ البقرة: ١٤٢ - ١٤٤

## مناسبت او تړاو:

یهودو او نصاراوو داسي ګومان کاوو چي حضرت ابراهیم او نور انبیاء ورسره ټول یهودان او نصرانیان وو او دټولو نبیانو قبله بیت المقدس وه کله چي رسول الله ﷺ په مکه کي وو هم به یې بیت المقدس ته لمونځ ګوذارل خو هغه وخت چي الله تعالی دکعبې په لور دلمونځ کولو ورته امر وفرمایو نو یهودانو ته دده په دین باندي دتورونو لګولو موقع په لاس ورغله او ویل به یې چي محمد دخپل زیږنتون (مولد) تاتوبی ته تږی دی نږدې دی چي دخپل قوم دین غوره کړي نو الله ﷻ رسول الله ﷺ ته ددوی ددغو خبرو اخبارو وفرمایل چي ژر ده ناپوهان به داسي ووایي (رسول الله ﷺ) ته یې ددوی دځواب دلیل وروښود او همدارنګه ددوی له لوری دستونزو او تکلیفونو دنابیره راپیدا کیدلو لپاره یې چمتوکړ، دغه اخبارکوم چي دکعبې شریفي لورته دقبلې راګرزیدلو پخوا واقع شو نو درسول الله ﷺ معجزه ګڼل کیږي.

## لغتونه:

(السفهاء) دسفیه جمع ده او ناپوه، دسپکي رایی خاوند او هغه چاته وایي چي خپلی ګټې او تا وانونه ښه نه پیژني د (سفه) اصل سپکتیا او نرم والی ته ویل کیږی لکه (ثوب سفیه) چي نری او سپکه او بدل شوی وی (ولاهم) وګرزول دوی (تولی) اعراض اوګرزیدلو مخ اړولو ته وایي (وسطا) طبري وایي: وسط دعربو په

محاوراتوکي غوره ته وايي او چا بيا ويلي چي عدل او ميانه ته وايي (۱) څکه ويل کيږي چي (خير الاشياء اوساطها) يعنی غوره دشيانو څخه وسط ددوی ده هغه چي نه پکي غلو او نه هم تقصير دی څکه له اندازې زيات غلو او تر اندازې لږ تقصير دواړه چتي او بيکاره دی (عقبيه) دعقب تثنيه ده او پوندو ته وايي (شطر) په لغت کي دطرف، لوري او پلو په معنی ده

## دنزول سبب:

براء رضي الله عنه وايي کله چې رسول الله ﷺ مديني منورې ته تشريف راووړ نو شپاړس يا اولس مياشتي يې دبيت المقدس لوری ته لمنځونه وکوزارل اود رسول الله ﷺ دا خوښه وه چي کعبې شريفې ته لمونځ وکړی نو الله ﷻ دا آيتونه نازل کړل (قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي ٱلسَّمَآءِ) او بيا نا پوهانو خلکو وويل چي هغوی يهودان وو (مَا وَلَّىٰهُمْ عَن قِبْلَتِهِمُ ٱلَّتِى كَانُوا۟ عَلَيْهَا) الله تعالی يې په خواب کی وفرمايل: (قُل لِّلَّهِ ٱلْمَشْرِقُ وَٱلْمَغْرِبُ) (۲) (اخرجه البخاری)

## تفسير:

﴿ سَيَقُولُ ٱلسُّفَهَآءُ مِنَ ٱلنَّاسِ ﴾ (ژر ده چي وبه وايي ناپوهان له خلکو) چي کمزوري عقلونه لري ﴿ مَا وَلَّىٰهُمْ عَن قِبْلَتِهِمُ ٱلَّتِى كَانُوا۟ عَلَيْهَا ﴾ (څه شي وګرزول دوی له قبلې ددوی څخه هغي قبلې نه چي وو دوی په هغي باندی) يعني څه شي له بيت المقدس څخه راوګرزول هغه چي دوی به ورته لمنځونه کول اودپخوانو انبياوو قبله وه؟

﴿ قُل لِّلَّهِ ٱلْمَشْرِقُ وَٱلْمَغْرِبُ ﴾ (ورته ووايه (اې محمده) الله لره دی ختيز او لويديز) تول لوری دالله لپاره دی هر چيرته چي مخ وګرزوو هلته دالله ﷻ ذات دی ﴿ يَهْدِى مَن يَشَآءُ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ هدايت کوی هغه چاته چي اراده (دهدايت) وکړی (لوری) دلارې سمې ته يعنی لار ښوونه کوی خپلو مؤمنو بندګانو ته سمي لارې هغوی ددواړو جهانونو نيکمرغي ته رسيږی ﴿ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَٰكُمْ أُمَّةً وَسَطًا ﴾ او همداسي موګرزولي يې تاسی يو غوره ډله) يعنی لکه څرنګه چي مو داسلام لوری ته درته هدايت کړی همغسي مو يوه غوره ډله ګرزولې ياست خطاب مؤمنانوته دی ﴿ لِّتَكُونُوا۟ شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِ وَيَكُونَ ٱلرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا ﴾ (دپاره ددې چي شی شاهدان په خلکو دقيامت په ورځ دانبياوو لخوا) چي رسولانو خپله دنده سرته رسولې او خلکوته يې لارښوونه کړې ده) او شي (محمد ﷺ) رسول پرتاسي شاهد چي هغه تاسو ته ابلاغ کړی دی ﴿ وَمَا جَعَلْنَا ٱلْقِبْلَةَ ٱلَّتِى كُنتَ عَلَيْهَآ ﴾ (او نه دی ګرزولی موږ دا قبله هغه چي وی ته په هغې باندی (تر هجرت دمخه) يعنی موږ تاته امر نه دی

---

(۱) مختصر الطبری ۱/۵۵.

(۲) اسباب النزول للواحدي ص۲۳.

کړي د مخامخ کيدلو بيت المقدس ته بيا وروسته موراګرزولي بې کعبې ته ﴿ إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يَتَّبِعُ ٱلرَّسُولَ مِمَّن يَنقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ ﴾ مګر لپاره ددې چي موږ معلوم کړو هغه څوک چي پيروی د رسول کوی له هغو چانه چي بيرته ګرزی په پوندو خپلو (کفرته) يعنی چي موږ د خلکو ايمان وازمويو چي څوک د پيغمبر تصديق کوي او څوک په دين کی شک پيدا کوی او د خپل کمزوری باور له امله بيرته کفر ته ګرزي ﴿ وَإِن كَانَتْ لَكَبِيرَةً إِلَّا عَلَى ٱلَّذِينَ هَدَى ٱللَّهُ ﴾ که څه هم وی دغه ګرزيدل خامخا سخت دروند مګر نه دی دروند په هغو کسانو چي الله ورته سمه لاره ښودلی ده ﴿ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَٰنَكُمْ ﴾ او نه دی الله ﷻ چي ضائع کړی ايمان (لمونځ) ستاسي يعنی کوم لمونځونه چي تاسو بيت المقدس ته کړی په هغو به هم الله ﷻ ثواب درکړی دا په هغه وخت کی نازل شوی چي اصحابانو ﷺ کله له رسول الله ﷺ څخه د هغو کسانو په هکله پوښتنه وکړه چي بيت المقدس ته يې لمنځونه کړی او مړه شوی وو پخوا تر دې چي د قبلې راګرزيدلو حکم صادر شي او الله وفرمايل : ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِٱلنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ بيشکه الله په خلکو مؤمنانو باندی ارو مرو ډير مهربان پوره رحم کونکی دی ، دالکه چي د پورتنی حکم لپاره علت دی يعنی الله ﷻ پخپلو بندګانو دستر رحمت خاوند دی د هغوی نيک عملونه نه ضايع کوی چي پخوابې کړی دی ﴿ قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِى ٱلسَّمَآءِ ﴾ په تحقيق سره وينو موږ (بيا بيا ) ګرزول د مخ ستا په د طرف د آسمان ) يعنی ډير څله ستا دسترګو غړول د آسمان لوری ته موږ ليدل چي ستا شوق وقبلې ته د ګرزيدلو وو ﴿ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَىٰهَا ﴾ نو موږ به هرو مرو وګرزوو تا هغې قبلې ته چي ته يې خوښوې ) هغه چي ستا د پلار قبله او کعبه شريفه ده ﴿ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ ﴾ نو وګرزوه مخ ستا طرف د مسجد حرام ته يعنی په لمانځه کی د کعبې معظمې لورته مخامخ شه ﴿ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا۟ وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُۥ ﴾ او په هر ځای کی چي اوسې نو وګرزوی مخونه خپل (په لمانځه کی) په لوری د هغې (کعبې) دارنګه ﴿ وَإِنَّ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ﴾ او بيشکه هغه کسان چي دوی ته ورکړی شوی دی کتاب خامخا دوی پوهيږی چي بيشکه دا (استقبال حق دی له لوری درب ددوی ) يعنی يهود او نصارا پوهيږي چي دغه راګرزيدل حق دی داالله له طرفه خو دوی خلک په فتنه او شبه کی اچوي ﴿ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴾ او نه دی الله غافل له هغو کارونو څخه چي دوی يې کوی ) الله به ورباندی جزا ورکړی په دې کی ددوی لپاره وعيد او تهديد دی.

**بلاغت:**

۱ - پدې قول کی چي الله ﷻ فرمايي (يَنقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ) تمثيلی استعاره ده ځکه هغه څوک چي له دين څخه وګرزی د هغه په مثال دی لکه چي په پوندو وګرزی دا د امام فخررازی رحمه الله قول دی.

۲ - دا چي الله ﷻ فرمايي (لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ) رأفت د رحمت شدت ته وايی او ابلغ يې چي رؤف دی ځکه مخکی ذکر کړ چي د فواصلو مراعات وشي لکه (صراط مستقيم) (لرؤف رحيم) هر دواړه د مبالغې صيغې دی.

۳ - (فَوَلِّ وَجْهَكَ) پدې کلام کی مرسل مجاز دی او هغه دا چي جزء ذکر شی او مراد ځنی کل وی دلته هم وجه ذکر شوې او مراد ځنی ذات دی ذکر د جزء او مراد ځنی کل شو لکه چي بل ځای الله ﷻ فرمايي: (ويبقى وجه ربک).

## فوائد او ګټې:

لومړی فائده: په بخاري شريف کی روايت شوی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (يدعى نوح ﷺ يوم القيامة فيقول لبيک وسعديک يارب فيقول: هل بلغت؟ فيقول نعم، فيقال لامته هل بلغکم؟ فيقولون: ما جاءنا من نذير فيقول من يشهد لک؟ فيقول محمد وامته فيشهدون انه قد بلغ فذلک قوله عز وجل: (لِتَكُونُوا شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِ وَيَكُونَ ٱلرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا) . يعنی الله تعالی به نوح عليه السلام دقيامت په ورځ راوبولی هغه به يې بلنی ته لبيک ووايي الله به تری وپوښتي ايا تا دين خپل امت ته ابلاغ کړی؟ هغه به وايي هو! امت به يې منکرشی نو الله به شاهدان تری وغواړی نوح عليه السلام به وايي زما شاهدان محمد اودهغه امت دی نو هغوی به شاهدی ووايي چي هو دين يې رسولی دی.

دوهمه فائده: الله ﷻ لمانځه ته ايمان وواييوچي (وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَـٰنَكُمْ) ځکه ايمان پرته له لمانځه نه بشپړ کيږي او داهم په نيت قول او عمل مشتمل دی.

دريمه فائده: له کعبې ځخه په مسجد حرام تعبير کول ددې معنی لری چي دلوری او طرف مراعات کول واجب دی ځکه دسترګو ددید رسيدل خو محال او دخلکو لپاره دزيات مشکل سبب ګرزي.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَئِنْ أَتَيْتَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَـٰبَ بِكُلِّ ءَايَةٍ مَّا تَبِعُوا۟ قِبْلَتَكَ ۚ وَمَآ أَنتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ۚ وَمَا بَعْضُهُم بِتَابِعٍ قِبْلَةَ
بَعْضٍ ۚ وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم مِّنۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ ۙ إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿١٤٥﴾ ٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَـٰهُمُ
ٱلْكِتَـٰبَ يَعْرِفُونَهُۥ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَآءَهُمْ ۖ وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُونَ ٱلْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿١٤٦﴾ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۖ فَلَا تَكُونَنَّ
مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴿١٤٧﴾ وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا ۖ فَٱسْتَبِقُوا۟ ٱلْخَيْرَٰتِ ۚ أَيْنَ مَا تَكُونُوا۟ يَأْتِ بِكُمُ ٱللَّهُ جَمِيعًا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ
شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٤٨﴾ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ ۖ وَإِنَّهُۥ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ وَمَا ٱللَّهُ بِغَـٰفِلٍ عَمَّا
تَعْمَلُونَ ﴿١٤٩﴾ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا۟ وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُۥ لِئَلَّا
يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ إِلَّا ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَٱخْشَوْنِى وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِى عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ
﴿١٥٠﴾ ﴾ البقرة: ۱۴۵ - ۱۵۰

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چي الله ديهودو دناپوهانو هغه خبری چي دقبلې دراګرزيدلو په هکله به يې کولې ذکر کړې او دا چي رسول الله ته يې دکعبې په لور دمخ راګرزولو امر وکړ نو پدې راوروسته آيتونو کی بيا رسول الله ﷺ ته داګ ګيرنه ورکوی چي ديهودو عناد، مکابره او سرغړونه خپل وروستي سرحد ته رسيدلې هغوی ستا قبله ددې لپاره نه دی پری ايښي چي دليل او حجت ته اړدی بلکه له سره دوی د مخالفت او عناد له امله همداسي کوي!.

لغتونه:

(آیة) حجت ، دلیل او علامه (اهوائهم) دهوئ جمع چي دنفس ميلان او خواهش ته وايي (الممترين) له امترا څخه اخيستل شوی او شک ته وايي (نو ممترين دشكمنو په معنٰی شو ) او (مرية) هم له دغه مادې څخه دی چي الله فرمايي ؛ (ولايزال الذين كفروا فى مرية منه) يعنى تل به كافران له دې څخه په شک کې وی (وِجهة) او (وُجهة) دواړه په فتحه او کسره سره په يوه معنا دی او مراد څنى قبله ده (هو موليها ) فراء وايي چي معنا يې ده مخامخ كيدونكى هغې ته (استبقوا ) تلواره وكړئ (الخيرات) نيكيو او ښو عملونو ته چي دخير جمع ده (تخشوهم) ويريږئ له دوی نه خشيت او خوف دواړه يو دی.

تفسير:

﴿ وَلَئِنْ أَتَيْتَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَـٰبَ بِكُلِّ ءَايَةٍ مَّا تَبِعُوا۟ قِبْلَتَكَ ﴾ او قسم دی خامخا که ته راوړې هغو کسانو ته چي ورکړل شوی دی دوی ته کتاب په هر قسم دليل سره نه به شي تابع دوی ستاد (قبلی) که هر ډول معجزې ورته وښيې چي ستا تصديق کوی چي ته دقبلې دراګرزيدلو په باب په حق يې دوی به ستا متابعت ونکړی او نه به هم ستا قبلې ته لمونځ وګذاری ﴿ وَمَآ أَنتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ﴾ اونه يې ته (اې محمده)تابع کيدونکی ددوی دقبلې وروسته له دې چي الله ﷻ درته دراګرزيدلو امر وفرمايه او دا ددوی دطمع شکيدلو لپاره دی دوی خو درسول الله ﷺ دمتابعت هسي خوشي هيله لرله ويل يې که چيری زموږ په قبله راسره ثابت واوسي نو موږ هيله کوو چي دا به هغه موعود نبي وی دابه يې درسول الله دخطاايستلو لپاره ويل ﴿ وَمَا بَعْضُهُم بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ ﴾ او نه دی څيني ددوی تابع کيدونکی دقبلې دځينو نورو ) څکه نصارا ديهودو دقبلې متابعت نه کوی لکه چي يهود دنصرانيانو دقبلې نه کوی څکه ددوی په منځ کی دښمني او مخالفت دی که څه هم چي ټول له بني اسرائيلو څخه دی ﴿ وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم مِّنۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ ﴾ او هرو مرو که (بالفرض) تابع شي ته ددوی دآرزوګانو وروسته له هغه چي راغی تاته له علمه (چي وحی دی) ﴿ إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ (بيشکه ته په دغه وخت کی يې له ظالمانو څنی ) داخبره دفرض او تقدير په ډول ده او که هسي نه وی نو له رسول الله ﷺ څخه خو دداسي شنيع امر تر سره کيدل بيخی ممکن نه دی چي دکافرانو مجرمينو دخوښي متابعت وکړی او دا دحق په لاری باندی دلازيات ثبات او ټينګښت لپاره هڅونه ده. ﴿ ٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَـٰهُمُ ٱلْكِتَـٰبَ ﴾ (هغه کسان چي موږ کتاب ورکړی دی) يعنی يهود او نصاری ﴿ يَعْرِفُونَهُۥ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَآءَهُمْ ﴾ دوی هغه پيژني (محمد ) لکه چي پيژني زامن ددوی په يقيني علم سره ﴿ وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُونَ ٱلْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ او په تحقيق چي يوه ډله له دوی څنی خامخا پټوي حق (دنبوت دمحمد ﷺ ) حال دا چي دوی پوهيږی ) او دادا اهل کتابو رئيسان او احبار دی چي حق نه څرګندوی او دنبي صفت پټوي هغه چي دوی ته په خورا او خار او ښکاره ډول څرګند دی ﴿ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴾ (حق ثابت دی له (جانبه د ) رب ستا نو مه کيږه ته خامخا له شک کوونکو څخه) يعنی هغه څه چي تاته الله وحی کړی دقبلې دراګرزيدلو او دين په هکله هغه حق دی خطاب رسول الله ته دی او مراد يې

امت دی ﴿ وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا ﴾ او هر یوه امت لره یوه قبله ده چي مخ گرځونکی دی هغې ته ﴿ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ ﴾ تو تلواره کوئ اې مؤمنانو دنیکیو کړو (افعالو) ته ﴿ أَيْنَ مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا ﴾ هر چیری ته چي یاست تاسي رابه ولی الله تاسي ټول په قیامت کی ، یعنی که دمځکی په تل کی یاست او که داوچتو غرونو په څوکو کی الله ﷻ به مو دحساب دتصفیې لپاره راولی او بیا به دحق څښتنان او دباطل پلویان سره بیل کړی ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ بیشکه الله په هر شي باندی ښه قادر دی ) او له دې نه ستاسی راټولول هم دی که څه هم بدنونه مو رژیدلی او خاوری شوی وی ﴿ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ﴾ او له هر ځایه چي ووزی ته (اې محمده) (دسفر لپاره) نو وگرزوه ته مخ خپل په لوری دمسجد حرام (په لمانځه کی) ﴿ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِنْ رَبِّكَ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ خامخا دا دمخ گرځول کعبې ته ) حق دی له طرفه درب ستا او نه دی الله بې خبر له هغه څه نه چي تاسي یې کوئ ) دا حکم یې څکه تکراری بیان کړی چي حضر او سفر دواړه برابر دی ﴿ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ﴾ دا دریم ځل لپاره کعبې مشرفی ته دمخ گرزولو حکم دی او ددی تکرار فائده داده چي څرنگه په شرعی احکامو کی لومړی وار دقبلې نسخ راغلې نو دی ته اړتیا وه چي دتاکید او تقریر لپاره په مکرر ډول امر وشي تر څو شک او شبه پاتی نه وی د(حیث ماکنتم) معنا داده چي په هر ځای او هر وخت کی چي یاست(اې مؤمنانو) نو وگروزۍ مخونه خپل په لوری دهغې (کعبې) ﴿ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ ﴾ ددې لپاره چي نه وی خلکو (یهودانو او مشرکانو) ته په تاسي هیڅ اعتراض یعنی دا چي یهود به وایي زموږ له دین څخه منکر خو زموږ دقبلې متابعت کوئ یالکه دمشرکینو خبره چي (محمد ﷺ دابراهیمی ملت دعوی لری خوله قبلې څخه مخالفت کوی(نو دغه دقبلې په هکله څرگندونه به د هسي چټیاتو مخنیوی وکړی ﴿ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي ﴾ مگر (اعتراض) دهغو کسانو چي ظالمان دی له دوی څخنی نو مه ویریږۍ له دوی څنی او وویریږئ له ما څنی (زما نافرمانی مه کوۍ) یعنی پرته له اعتراض دهغو ظالمانو معاندینو چي هیڅ دلیل نه مني له هغوی څخه مه ویریږئ له ما وویریږئ ﴿ وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴾ او لپاره ددې چي پوره کړم خپل نعمت په تاسي او ښایي چي تاسي لار ومومۍ یعنی چي زه ستاسو په لارښونه دخپل پلار ابراهیم قبلې ته بشپړ کړم خپل فضل او همدا رنگه په توفیق درکولو تاسو ته ددواړو جهانونو دنیکمرغي لپاره.

**بلاغت:**

۱ - دالله ﷻ پدې قول کی چي فرمایي (الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ) دضمیر په ځای اسم موصول راوړل شوی چي ددوی له بد حاله او عناد څخه خبر تیا ورکړی.

۲ - پدې کلام کی چي (وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ) په حق باندی دثبات او ټینگار هڅونه او تهیج دی.

٣ - دالفتوحات الالهية مؤلف ليکی چي داجمله چي وايي: (وَمَآ أَنتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ) تر هغې جملې چي (مَّا تَبِعُوا۟ قِبْلَتَكَ) په نفی کی زياته او ابلغ ده ځکه دا جمله اسميه او بيا يې په (باء) سره تاکيد راغلی دی.

۴ - پدې کلام کی چي الله فرمايي: (كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَآءَهُمْ) مرسله مفصله تشبيه ده يعنی دوی رسول الله په ځرګند ډول پيژني لکه ددوی له خپله پشته او لادونه غوندی.

## فوائد او ګټې:

لومړی فائده: روايت کيږی چي عمر بن الخطاب عبدالله بن سلام ته وويل: ايا محمد داسي پيژني لکه خپل زوی؟ هغه وويل او تر دې زيات ځکه له اسمانه امين ته رانښکته شوی او دده نعت او صفت يې راوړی او ما پيژندلی دی او پدې کي هيڅ شک او شبه نلرم چي هغه نبی دی او زوی می نه يم خبر چي مور خو به يې خيانت نوی کړی؟ نو عمر ﷺ يې سر ښکل کړ(١)

دوهمه فائده: وعيد علماوو او پوهانو ته تر بل چا زيات متوجه دی ځکه الله ﷻ داهل کتابو (بدی او ذم په هکله فرمايي (وهم يعلمون) او هغه څوک چي سره له پوهي دګناه مرتکب کيږي داسي نه ده لکه چي دچا څخه په ناپوهي کي ګناه صادره کيږی.

دريمه فائده: دکعبې شريفی په هکله دقبلې دامر تکرار درې ځله ددې لپاره شوی چي لومړی داهل مکې لپاره دوهم دنورښارونو داوسيدونکو او دريم دهغه چا لپاره چي په سفر وتلی وو همدا خبره قرطبی راوړې ده(٢)

## الله تعالی فرمايي:

﴿ كَمَآ أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِّنكُمْ يَتْلُوا۟ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا۟ تَعْلَمُونَ ﴿١٥١﴾ فَٱذْكُرُونِىٓ أَذْكُرْكُمْ وَٱشْكُرُوا۟ لِى وَلَا تَكْفُرُونِ ﴿١٥٢﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱسْتَعِينُوا۟ بِٱلصَّبْرِ وَٱلصَّلَوٰةِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿١٥٣﴾ وَلَا تَقُولُوا۟ لِمَن يُقْتَلُ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمْوَٰتٌۢ ۚ بَلْ أَحْيَآءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ ﴿١٥٤﴾ وَلَنَبْلُوَنَّكُم بِشَىْءٍ مِّنَ ٱلْخَوْفِ وَٱلْجُوعِ وَنَقْصٍ مِّنَ ٱلْأَمْوَٰلِ وَٱلْأَنفُسِ وَٱلثَّمَرَٰتِ ۗ وَبَشِّرِ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿١٥٥﴾ ٱلَّذِينَ إِذَآ أَصَٰبَتْهُم مُّصِيبَةٌ قَالُوٓا۟ إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّآ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ ﴿١٥٦﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَٰتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُهْتَدُونَ ﴿١٥٧﴾ ﴾ البقرة: ١٥١ - ١٥٧

## مناسبت او تړاو:

آيتونه هسي پيل شوی چي مسلمانانو ته خطاب کوی او دالله ﷻ هغه ستر نعمت چي درسول الله ﷺ بعثت دی وريه يادوی دا وروسته له هغه چي پخوانيو آيتونو له بني اسرائيلو څخه خبر ورکول او دالله ﷻ هغه نعمتونه يې شميرل چي دوی به په انکار او کفران استقبالول چي نژدې ددې سورت يوه دريمه برخه يې نيولی ده قرآن کريم ديهودانو او نصاراوو (بني اسرائيلو) جرائم څکه په ډير تفصيل بيان کړی چي مسلمانان ورڅخه عبرات واخلی او

(١) مختصر ابن کثير ١٤٠/١ .

(٢) القرطبی ١٢٨/٢ .

ددوی لپاره وعظ او پند شي نو کله چي دبنی اسرائيلو پير تيرشو دمسلمانانو دتذکير وار راغی چي دالله ﷻ ستر نعمتونه او حکمت لرونکی تشريعات چي الله ﷻ ورته ددارينو دنيکمرغي لپاره ورباندی لورلی وريه ياد کړل شی.

**لغتونه:**

(الکتاب) قرآنکريم (الحکمة) نبوي سنت (فاذکروني) ما ياد کړئ اصلا ذکر دزړه ياد ولو ته وايي خو دژبي يا دولوته ذکر وويل شو څکه دادزړه په يادولوتنبه او علامه ده (ولنبلونکم) او خامخا به مو وازمويم دابتلاء اصل امتحان او ازموينه ده او دا کلمه دخير په امورو او کله بيا دشرپه امورو کی هم وی (ونبلوکم بالشر والخير فتنة) (مصيبة) مصيبت هر ضرر او تاوان ته چي مؤمن ته په ځان، مال اواو لاد کی پيښيږی وايي (صلوات) صلوة په اصل کی دعا ته وايي او که چيری دالله ﷻ له لوری وی درحمت په معنی او دملائکو له پلوه داستغفار په معنی راځي.

**تفسير:**

﴿ كَمَآ أَرۡسَلۡنَا فِيكُمۡ رَسُولٗا مِّنكُمۡ ﴾ (لکه چي ليږلی دی موږ په تاسي کی رسول له جنسه ستاسو څخه) تر څو بشپړ کړم خپل نعمت په تاسو نو معنی داشوه لکه چي په تاسو می نعمت کړی همداسي مې په تاسو کی ستاسی له جنس څخه پيغمبر استولی دی ﴿ يَتۡلُواْ عَلَيۡكُمۡ ءَايَٰتِنَا ﴾ (لولی په تاسی زموږ آيتونه) (قرآن) ﴿ وَيُزَكِّيكُمۡ ﴾ او پاکوی تاسي (له شرک او بدو افعالوڅخه) ﴿ وَيُعَلِّمُكُمُ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡحِكۡمَةَ ﴾ (اوښيي تاسي ته کتاب (احکام دقرآن مجيد) او حکمت (نبوی پاکيزه سنت) ﴿ وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمۡ تَكُونُواْ تَعۡلَمُونَ ﴾ او درښيې تاسی ته هغه شيان چي تاسی نه پرې پوهيدلي) يعنی ددين او دنيا دامورو ډير څه چي تاسي ورباندی نه پوهيدلی درزده کوي ﴿ فَٱذۡكُرُونِيٓ أَذۡكُرۡكُمۡ ﴾ (نو ياد کړی تاسی ما (په طاعت او عبادت سره) زه به تاسو ياد کړم (په ثواب او مغفرت سره) ﴿ وَٱشۡكُرُواْ لِي وَلَا تَكۡفُرُونِ ﴾ او شکر وباسی مالره (چي نعمت می درکړی (او کفران مه کوی) په انکار او سرغړونه سره ،روايت کيږی چي موسی ﷺ وويل اې ربه ! ستا شکر څنګه ادا کړم؟ الله ﷻ ورته وويل: زما ذکر او ياد کوه مامه هيروه ! کله چي زما ذکر وکړې نو بيشکه زما شکر دی پر ځای کړ او که دی هيرکړم نو په تحقيق زما کفران دی وکړ(١) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسۡتَعِينُواْ بِٱلصَّبۡرِ وَٱلصَّلَوٰةِ ﴾ اې هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی مدد وغواړئ (ددنيا او آخرت په امورو کی) په زغم (صبر) او لمانځه سره) څکه په صبر سره هر فضيلت ته رسيدلای شی او په لمانځه له هر رذالت څخه ژغورل کيدلای شئ ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ بيشکه چي الله ﷻ له صبر کوونکو سره دی (په مرسته معاونت ، حفظ او ملا تړ سره ﴿ وَلَا تَقُولُواْ لِمَن يُقۡتَلُ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمۡوَٰتُۢ ﴾ مه واياست تاسي هغه چاته چي ووژل شي په لاره دالله کی مړه ) يعنی تاسی شهيدانو ته مړه مه واياست ﴿ بَلۡ أَحۡيَآءٞ وَلَٰكِن لَّا تَشۡعُرُونَ ﴾ بلکه ژوندی دی لکن تاسي نه پوهيږی) دوی ته په برزخی ژوند کی

---

(١) مختصر ابن کثير ١٤٢/١ .

دالله په نزد روزی ورکول کیږی ، چي ددنیا تر ژوند ډیر غوره او لوړدی اوسی ﴿ وَلَنَبْلُوَنَّكُم بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنفُسِ وَالثَّمَرَاتِ ﴾او خامخا موږ ازمویو تاسی په یوه شي چي هغه (له دښمن څخه ویره ،لوږه ، کموالی دمالونو په ډول ډول آفتونو او دنفسونو (په مرگ ،قتل ، ناروغی) او دمیوو (په اسمانی او ځمکنی آفتونو سره) ﴿ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ ﴾ (او زیری ورکړه صبر کوونکوته ) هغو چي په مصیبتونو او بلا یاوو باندی صبر کوی دجنت زیری بیا الله تعالی دصابرانو صفت هسي وکړ ﴿ الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ ﴾هغه کسان کله چي وروړسیږی دوی ته څه مصیبت ) ضرر تکلیف او ناخوښه کار ﴿ قَالُوا إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ﴾ وایي دوی بیشکه موږ دالله (بندگان) یو او بیشکه موږ هم ده ته بیا ورتلونکی یو یعنی دوی په دې اعتراف کوی چي د الله ﷻ مملوک دی او هر څه چي هغه وغواړی ورباندی کوی یې ﴿ أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ ﴾ دغه کسان په دوی دی عنایتونه له ربه ددوی او مهربانی ده او هم دوی دی لاره موندونکی (دحق او نیکمرغي ).

## بلاغت:

١ - د(ارسلنا ) او (رسولا ) په دووکلمو کې اشتقاقي جناس دی.

٢ - په دې آیتونو کی چي فرمایي (وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ) چي له دې آیته (وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ) وروسته راغلی عام له خاص نه وروسته ذکر شوی او دې ته په بلاغت کی اطناب وایي چي شمول افاده کوی.

٣ - پدې کلام چي (أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ) دلته ایجاز بالحذف یعنی دحذف په وجه لنډون شوی یعنی (لاتقولوا اموات بل هم احیاء) او ددوی تر مینځ دطباق صنعت هم موجود دی.

۴ - پدې کلمه کی (بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ) چي (شئ ) نکره ذکر شوی فائده یې داده چي لږشی خنی اراده شي.

۵ - (صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ) پدې دواړو کي تنوین دتفخیم لپاره دی او چي درب کلمې ته تعرض شوی او ددوی ضمیر ته یې اضافت شوی مقصد ددوی په هکله دالله ﷻ زیات عنایات او بخښښونه دی.

٦ - پدې جمله کی چي فرمایي (هُمُ الْمُهْتَدُونَ) دقصر صیغه او گواکي صفت په موصوف پسي قصر دی.

## فوائد او ګټي:

لومړی فائده: عمر بن الخطاب ﷺ وایي ماته چي مصیبت رسیدلی دی دری نعمتونه می پکي موندلی دی لومړی دا چي هغه مصیبت به په دین کی نه وو دوهم دا چي تر هغه چي وو به ستر نه وو دریم دا چي الله ﷻ به په

هغه لويه جزا او ثواب ورکوی او بيا يې دالله ﷻ دا آيت تلاوت کړ چي (أُوْلَٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ صَلَوَٰتٌ مِّن رَّبِّهِمۡ وَرَحۡمَةٌۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُهۡتَدُونَ).

دوهمه فائده: کله چي ديو بنده زوی ومري الله ﷻ ملائکو ته وايي چي زما دبنده دزوی روح مو واخيسته؟ هغوی وايي هو، نو وايي چي دزړه ميوه مو څنی بيل کړه؟ هغوی وايي هو، وايي چي زما بنده څه وويل؟ دوی وايي ستا حمد اوثنا يې لوستله او استرجاع يې کوله الله تعالی وايي: زما دبنده لپاره په جنت کي ماڼۍ جوړه کړئ او د(بيت الحمد) يې نوم کښيږدئ[1]

## الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ إِنَّ ٱلصَّفَا وَٱلۡمَرۡوَةَ مِن شَعَآئِرِ ٱللَّهِۖ فَمَنۡ حَجَّ ٱلۡبَيۡتَ أَوِ ٱعۡتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَاۚ وَمَن تَطَوَّعَ خَيۡرٗا فَإِنَّ ٱللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ﴿١٥٨﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكۡتُمُونَ مَآ أَنزَلۡنَا مِنَ ٱلۡبَيِّنَٰتِ وَٱلۡهُدَىٰ مِنۢ بَعۡدِ مَا بَيَّنَّٰهُ لِلنَّاسِ فِي ٱلۡكِتَٰبِ أُوْلَٰٓئِكَ يَلۡعَنُهُمُ ٱللَّهُ وَيَلۡعَنُهُمُ ٱللَّٰعِنُونَ ﴿١٥٩﴾ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُواْ وَأَصۡلَحُواْ وَبَيَّنُواْ فَأُوْلَٰٓئِكَ أَتُوبُ عَلَيۡهِمۡ وَأَنَا ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴿١٦٠﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَمَاتُواْ وَهُمۡ كُفَّارٌ أُوْلَٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ لَعۡنَةُ ٱللَّهِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ وَٱلنَّاسِ أَجۡمَعِينَ ﴿١٦١﴾ خَٰلِدِينَ فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنۡهُمُ ٱلۡعَذَابُ وَلَا هُمۡ يُنظَرُونَ ﴿١٦٢﴾ ﴾ البقرة: ۱۵۸ - ۱۶۲

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چي الله مسلمانانو ته دذکر او يادولو مارپينه وکړه او په صبر او لمانځه باندې يې دمرستی غوښتلو بلنه ورکړه نو بيا يې دحج داهميت په هکله بيان وفرمايه چي داددين دشعائرو څخه دی او وروسته يې دعلم او پوهي دخپرولو او دنه پټولو ارتيا څرګنده کړه او هغه خطرونه يې په ګوته کړل چي دسمي لاري نبودلو او علم دپټولو څخه رابر سيره کيږي لکه چي به يهودانو او نصاراوو پخپلو کتابو نو کی پټول او دالله ﷻ دلعنت، غضب او هلاکت مستحق او وړ وګرزيدل.

## لغتونه:

(شعائر الله) دالله شعائر دشعيرة جمع ده هغه علامې ته وايي او هدی ته شعار ګرزول يعنی دپيژندګلوی علامه ورځړول چي وايي (اشعر الهدی) او شعائر هر هغه څه ته وايي چي موږ يې دالله ﷻ دعبادت لپاره تر سره کوو لکه طواف، سعی، اذان او داسي نور (حج) په لغت کی قصد کولو ته وايي او په اصطلاح کې دکعبې شريفي قصد دمناسکو دادا کولو لپاره دی (اعتمر) عمره په لغت کی زيارت کولو ته وايي بيا وروسته دکعبې شريفي دزيارت چي دعبادت لپاره تر سره شي نوم وګرزيدو (جناح) دګناه په لوری ميل کولو ته وايي او چا بيا ويلی چي پخپله ګناه ته وايي او پدې ونومول شو څکه چي دباطل لوری ته پکي ميلان شوی وی ويل کيږي (جنح الی کذا) کله چي هغه لوری ته ميلان وکړی ابن الاثير وايي هر چيرته چي راشي نو معنا يې ګناه او ميل دی (ما ژباړونکی لوستلی دی چي جناح دګناه معرب ده لکه (سجيل) چي د(سنګ ګل) معرب بلل شوی او په لږ توپير سره دواړه

---

[1] اخرجه احمد والترمذي.

کلمې بيخي سره ورته دي ) (يكتمون) پټوي يې له کتمان څخه اخستل شوی او پټولو ته وايي (ينظرون) مهلت ورکول شوی.

تفسير:

﴿ إِنَّ ٱلصَّفَا وَٱلْمَرْوَةَ ﴾ (بيشکه صفا اومروه ) چي ددو غرونو هغه چي دکعبې شريفي په څنګ کی دی نومونه دی ﴿ مِن شَعَآئِرِ ٱللَّهِ ﴾ له علامو (ددين) دالله څخه دی چي موږ يې په طواف کولو دالله ﷻ عبادت کوو ﴿ فَمَنْ حَجَّ ٱلْبَيْتَ أَوِ ٱعْتَمَرَ ﴾ څوک چي اراده وکړی دحج دبيت الله اويا اراده وکړی د عمرې ﴿ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَا ﴾ (نونشته هيڅ ګناه په ده باندی چي طواف وکړی پدې دواړو ) که مشرکانو ددې دووغرونو تر منيځ سعی او طواف کاوو بيا به يې دواړه بتان مچ کول نو تاسي ديو الله رب العالمين لپاره طواف وربانديوکړی له دې مه ويريږی چي په دې به له مشرکانو سره مشابهت راشي ﴿ وَمَن تَطَوَّعَ خَيْرًا ﴾ (او هر څوک چي وکړی پخپله خوښه څه نيکي ) يعنی چي وروسته له فرضی حج نه نفلی حج او عمره کوی او يا بل دنيکی کار فرض وی که نفل تر سره کوی ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ﴾ (بيشکه الله ﷻ ښه شکر قبلونکی ښه عالم دی) يعنی دهغه دطاعت به چي ښه وربانديخبر دی ښه جزا ورکوی دهغه په وړاندی دنيکانو اجر نه ضائع کيږی ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَآ أَنزَلْنَا مِنَ ٱلْبَيِّنَٰتِ وَٱلْهُدَىٰ ﴾ بيشکه هغه کسان چي پټوی له خلکو هغه څه چي موږ نازل کړی دی له ښکاره (احکامو ) او هدايت (خبری) يعنی هغوی چي دالله ﷻ نازل کړل شوی څرګند آيتونه له خلګو پټوی هغه چي دمحمد ﷺ په رښتنولی دلالت کوی ﴿ مِنۢ بَعْدِ مَا بَيَّنَّٰهُ لِلنَّاسِ فِى ٱلْكِتَٰبِ ﴾ (پس له هغه چي بيان کړی دی موږ لپاره دخلکو په کتاب (تورات) کی ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ ٱللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ ٱللَّٰعِنُونَ ﴾ (دغه کسان دی ليری کوی الله ﷻ دوی له رحمت خپل نه او لعنت وايي پر دوی لعنت ويونکی (له پرښتو او مؤمنانو څخه) يعنی هغوی چي بدعملونه کوی درسول الله ﷺ اوصاف پټوی دتورات احکام تحريفوي نو الله يې له رحمته شړی ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ وَأَصْلَحُوا۟ وَبَيَّنُوا۟ فَأُو۟لَٰٓئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ ﴾ مګر هغه کسان چي بيرته وګرزيدل (له شرک او پټولو دنعمت او ښه يې کړ عمل خپل او بيان يې کړه حقه خبره نو دغه کسان دی (چي الله ﷻ وايي) زه به يې توبه قبوله کړم . ﴿ وَأَنَا ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ اوهم دا زه ښه توبه قبلونکی او مهربان يم) زما رحمت ډير پراخ دی دبندګانو څخه چي کوم ګناهونه صادر شوي وي هغه وربښم ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَمَاتُوا۟ وَهُمْ كُفَّارٌ ﴾ (بيشکه هغه کسان چي کافران شوی او مړه شوی دی حال دا چي دوی کافران وو (په وخت دمرګ کې) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ ٱللَّهِ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةِ وَٱلنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴾ دغه کسان چي دی پر دوی باندی لعنت دالله ، پرښتو او تولو خلکو ، يعنی پر دوی الله ، پرښتې او دمځکی اوسيدونکی آن تر دې چي کافران هم وربانديلعنت وايي ځکه کافران د قيامت په ورځ يو په بل لعنت وايي ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾ تل ترتله به وي (په اوريا لعنت کی) او داچي اور يې څرګند او ظاهر نه راوړ په ضمير يې

ذکر کړو هغه دتفخیم لپاره ده ﴿لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ ٱلْعَذَابُ﴾ (نه به سپکاوه شي له دوی څخه عذاب) تل تر تله به په عذاب کې وي دستر ګو درپ په اندازه به هم نه ځني لیري کیږي ﴿لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ﴾ [الزخرف ۷۵] ﴿وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ﴾ او نه به دوی ته مهلت ورکړل شي بلکه کله چې ومري سمدستي به عذاب ورسره مخامخ وي.

د نزول سبب يې: روایت کاوشي چې يو چا له انس ﷺ څخه دصفا او مروه په هکله وپوښتل؟ هغه وویل چې مونږ هغه (صفا او مروه) له جاهلیت څنی ګڼل چې اسلام راغی نو مونږ يې دطواف کولو څخه ډډه کوله بیا دا آیت نازل شو ﴿إِنَّ ٱلصَّفَا وَٱلْمَرْوَةَ مِن شَعَآئِرِ ٱللَّهِ﴾ (۱)

## بلاغت:

۱ - پدې جمله کی چي (مِن شَعَآئِرِ ٱللَّهِ) ایجاز بالحذف او اصل يې دادی چي (من شعائر دین الله).

۲ - (شَاكِرٌ عَلِيمٌ) ددې معنا دا چي په طاعت ثواب ورکوونکی دی او دمجاز په توګه يې شکر ذکر کړ چي مقصد ځنی جزا او ثواب دی.

۳ - پدې کلمه کی چي فرمايي (يَلْعَنُهُمُ ٱللَّهُ) التفات له متکلم څخه غائب ته دی ځکه په اصل کی (نلعنهم) وو او چي دالله ﷻ مبارک نوم ذکر شو دادویرونی او په زړه کي دترهي اچولو لپاره دی.

۴ - په (وَيَلْعَنُهُمُ ٱللَّٰعِنُونَ) کی دجناس اشتقاق دی چي دبدیعی محسناتو څخه ګڼل کیږي.

۵ - (خَٰلِدِينَ فِيهَا) په لعنت او يا اور کی او دا چي اور يې څرګند نه راوور دهغه دتفخيم لپاره دی.

۶ - پدې قول دالله ﷻ چي فرمايي (وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ) جمله اسمیه يې ددې لپاره غوره چاڼ کړه چي په دوام او استمرار دلالت وکړي.

## فوائد او ګټي:

لومړۍ فائده: په صفا غونډۍ باندې يو بت وو چي (اساف) به يې ورته ويل او په مروه باندې بل بت وو چي (نائلة) يې بالو نو مشرکانو چي به کله هم وربادي طواف کاوو هغوی به يې مسح کول مسلمانان وويريدل چي مبادا دجاهلیت له تولی سره يې مشابهت رانشي ځکه يې په طواف کولو اندیښنه څرګنده کړه او آیت شریف نازل شو چي دادواړه دالله ﷻ له علامو څخه دی او ددوی تر منځ منډه وهل ناروانه دی ځکه مسلمانان دالله ﷻ لپاره سعی کوی نه دبتانو لپاره.

دوهمه فائده: دشکر معنا داحسان او نعمت په مقابل کی ثنا ويل او عرفان څرګندول دی او دا خو دالله ﷻ په شان کی محال ده ځکه دهیچا نعمت او احسان په الله ﷻ نشته چي علمائ کرامو په ثواب اړولی او معنا يې دا الله ددوی دطاعت ثواب او جزا ورکوي او دهیچا عمل او کړه خوشی نه ځي، او صحیح هغه ده کوم چي سلفو بللی

---

(۱) اخرجه البخاری وانظر الدر المنثور للسیوطي ۱/۱۵۹.

چي دصفاتو اثبات هسي وكړل شي لكه چي راغلي دي نو بيا هسي شكر چي دالله ﷻ له جلال او كمال سره ښايي مراد كيدلاى شي.

## الله تعالى فرمايي:

﴿ وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ﴿١٦٣﴾ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ
وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنفَعُ النَّاسَ وَمَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِن مَّاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا
وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَابَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿١٦٤﴾
وَمِنَ النَّاسِ مَن يَتَّخِذُ مِن دُونِ اللَّهِ أَندَادًا يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللَّهِ ۖ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِّلَّهِ ۗ وَلَوْ يَرَى الَّذِينَ ظَلَمُوا
إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ ﴿١٦٥﴾ إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا وَرَأَوُا
الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ ﴿١٦٦﴾ وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّأَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوا مِنَّا ۗ كَذَٰلِكَ
يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ ۖ وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ ﴿١٦٧﴾ البقرة: ١٦٣ - ١٦٧

## مناسبت او تړاو:

كله چي الله تعالى دمنكرينو كافرانود هغه عذابونو او عبرتناكو سزاگانو چي ددوى لپاره په آخرت كى تيارى دى حال بيان كړنو دلته يې دالله ﷻ په وحدانيت او قدرت باندى دليلونه راوړل چي دحكمت لرونكى خالق په وجود شاهدى وركوى لومړى يې دپورتنى عالم يادونه وكړه وروسته دسفلى (ښكتنى) عالم او بيا دشپې او ورځى په ادلون بدلون او بيا دبيړيو او هغه چي دسمندر په سرله څپو سره سره څى بيا دبارانونو په ياد كول او دكښتنو او پنځوليو (مخلوقاتو) او هغه چي په مځكه كى تيت شوى عجيبه ژوى دى بيا دبادونو او ورځو حال چي الله ﷻ دانسان دگټى لپاره تابع او ايل گرځولى چي په پاى كى يې په دې ختم كړى چي دالله ﷻ په نادرو جوړښتونو او مصنوعاتو دهغه دښكلى او اغلى مخلوق په هكله له عقل او سوچ څخه كار واخلى څكه هر اثر په مؤثر دلالت كوى او هر صنعت دتدبير او حكمت لرونكى خالق او صانع په وجود گواه وى.

## لغتونه:

(والهكم) اله. معبود ته ويل كيږى كه په حق وى او كه ناحقه او دلته مراد معبود برحق دى (الفلك) لويي او سترى بيړى ته وايي دمفرد او جمع دواړو لپاره يو ډول استعماليږى (وبث) تيت او شيندلى او له دې څخه دى (كالفراش المبثوث) (دابة) دابة په لغت هر هغه خوځيدونكى ته وايي چي په مځكه روان وى او په لغوى معنا باندى يې دالله ﷻ دا قول دلالت كوى چي فرمايي: (وَاللَّهُ خَلَقَ كُلَّ دَابَّةٍ مِّن مَّاءٍ ۖ فَمِنْهُم مَّن يَمْشِي عَلَىٰ بَطْنِهِ وَمِنْهُم مَّن يَمْشِي عَلَىٰ رِجْلَيْنِ وَمِنْهُم مَّن يَمْشِي عَلَىٰ أَرْبَعٍ) نو دښوئيدونكو ، انسانانو ، او حيواناتو ټولو يادونه پكي جمع او راټوله شوى ده (تصريف الرياح) رياح دريح جمع او نسيم او شمال يا هوا ته وايي او (تصريف) له يو حال نه بل حال ته يې اړولو او ليږدولو ته ويل كيږى نو كله تاوده بادونه او كله سړې سيلى كله تند او طوفانى بادونه او كله بيا نرى شمال كله كله دنباتاتو درازرغونولو جوگه وى او كله كله بيا شنډونكى وى (المسخر) له تسخير څخه اخيستل شوى او تذليل او تيسير (تابع او گرزنده )ته وايي (اندادا) د ند جمع دى او مماثل (سيال)

ته ویل کیږي او مراد څنې بتان دي (الاسباب) دسبب جمع او په اصل کې پرې او رسۍ ته وایي او مراد څنې هغه علائق او روابط دي چي دخلکو تر منځ دنسبي اړیکو او یارانې (ملګرتیا) په سبب جوړیږي (کرة) دبیرته راګرزیدلو (رجعت) په معنا دی (حسرات) دحسرت جمع او ډیر سخت ندامت او پښیماني ته وایي په قرآنکريم کي راغلي (أَن تَقُولَ نَفْسٌ يَٰحَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطتُ فِى جَنۢبِ ٱللَّهِ).

دنزول سبب: عطاء روایت کوي چي په نبي ﷺ په مدینه منوره کي دا آیت نازل شو (وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ) دمکي کفارو قریشو وویل څرنګه یوازې یو الله دټولو خلکو معبود او کار جوړونکی کیدای شي؟ نو الله ﷻ دا آیتونه نازل کړي (إِنَّ فِى خَلْقِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ) تر دې قوله پوري چي: (لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ) دي[1]

تفسير:

﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ﴾ (او معبود ستاسي یو معبود) یعنی هغه چي دعبادت لائق دي دهغه هیڅ مثل نه په ذات کې شته او نه په صفاتو او افعالو کي ﴿لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلرَّحْمَٰنُ ٱلرَّحِيمُ﴾ (نشته بل څوک لائق دعبادت مګر هم دي، خورامهربان دي پوره رحم لرونکی، دنعمتونو او فضل او احسان بخښونکی دی ﴿إِنَّ فِى خَلْقِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ (بیشکه په پیدا کولو داسمانونو او مځکې کې) څومره د صنعت عجائب او دقدرت دلائل دي؟ ﴿وَٱخْتِلَٰفِ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ﴾ (او په اختلاف دشپې او ورځي کې) چي دیو محکم نظام له مخې ځي او راځي کله اوږدیږي کله لنډیږي (کله یخیږي کله تودیږي) ﴿وَٱلْفُلْكِ ٱلَّتِى تَجْرِى فِى ٱلْبَحْرِ﴾ (او په بیړیو هغو کې چي رواني وي په دریاب کې) یعنی هغه ستری (غول پیکره بیړۍ) چي داوبو په مخ باندي په درنو بارونو بار رواني دي ﴿بِمَا يَنفَعُ ٱلنَّاسَ﴾ په هغه سره چي ګټه رسوي خلکو ته، دخلکو دسوداګرۍ مالونه او اسبابونه پکي دي.

﴿وَمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مِن مَّآءٍ﴾ او په هغو څه کې چي نازل کړي دي الله له (طرفه) داسمانه له اوبو څنې هغه چي په هغو سره دخلکو او ځمکو ژوند موندل کیږي یعنی دبلاد او عبادو دژوندانه سبب کیږي ﴿فَأَحْيَا بِهِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ نو ژوندي (زرغونه) کړې يې ده ځمکه په هغه وروسته له مرګه (وچوالی) دهغې یعنی په دغو اوبو باندي کښتونه او وني راژوندۍ کیږي وروسته له هغې چي وچي کلکې او رژیدلې وي نه پکي داني وي او نه هم میوې ﴿وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَآبَّةٍ﴾ (او خواره کړې يې دي په دې ځمکه کې له هر قسمه خوځیدونکو څخه) چي غټ او واړه مختلف شکلونه رنګونه او غږونه لري ﴿وَتَصْرِيفِ ٱلرِّيَٰحِ﴾ او په ګرزولو د بادونو چي شمالي او جنوبي الوزی ساړه او یا تاوده وي نرم او یا طوفاني وي ﴿وَٱلسَّحَابِ ٱلْمُسَخَّرِ بَيْنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ﴾ دا وریځي مسخره کړی شوي په منځ داسمان او مځکې کې، چي دالله دقدرت تابع او هر هغه لوری ته درومي چي الله

---

[1] اسباب النزول للواحدي ١٩١/٢.

يې وغواړي پريمانه اوبه يې باركړي وي او بيا يې څاڅكي په مځكه را اوري ، كعب الاحبار وايي وريځ دباران غلبيل ده كه وريځ نه واى بارن به هغه څه چي ورباندى راتوئيدو تباه كړى وايي (١) ﴿ لَآيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ يَعۡقِلُونَ ﴾ هرو مرو دليلونه دي هغه قوم لره چي دعقل څښتنان دي يعنى پدې ټولو كى ستر دليلونه دي چي دالله ﷻ په زور ور قدرت څرګند حكمت او ستر او پراخ رحمت باندى ګواه او دعقل څښتنان ورباندى پوهيږى ، بيا الله ﷻ دمشركانو دبد انجام او عاقبت حال بيانوى هغه كسان چي له الله ﷻ څخه پرته دبل چا عبادت كوى نويې وفرمايل: ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَتَّخِذُ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَندَادٗا ﴾ (او ځينى دخلكو څخه هغه دي چي نيسى يې له الله څخه شريكان) يعنى دومره ناپوهان دي چي له الله څخه پرته دبتانو او سردارانو عبادت كوى ﴿ يُحِبُّونَهُمۡ كَحُبِّ ٱللَّهِۖ ﴾ (مينه كوى دوى په هغو باندى لكه چي مينه كوى په الله) ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَشَدُّ حُبّٗا لِّلَّهِۗ ﴾ (او هغه كسان چي ايمان يې راوړى دي ډير ټينګ دي له جهته دمينى دالله سره) يعنى مينه دمؤمنانو له الله سره ) دهغې مينى چي مشركان يې له شريكانو سره لرى ډيره زياته ده ﴿ وَلَوۡ يَرَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ إِذۡ يَرَوۡنَ ٱلۡعَذَابَ أَنَّ ٱلۡقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعٗا ﴾ او كه ووينى هغه كسان چي ظلم يې كړى دي په هغه وخت كى چي ووينى دوى عذاب چي بيشكه ټول قوت (اوزر) خاص الله لره دى ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعَذَابِ ﴾ (او بيشكه چي الله سخت عذاب وركونكى دى ) يعنى دهغه عذاب دردناك دى د(لو ) خواب حذف شوى او تقديريې داسي كيږى چي دوى به هغه څه ووينى چي سختوالى او فظاعت يې دستايلو نه وى. ﴿ إِذۡ تَبَرَّأَ ٱلَّذِينَ ٱتُّبِعُواْ مِنَ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُواْ ﴾ (كله چي بيزاره شى هغه كسان چي متبوعان دى له هغو كسانو چي تابعان دى) يعنى كله چي رئيسان له خپل رعيت څخه بيزاره شي.

﴿ وَرَأَوُاْ ٱلۡعَذَابَ ﴾ او ووينى دوى عذاب ﴿ وَتَقَطَّعَتۡ بِهِمُ ٱلۡأَسۡبَابُ ﴾ او غوڅې شي په دوى باندى هغه ټولى دخپلوى علاقې او روابط ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُواْ لَوۡ أَنَّ لَنَا كَرَّةٗ فَنَتَبَرَّأَ مِنۡهُمۡ ﴾ (او وايي هغه كسان چي تابعان وو كاشكى وايي موږ لره بيا ورتلل (ودنياته) نو بيزاره به شو موږ له دوى نه ) هغه متبوعان چي له دوى څخه يې لاره وركه كړې وه ﴿ كَمَا تَبَرَّءُواْ مِنَّاۗ ﴾ لكه چي بيزاره شوى دي دوى له موږ څنى الله تعالى فرمايي: ﴿ كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ ٱللَّهُ أَعۡمَٰلَهُمۡ حَسَرَٰتٍ عَلَيۡهِمۡۖ ﴾ همداسي لكه چي وښوده الله دوى ته (دعذاب سختى) وبه ښيي الله دوى ته (بيكاره) عملونه ددوى افسوسونه پر دوى باندى) يعنى ددوى په زړونو كى به داسي سخته پښيماني او حسرتونه وى لكه ددوزخ سپرغى او بڅركى ﴿ وَمَا هُم بِخَٰرِجِينَ مِنَ ٱلنَّارِ ﴾ او نه به وى دوى هيچرى وتونكى له اوره (ددوزخ) يعنى دوى له اور څخه دوتلو هيڅ لاره نلرى او په تل ترتله عذاب او بدمرغى كى به اوسي.

## بلاغت:

١ - پدې جمله كى چي الله تعالى فرمايي: (وَإِلَٰهُكُمۡ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞ ) داخبر پرته له كوم تاكيد نه ذكر شوى ترڅو چي منكر دغير منكر پوړې ته راښكته كړي څكه ددوى په وړاندى داسي څرګند دليلونه اوروښانه براهين شته چي كه په غور او پاملرنه يې وګورى بشپړ قناعت به يې وشي.

---

(١) البحر المحيط ٤٢٧/١.

٢ - (لَأَيَٰتٍ) د آياتو په هكله تنكير دهغوى دلويوالي او تفخيم لپاره شوى يعنى ستر آيتونه او دلائل دي چې د الله ﷻ په قاهره قدرت او باهره حكمت دلالت كوي.

٣ - پدې كلمه كى چې فرمايي (كَحُبِّ ٱللَّهِ) مرسله مجمله تشبيه ده څكه دتشبيه ادات ذكر شوى او دمشابهت وجه نه دى ذكر شوى.

٤ - (أَشَدُّ حُبًّا لِّلَّهِ) د(اشد) په كلمه سره تصريح كول تر دې ابلغ او لوړ ده چې وويل شي (احب لله) لكه چې الله بل ځاى فرمايي (فهى كالحجارة او اشد قسوة) سره له دې چې داهم سمه ده چې ويل شوى واي (او اقسى).

٥ - پدې كلام كى چې (وَلَوْ يَرَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟) راغلى دضمير پرځاى ظاهر ذكر شوى چې (لويرون) وو ددې لپاره چې داوريدونكى په ذهن كى انځور ژوندى شي او داورته په مخ كې كښيودل شي چې ددوى دسخت عذاب سبب ددوى پريمانه ظلم وو.

٦ - پدې قول كى چې (وَرَأَوُا۟ ٱلْعَذَابَ) او (وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ ٱلْأَسْبَابُ) دى هغه صنعت راغلى چې دبديع په علم كى ورته ترصيع وايي او هغه دكلام دسجعي رعايت كول دى.

٧ - (وَمَا هُم بِخَٰرِجِينَ مِنَ ٱلنَّارِ) دلته اسميه جمله ددې لپاره راوړل شوه چې خلود او دوام افاده كړي.

## فوائد او ګټې:

لومړى فائده: الله تعالى په دې آيت كى له عجيبه مخلوقاتو څخه اته ډوله ذكر كړل چې ددې تنبيه وشي چې په دې كې عبرتونه او دالله په وحدانيت باندې دلائل او اثار موجود دى، اول داسمانونو ياد او هغه ستورى لمر او سپوږمى پكې. دوهم: ځمكه او پكې غرونه، سيندونه، ونې، رودونه، خزانې او ملغرى، دريم دشپې او ورځې اختلاف چې لنډې او ږدې، روښانه، تياره، زياتي كمي وى څلورم: سترى بيړۍ لكه اوچت غرونه هغه چې په مالونو او خلكو باروى بادونه يې يوې بلې خوا مخ او شاته خوځوى، پنځم: باران هغه چې الله دموجوداتو دژوندانه سبب ګرځولى دى او ورباندى حيوان او نبات پايې بيا دا چې په اندازه را اورى شپږم: هغه چې په ځمكه خو خيږې كه انسان دى او كه حيوان سره دشكلونو، رنګونو او صورتونو له توپيره اووم: دبادونو ګرځول هغه چې هوا يو نرم او پوست جسم دى خو بيا هم ډير زور ور دى چې ونۍ او ډبرى له بيخه راكاږى ودانۍ نړوى خو له دې سره سره دژوند ارتيا ده كه دسترګو درپ په اندازه له نړى څخه غوڅه (پرې كړى) شي نو ټول به ومرى او څه چې دځمكى په سر دى بدبويى ډ دوزې به يې ولاړ شي.اتم: وريځ او هغه چې درنې او به پكې خوندى دى چې كله واورى نو غټ غټ خوړونه ډك بهيږى خو سره له دې داسمان او ځمكى تر منځ تړل شوى فسبحان الواحد القهار.

دوهمه فائده: درياح لفظ په قرآنكريم كې جمع او مفرد دواړه ذكر شوى خو جمع يې له رحمت سره جوخت او مفرد يې له عذاب سره يوځاى راغلى لكه دالله ﷻ داقول: (ومن آياته ان يرسل الرياح مبشرات) او لكه دا (وهو الذى ارسل الرياح بشرا بين يدى رحمته) او مفرد چې له عذاب سره يوځاى راغلى لكه (بريح صرصر عاتية) او دا (الريح العقيم) روايت كاوه شي كله چې به باد راوالوت رسول الله ﷺ به داسې ويل: (اللهم اجعلها رياحا ولا تجعلها ريحا) اې الله بادونه يې وګرزوه او باد يې مه ګرزوه كوم چې دعذاب خبر وركوى.

## الله تعالى فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ كُلُوا۟ مِمَّا فِى ٱلْأَرْضِ حَلَٰلًا طَيِّبًا وَلَا تَتَّبِعُوا۟ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَٰنِ ۚ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿١٦٨﴾ إِنَّمَا
يَأْمُرُكُم بِٱلسُّوٓءِ وَٱلْفَحْشَآءِ وَأَن تَقُولُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿١٦٩﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱتَّبِعُوا۟ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ قَالُوا۟ بَلْ نَتَّبِعُ مَآ
أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَآ ۗ أَوَلَوْ كَانَ ءَابَآؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٧٠﴾ وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ كَمَثَلِ
ٱلَّذِى يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ إِلَّا دُعَآءً وَنِدَآءً ۚ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿١٧١﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُلُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ
مَا رَزَقْنَٰكُمْ وَٱشْكُرُوا۟ لِلَّهِ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴿١٧٢﴾ إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ ٱلْمَيْتَةَ وَٱلدَّمَ وَلَحْمَ ٱلْخِنزِيرِ وَمَآ
أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ ۖ فَمَنِ ٱضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٧٣﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَآ
أَنزَلَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلْكِتَٰبِ وَيَشْتَرُونَ بِهِۦ ثَمَنًا قَلِيلًا ۙ أُو۟لَٰٓئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِى بُطُونِهِمْ إِلَّا ٱلنَّارَ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ ٱللَّهُ
يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٤﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱشْتَرَوُا۟ ٱلضَّلَٰلَةَ بِٱلْهُدَىٰ وَٱلْعَذَابَ
بِٱلْمَغْفِرَةِ ۚ فَمَآ أَصْبَرَهُمْ عَلَى ٱلنَّارِ ﴿١٧٥﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ نَزَّلَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ ۗ وَإِنَّ ٱلَّذِينَ ٱخْتَلَفُوا۟ فِى ٱلْكِتَٰبِ لَفِى
شِقَاقٍۭ بَعِيدٍ ﴿١٧٦﴾ ﴾ البقرة: ١٦٨ - ١٧٦

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله ﷻ توحيد او دهغه دلائل وفرمايل او هغه څه يې وښودل کوم چې دمؤمنانو او کافرانو لپاره تيار دي وريسې يې خپل هغه انعام چې په مؤمن او کافر دواړو يې يو شان لورولی ذکر کړ چې دا څرګنده کړي کفر دانعام په زوال کي مؤثريت نلری ځکه الله رب العالمين دی او احسان يې هم له ټول مخلوق سره شته پرته له کوم توپير څخه چې دا مؤمن او دا کافر يادا نيکو کار او دا بد کردار دی بيا الله ﷻ مؤمنان دمنعم شکر ادا کولو ته را وبلل او دا چې له پاکيزه شيانو چې الله حلال ګرزولي خوراک وکړئ له هغو ځان وژغورئ چې حرام دي.

## لغتونه:

(خطوات الشيطان) خطوات دخطوة جمع ده اوَ هغه واټن ته وايي چې دتګ په وخت کي ددوو پښو ترمنځ مسافه وی ، او مجازا دپل په پله ايښودلو لپاره راځي (السوء) هر هغه څه ته وايي چې انسان خواشيني کوی او ګناه ته که هغه قولي وی که فعلي او که اعتقادي ځکه (سوء) ويل کيږي چې هغه هم ګنهکار خوابدي کوی که سمدستي (في الحال) وی او که په راتلونکي کي (الفحشاء) دګناهونو ستر او هغه چې ډير بدوی ويل کيږي (وجدنا) يعني موندلي مودی او له سمدې څخه دی چې الله فرمايلي: (وَأَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَى الْبَابِ) يا (إِنَّهُمْ أَلْفَوْا آبَاءَهُمْ ضَالِّينَ) يعني موندلي يې ؤو (ينعق) ناري وهي ويل کيږي (ينعق الراعي بغنمه) يعني شپون خپلي رمې ته ناري وهي او راګرزوي يې. (اهلّ) له اهلال څخه اخيستل شوی ويل کيږی (اهلّ المحرم) کله چې تلبيه ويل په لوړ اواز پيل کړي او له همدې مادې څخه دماشوم اهلال هم اخستل شوی دی کله چې دولادت او زيږيدلو په وخت کی يې غږ راواو چتيږي او کله چې به مشرکانو ذبح کوله نو به يې د(لات) او (عزى) په نامه غږ کاوو په زوره به يې ناري

وهلې (اضطرّ) کله چي يې ضرورت د محرماتو خوړلوته اړباسي (باغٍ ولا عاد) باغي له بغي او عادي له عدوان څخه اخيستل شوي دواړه دظلم او له حد څخه دتجاوز او تيريدلو په معنی دی (يزکيهم) له تزکيې څخه او پاکولو ته وايي (شقاق) خلاف او عداوت (دښمني) ته وايي

**تفسير:**

• ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ كُلُواْ مِمَّا فِى ٱلْأَرْضِ حَلَٰلًا طَيِّبًا ﴾ دلته خطاب ټول بشريت ته عام دی يعنی (اې خلکو خوری تاسي له ځينو هغو شيانو چي په مځکه کي دی حلال پاک (يعني هغه پخپله پاک دي او بدنونو عقلونوته يې خوړل تاوان نه رسوي ﴿ وَلَا تَتَّبِعُواْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَٰنِ ﴾ او پيروي مه کوئ تاسی دقد مونو دشيطان يعني شيطان تاسو ته دخير دلوري امر نکوي او دګناهونو او منکراتو څخه مونه منع کوي بلکه دهغه لوري ته مو بولي ﴿ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴾ بيشکه چي شيطان ستاسی ښکاره دښمن دی ، دهغه عداوت او دښمني هر چاته برښکاره دي. ﴿ إِنَّمَا يَأْمُرُكُم بِٱلسُّوٓءِ وَٱلْفَحْشَآءِ ﴾ بيشکه همدا خبره ده چي شيطان تاسی ته حکم په بد او ناروا کار سره کوی څني راګرزوي مونه ﴿ وَأَن تَقُولُواْ عَلَى ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ او چي ووايا ست تاسی په الله هغه خبري چي تاسي پرې نه پوهيږی يعنی چي تاسو په الله افتراء وکړئ هغه چي حلال دی حرام يې کړی او کوم چي حرام دی حلال يې وګرزوی پس نو تاسي به شرعي احکام له خپله لوري جوړوی. ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱتَّبِعُواْ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ ﴾ او کله چي وويل شي دوي ته چي تاسي پيروي کوی دهغه حکم چي نازل کړی دی الله يعني کله چي مشرکينو ته وويل شي چي دهغه احکامو پيروي وکړی چي الله ﷻ په خپل پيغمبر له وحی او قرآن څخه نازل کړی دی او کوم چي تاسي دګمراهي او ضلالت جهالت لاره نيولې هغه پريږدی ﴿ قَالُواْ بَلْ نَتَّبِعُ مَآ أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَآ ﴾ نو وايي چي بلکه پيروي کوو دهغه حکم چي موندلی دی موږ په هغه باندی پلرونه زموږ الله تعالی ددوی په رد کي هسي وفرمايل: ﴿ أَوَلَوْ كَانَ ءَابَآؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴾ اګر که وو پلرونه ددوی چي په هيڅ شي نه پوهيدل او نه يې لاره موندلې وه ) ددوې پلرونه خو داسي احمقان او نالائقه وو چي عقل يې هغه چي دوی دشر له کارونو راوګرزوي خوړلی ؤو ، او نه يې دزړه روښنايي وه چي سمه لاره ومومي استفهام دتوبيخ او انکار لپاره او ددوې په حال تعجب څرګندول دی چي څرنګه دخپلو پلرونو ړوند تقليد کوي بيا الله ﷻ دکافرانو لپاره يوزښته زيات څرګند مثال راوړو چي وايي ﴿ وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ كَمَثَلِ ٱلَّذِى يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ إِلَّا دُعَآءً وَنِدَآءً ﴾ (او حال ددعوت کوونکو دغيکسانو لره چي کافران شويدي لکه حال دهغه چا دی چي نارې وهي هسي يو شي ته چي نه اوري هيڅ مګر تشه بلنه او غږ) يعني دکفارو مثال په ګټه نه اخيستلو کي لکه دهغو چادی چي شپون وي او رمې ته چيغي وهي رمه يې نارې اوري خو په مقصد او خبر يې نه پوهيږي او نه يې هم معنی درک کولای شي دغه کفار هم لکه چا رپايان غوندي دی چي څه ورته ويل کيږي ورباندي نه پوهيږي قرآن اوري خو غوږونه يې څني کاڼه اچولي وي ﴿ إِنْ هُمْ إِلَّا كَٱلْأَنْعَٰمِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴾ [الفرقان ۴۴] (يعني دوي په شان دچارپايانو دي (په پند نه اوريدلو کښي ) بلکه لا دوي ډير ليري دی له لياري (د صواب) څکه الله تعالی فرمايي: ﴿ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴾ (دوی) کاڼه دی ګونګيان دی ړانده دی نودوی هيڅ عقل نلری) يعني غوږونه يې دحق له اوريدلو کاڼه

او له حق ویلو څخه ګونګیان او له لیدلو څخه یې ړانده دي نو ځکه په هغه څه نه پوهیږي چې دوی ته ویل کیږي دوی لکه بودګان او چارپایان غوندې دي دمثال خلاصه دا چې: مثال دکافرانو لکه حیوانات داسې دي چې شپون څه ورته وایي له اوریدلو نه زیات په څه نه پوهیږي او دا دابن عباس رضي الله عنهما دقول خلاصه هم ده. والله اعلم.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُلُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقۡنَٰكُمۡ ﴾ (اې هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (اې مؤمنانو) خوری تاسې له پاکو حلالو هغو شیانو چې درکړي دي موږ تاسې ته دلته خطاب مؤمنانو ته دی ځکه دوی په الهي توجیهاتو پوهیږي ﴿ وَٱشۡكُرُواْ لِلَّهِ إِن كُنتُمۡ إِيَّاهُ تَعۡبُدُونَ ﴾ او شکر وباسی الله ﷻ لره که چیري یاست تاسې چې خاص ده لره عبادت کوی یعني دالله دبیشمیره نعمتونه شکر پر ځای کړی که چیري تاسې یوازي دالله ﷻ عبادت کوی او دبل هیچا عبادت نه کوی ﴿ إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡمَيۡتَةَ وَٱلدَّمَ وَلَحۡمَ ٱلۡخِنزِيرِ ﴾ بیشکه هم داخبره ده چې حرام کړی دی (الله ﷻ) په تاسې باندی خوراک دمرداري او (حرام کړی یې دی) خوراک دوینې (بهیدونکې) او حرام کړی یې دی (خوراک) دغوښې دخنزیر ﴿ وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيۡرِ ٱللَّهِ ﴾ او هر هغه چې آواز پرې کول شوی وي (په وخت دذبح کې) بې له الله) یعني هغه چې دبتانو په نامه پرته دالله ﷻ له نامه حلال شوي وي لکه چې دحلالولو په وخت ورباندي ویل شوي وي دلات په نامه ،دعزی په نامه ﴿ فَمَنِ ٱضۡطُرَّ غَيۡرَ بَاغٖ وَلَا عَادٖ فَلَآ إِثۡمَ عَلَيۡهِ ﴾ نو هغه څوک چې اړشي (دحرامو خوړلو ته) حال دا چې نه وي ظلم کونکی او نه تجاوز کونکی وی (له قدره دکفافه ) نو نشته ګناه په ده) چه ویې خوری ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٌ ﴾ بیشکه چې الله لوی بخښونکی پوره رحم لرونکی دی او دهغه له رحمت څخه دضرورت او اړتیا په وخت کې دمحرماتو خوړل دی. ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكۡتُمُونَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ بیشکه هغه کسان چې پټوي (دوی هغه څه چې نازل کړي دي الله چې کتاب دی ) یعني درسول الله ﷺ هغه صفت پټوی چې په تورات کې راغلی دی دغه کسان یهودان دی ابن عباس رضي الله عنهما وایي چې داآیت دیهودانو دمشرانو اوسردارانو په هکله دی هغوی چې درسول الله صفت یې پټ کړ.

﴿ وَيَشۡتَرُونَ بِهِۦ ثَمَنٗا قَلِيلًا ﴾ او پیری دوی (اخلی) په دی پټولو سره قیمت لږ ددنیاله متاع نه ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ مَا يَأۡكُلُونَ فِي بُطُونِهِمۡ إِلَّا ٱلنَّارَ ﴾ (نو دغه کسان نه خوری په ګیډوخپلوکی مګر اور) یعنی دوی دغه حرام مال په خپلو ګیډوکی اچوی هغه چې ددوزخ داور موجب ګرزی ﴿ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ ٱللَّهُ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ ﴾ اونه به خبری وکړی له دوی سره الله په ورځ دقیامت کی دخوښې خبري لکه څرنګه چې یې له مؤمنانو سره کوي بلکه دقهر او غضب خبري به ورته کوي لکه دا چې: ﴿ قَالَ ٱخۡسَـُٔواْ فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ ﴾ [المؤمنون: ۱۰۸] (یعني الله به وفرمائي چې تاسې چپ شئ (پراته اوسئ خوار ذلیل) په دې دوزخ کښې مه غږیږئ له ما سره (په دفع د عذاب کښې) ﴿ وَلَا يُزَكِّيهِمۡ ﴾ او نه به پاک کړي دوی الله ﷻ دګناهونو له پلیتي څخه ﴿ وَلَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ او دوی لره عذاب دردناک دی چې هغه دجهنم عذاب دی ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱشۡتَرَوُاْ ٱلضَّلَٰلَةَ بِٱلۡهُدَىٰ ﴾ دوی هغه کسان دی چې پیرودلی یې دی ګمراهي په هدایت او کفر په ایمان ﴿ وَٱلۡعَذَابَ بِٱلۡمَغۡفِرَةِ ﴾ او عذاب په بدل دمغفرت کې

، چي دوزخ يې په جنت بدل کړی دی ﴿ فَمَآ أَصۡبَرَهُمۡ عَلَى ٱلنَّارِ ﴾ نو څومره صبر کونکی دی دوی په اور ؟ دا ځای دتعجب دی مؤمنانو لره چي داکفار څومره زړه وردی چي داسي ډول ډول ګناوي کوي بیا الله ﷻ ددوی دعبرتناک عذاب سبب داسي بیانوي ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ نَزَّلَ ٱلۡكِتَٰبَ بِٱلۡحَقِّ ﴾ دا عذاب ځکه دی چي بیشکه الله کتاب په رښتیا سره نازل کړی دی چي هغه تورات دی او دحق بیان پکي دی خو دوی پټ کړی او تحریف کړی دی ﴿ وَإِنَّ ٱلَّذِينَ ٱخۡتَلَفُواْ فِي ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ او بیشکه هغه کسان چي اختلاف یې کړی دی په کتاب کي یعني تأویل او تحریف یې کړی ﴿ لَفِي شِقَاقِۭ بَعِيدٖ ﴾ خامخا په مخالفت کي دی چي له حق نه لیري دی او دسخت عذاب مستوجب دی.

دنزول سبب:

ابن عباس رضي الله عنهما وايي: چي دا آیت دیهودو د سردارانو په باب چي هغوی هر یو: کعب بن الاشرف، مالک بن الصیف، حیي بن اخطب ؤو رانازل شوی دی دوی به له خپلو پلویانو سوغاتونه او ډالۍ اخیستې کله چي رسول الله په پیغمبري مبعوث شو دوی دهمدې سوغاتونو په ورکیدلو او لړیدلو وویریدل نو درسول الله ﷺ او دهغه دشریعت موضوع یې پټه کړه بیا الله دا آیت نازل کړ: (إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكۡتُمُونَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ)(١)

بلاغت:

١. (خُطُوَٰتِ ٱلشَّيۡطَٰنِ) پدې کي له پلوی کولو څخه استعاره راغلې ده او دا چي دهغه پښه پله پل ایږدی چي دهغه دویلو منل او یا یې دکولو تقلید او پیروي کول دی په تلخیص البیان کی وایي چي دا تر ټولو ستر تحذیر او ویرونه ده.

٢. پدې کلمه کي چي فرمایي: (بِٱلسُّوٓءِ وَٱلۡفَحۡشَآءِ) عطف دخاص په عام باندی راغلی دی ځکه، سوء ټولو ګناهو ته وایي او فحشاء دیر بد او بیکاره ته.

٣. دالله ﷻ پدې قول کي مجمله او مرسله تشبیه ده چي فرمایي: (وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ كَمَثَلِ ٱلَّذِي ...) ځکه دتشبیه ادات ذکر دی خو دمشابهت وجه نه ده ذکر شوې دلته کفار له څلوربولو سره مشابه ګڼل شوی هغه چي نارې اوري خو په مقصد او مرام هډو پوهیږي نه.

۴. (صُمُّۢ بُكۡمٌ) دلته دتشبیه ادات او دمشابهت وجه دواړه حذف شوي نو ځکه ورته بلیغه تشبیه وایو یعني دوی لکه کاڼه غوندي دی حق نه اوري او لکه ړانده او ګونګیان دی چي دقرآن رڼانه ویني او نه هم وړباندي ګته اخلي

۵. (مَا يَأۡكُلُونَ فِي بُطُونِهِمۡ إِلَّا ٱلنَّارَ) مرسل مجاز دی او هغه په دې اعتبار چي بالاخره به ددوی دغه عمل هغوی اورته وغورځوي او دا چي فرمایي: (فِي بُطُونِهِمۡ) ددوی دحال لا زیاته تباهي او

(١) الفخرالرازي ٥/٢٨.

هلاکت دی ددوی حال داسي انځوروی لکه څوک چي داور لمبې خوري او په ګېډه کي يې اچوي دا نو سخت ويرونکی دی.

٦. (ٱشۡتَرَوُاْ ٱلضَّلَٰلَةَ بِٱلۡهُدَىٰ) دلته بيا استعاره ده او مراد ددوی هغه بدلون دی چي ايمان په کفر بدلوي دغه استعاره دسورت په پيل کي هم اجرا شوې ده.

## ټکې او فائدې:

لومړۍ فائده: ابن عباس رضي الله عنهما وايي: دغه آيت (يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ كُلُواْ مِمَّا فِي ٱلۡأَرۡضِ حَلَٰلٗا طَيِّبٗا) درسول الله ﷺ په وړاندي تلاوت شو نو سعد بن ابي وقاص ودريدو ويل يې: اې رسول الله ﷺ ماته دعا وکړه چي الله ﷻ مي مستجاب الدعوات کړي نو رسول الله ﷺ وويل: اې سعده پاکيزه خواړه خوره دعا به دي منل کيږي، زما دي په هغه ذات لوړه وي چي دمحمد روح يې په يد دقدرت کي ده چي يو څوک يوه مړۍ دوده حرامه په ګېډه کي اچوي څلويښت ورځي يې عمل نه قبليږي او هغه څوک چي غوښه يې له حرامو او يا دسود څخه راټوکيدلې وی نو اور دهغه لپاره بهتر دی.(١)

دوهمه فائده: بعضي سلفو فرمايلي دی: چي دشيطان په خطواتو کي ټول ګناهونه راځي آن تر دې چي څوک په ګناه نذر ايږدی هم راځي. شعبي رحمه الله وايي يو سړي نذر کښيښود چي خپل زوی به حلالوي مسروق رحمه الله فتوا ورکړه چي پسه دي حلال کړي او ورته يې وويل: چي دا دشيطان پيروي کول دی.(٢)

دريمه فائده: ابن القيم رحمه الله په (اعلام الموقعين) کي دالله ﷻ ددې قول په باب: (وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ كَمَثَلِ ٱلَّذِي يَنۡعِقُ بِمَا لَا يَسۡمَعُ إِلَّا دُعَآءٗ) داسي وايي ته کولا ی شي چي دغي ته مرکبه تشبيه ووايې او يا يې (مفرقه) وبولي څکه که دی مرکبه ګڼله دکفارو تشبيه ده هغه چي نه پوهيږي او نه ګټه اخلي نو له هغو حيواناتو سره مشابه دی چي شپون خو ورته ناره وهي مګر دوی له رغ څخه پرته په بل څه نه پوهيږي او که چيري دی (مفرقه) وبلله نو کافران دڅارپايانو په منزلت دی او دبلونکي بلنه او دعوت چي سمي لاري ته يې رابولي دهغه چا په منزلت دی چي ناره سوره وهي او ددوی راغوښتل سمي لاري ته ګواکي (نعق) ناره وروهل دی او چي دوی دغه ناره اوري لکه حيوانات غوندي دی يوازي دی غږ اوري. والله اعلم

## الله تعالی فرمايي:

﴿ لَّيۡسَ ٱلۡبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمۡ قِبَلَ ٱلۡمَشۡرِقِ وَٱلۡمَغۡرِبِ وَلَٰكِنَّ ٱلۡبِرَّ مَنۡ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ وَٱلۡكِتَٰبِ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ وَءَاتَى ٱلۡمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِۦ ذَوِي ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينَ وَٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِ وَٱلسَّآئِلِينَ وَفِي ٱلرِّقَابِ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ وَٱلۡمُوفُونَ بِعَهۡدِهِمۡ إِذَا عَٰهَدُواْۖ وَٱلصَّٰبِرِينَ فِي ٱلۡبَأۡسَآءِ وَٱلضَّرَّآءِ وَحِينَ ٱلۡبَأۡسِۗ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُتَّقُونَ ١٧٧ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡقِصَاصُ فِي ٱلۡقَتۡلَىۖ ٱلۡحُرُّ بِٱلۡحُرِّ وَٱلۡعَبۡدُ بِٱلۡعَبۡدِ وَٱلۡأُنثَىٰ بِٱلۡأُنثَىٰۚ فَمَنۡ عُفِيَ لَهُۥ مِنۡ أَخِيهِ شَيۡءٞ فَٱتِّبَاعُۢ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَأَدَآءٌ إِلَيۡهِ بِإِحۡسَٰنٖۗ ذَٰلِكَ تَخۡفِيفٞ مِّن

---
(١) اخرجه الحافظ ابن مردويه.
(٢) محاسن التاويل ٣/٣٦٨.

رَبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ۗ فَمَنِ ٱعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُۥ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٨﴾ وَلَكُمْ فِى ٱلْقِصَاصِ حَيَوٰةٌ يَـٰٓأُو۟لِى ٱلْأَلْبَـٰبِ لَعَلَّكُمْ
تَتَّقُونَ ﴿١٧٩﴾ كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ إِن تَرَكَ خَيْرًا ٱلْوَصِيَّةُ لِلْوَٰلِدَيْنِ وَٱلْأَقْرَبِينَ بِٱلْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا
عَلَى ٱلْمُتَّقِينَ ﴿١٨٠﴾ فَمَنۢ بَدَّلَهُۥ بَعْدَمَا سَمِعَهُۥ فَإِنَّمَآ إِثْمُهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُۥٓ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٨١﴾ فَمَنْ خَافَ مِن مُّوصٍ
جَنَفًا أَوْ إِثْمًا فَأَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٨٢﴾ ﴾ البقرة: ١٧٧ - ١٨٢

## مناسبت او تړاو:

نژدې له دې ځایه د سورت بله نیمایي برخه پیلیږي پخوانی نیمایي سورت د دین له اصولو او تاداؤونو غږېدو او د بني اسرائیلو قبائح یې بیانول او دا وروستي نیمایي غالباً په تشریعي احکامو رڼا اچوي د مناسبت وجه دا ده چې الله تعالی په رومبني آیت کي بیان کړل چې اهل کتاب پخپل دین کي ستر اختلاف لري چې د هغه په وسیله په لیري خلاف کي لویدلی او دهغوی له دې اختلاف نه یو هم د کعبې لوری ته د مسلمانانو مخ ګرزول دی چې دوی یې په هکله بحث کولو ته اړ ایستل او هر یوه یعني یهودو او نصارا ؤ دا دعوا درلوده چې سمه لار د دوی د قبلې د منو الله ﷺ د دوی دغه دعوی رد کړه او دا سی یې څرګنده کړه چې حقا ني عبادت او د نیکی عمل یو اخي دا نه دی چې انسان لویدیز او یا ختیز ته مخ کړی خو د الله ﷻ په طاعت ،امر منلو او ټینګ رښتوني ایمان باندی حساب کول کیږي.

## لغتونه:

(البر) ټولو طاعاتو او ښو کارونو ته ویل کیږي (الرقاب) د رقبې جمع او غاړي ته ویلی شي ، چې په ټول بدن یې اطلاق کیږي لکه چې سترګي ته جاسوس وایي ،اوله رقاب څخه په آیت کي څني بندیان او مریونه مقصد دی (البأساء) فقر او بیوزلي (الضرآء) درد او ناروغي (البأس) جنګ او جګړه له اصله بأس شدت ته ویل کیږي، (کتب) فرض کړی شوی (القصاص) هغه بالمثل عقوبت او جزاء ته وایي که قتل دی او که پرهار له قص څخه اخیستل شوی او هغه د پله تعقیب کولو ته وایي لکه د الله داقول (وقالت لاخته قصیه)یعني اودموسی علیه السلام خورته یې وویل چې د هغه صندوق تعقیب کړه. (القتلی) د قتیل جمع او مذکر مؤنث دواړه یکي برابر دی ویل کیږي (رجل قتیل) و(امرأة قتیل) (الالباب) دلب جمع اوله لب النخلة څخه اخیستل شوی عقل ته وایي (اثما ) ګناه (جنفًا ) جنف له حق څخه عدول کولو ته وایي چې د خطا لاره غوره کړي.

## د نزول سبب:

قتاده ﷺ وایي چې د جاهلیت په خلګو کی د شیطان پیروي او له حق څخه سرغړونه زیاته وه کله چې به په یوه کلي کی زورور ؤو نو چې د دوی مریی به یو چا ووژل دوی به ویل مونږ یې په بدل کي حراو اصیل وژنو او که به یې ښځه د بل قوم ښځې ورووژله نو دوی به ویل چې مونږ به یې خامخا نارینه وژنو بیا الله ﷻ دا آیت شریف نازل کړی (الحرُ بالحرِ والعَبدُ بالعَبدِ والأنثی بالأنثی)(۱)

## تفسیر:

﴿ لَّيْسَ ٱلْبِرَّ أَن تُوَلُّوا۟ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ ٱلْمَشْرِقِ وَٱلْمَغْرِبِ ﴾ نه ده نیکي (یوازي دا چې و ګرزوي مخونه خپل (په لمانځه کي) د مشرق یا مغرب لوري ته﴿ وَلَـٰكِنَّ ٱلْبِرَّ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ ﴾لکن غوره نیکي د هغه چاده چې

(۱) الدر المنثور ۱۷۳/۱

په الله او دقيامت په ورځ يې ايمان راوړی وي ﴿ وَالْمَلَٰٓئِكَةِ وَالْكِتَٰبِ وَالنَّبِيِّـۧنَ ﴾ او په پرښتو او په (تولو) کتابو (او ايمان يې راوړی وی) په واړه انبياو ﴿ وَءَاتَى ٱلْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِۦ ذَوِى ٱلْقُرْبَىٰ ﴾ او ورکوي مال په محبت دهغه خپلوانو ته څکه دوی دلمړيتوب حق لری ﴿ وَٱلْيَتَٰمَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينَ وَٱبْنَ ٱلسَّبِيلِ ﴾ او رکوي خپل مال يتيمانو ته او مسکينانو ته او مسافرانو ته يعنی هغه چي پلار يې مړ وي او يا هم ناداره مسکينان يا له خپلو مالو څخه ليري پاتي مسافران وي ﴿ وَٱلسَّآئِلِينَ وَفِى ٱلرِّقَابِ ﴾ او ناداره سوالګرو ته او په آزادولو د مرييانو کي.

﴿ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ او دروي لمنځونه او ورکوي زکاتونه چي دا دواړه د اسلام مهم ارکان دی ﴿ وَٱلْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَٰهَدُوا۟ ﴾ او وفا کونکي دی په وعدو خپلو کله چي وعده وکړي مخالفت يې نه کوي ﴿ وَٱلصَّٰبِرِينَ فِى ٱلْبَأْسَآءِ وَٱلضَّرَّآءِ وَحِينَ ٱلْبَأْسِ ﴾ او صبر کوونکی دی په سختيو او په رنځونو کي او په وخت د جنګ په لاره دالله کی دغه په نصب سره راوړل يې د مدح او صفت کولو لپاره ده يعني صفت کوو دصبر کوونکو ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ صَدَقُوا۟ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُتَّقُونَ ﴾ او دغه هغه خلک دی چي صداقت يې کړی (په دين ، متابعت او دنيکي په غوښتنه کي) او دغه کسان هم دوی دی پرهيزګاران په دين کي په نيکانو خلګو ثنا لوستل شوي او دي ته اشاره ده چي دوی به اطمينان او ښکلي ژوند مومي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلْقِصَاصُ فِى ٱلْقَتْلَى ﴾ اې هغو خلګو چي ايمان يې راوړی دی (اې مؤمنانو) فرض کړل شوی دی په تاسي باندي قصاص (برابر والی) په وژل شويو کي نه بايد تجاوز وکړي او نه هم دښمني ﴿ ٱلْحُرُّ بِٱلْحُرِّ وَٱلْعَبْدُ بِٱلْعَبْدِ وَٱلْأُنثَىٰ بِٱلْأُنثَىٰ ﴾ اصيل په اصيل باندی مريی په مريي باندی ښځه په ښځه باندی قصاصيږي. تاسي يې له قاتله پرته بل بې ګناه تن مه وژنئ څکه دا ظلم او تجاوز دی. ﴿ فَمَنْ عُفِىَ لَهُۥ مِنْ أَخِيهِ شَىْءٌ ﴾ نو هغه څوک چي عفوه وکړه شي ده ته (له قصاصه د اسلامي) ورور دده نه څه شی ﴿ فَٱتِّبَاعٌۢ بِٱلْمَعْرُوفِ وَأَدَآءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَٰنٍ ﴾ نو لازمه ده (په دې عفوه کوونکي) په ښه وجه ددیت مطالبه او ورکول ددیت په ښه وجه سره يعني نه خودی عفوه کونکي قاتل په خور کوي چي په زور سره څني ديت اخلی او نه دي هم قاتل هسي کوي چي ددیت په ورکولو کي مخ او شاته کيږي څنډ پکي اچوي په ښه وجه يې نه ورکوي .﴿ ذَٰلِكَ تَخْفِيفٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ﴾ دا کار (دقصاص جواز يا ديت يا عفوه) آساني ده له طرفه درب ستاسی او مهرباني ده، څکه په ديت کي دقاتل لپاره اساني او دمقتول دخپلوانو لپاره يو څه نفع او په تحقيق سره اسلام دقتل په جزاکي عدل او رحمت دواړه نغښتي دی څکه قصاص يې دمقتول دخپلوانو حق بللی که يې غوښتل قصاص کولای شي او دا عدل دی او ديت يې هغه وخت روا ګڼلی کله چي قصاص له قاتل څخه نه غواړي او دا د رحمت بيلګه ده. ﴿ فَمَنِ ٱعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُۥ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ نو هر چا چي زياتوالی وکړ (په ظلم او وژلو دقاتل) وروسته ددیت له اخستلو او منلو څخه) نو ده لره ده عذاب دردناک (په آخرت کي) ﴿ وَلَكُمْ فِى ٱلْقِصَاصِ حَيَوٰةٌ يَٰٓأُو۟لِى ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ او تاسي لره په قصاص کي ژوندون شته اې دعقل خاوندانو څکه هر څوک چي پوه شي که څوک يې ووژل نو به دی ورباندي قصاص کيږي نو ويريږي او څوک نه وژني پدې سره ګواکي دقاتل خپل ژوند او دمقتول ژوند خوندي پاتي شول ، او پدې باندي ويني ژغورل کيږي او

دخلگو ژوند تأمينيږي ﴿ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴾ لپاره ددې چې تاسي خان وساتئ له ناحقه وينو څخه او دالله ﷻ له محارمو او ګناهو نوڅخه ﴿ كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ ﴾ فرض کړل شوی دی پر تاسی باندی کله چې حاضر شي يو له تاسو ته (اسباب دمرګ) ﴿ إِن تَرَكَ خَيْرًا ﴾ که چيری څه مال يې پرې ايښی وي ﴿ ٱلْوَصِيَّةُ لِلْوَٰلِدَيْنِ وَٱلْأَقْرَبِينَ ﴾ وصيت کول لپاره دموراو پلاراو (نورو) خپلوانو. ﴿ بِٱلْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى ٱلْمُتَّقِينَ ﴾ په ښه انصاف سره دا حکم لازم دی په هيزګارانو باندی چې تر يوه دريمه زيات به وصيت نه کوي او نه به همداسي وصيت کوي چې مسکينان پريږدي او بدايانو ته يې ورکړي او دا دميراث دآيتونو تر نزول له مخه واجب ؤو اوکله چې دميراث آيت نازل شو منسوخ وګرځيدو ﴿ فَمَنۢ بَدَّلَهُۥ بَعْدَ مَا سَمِعَهُۥ ﴾ نو هر چاچي بدل کړدا وصيت وروسته له هغه چې وايې وريده هغه (له وصي او شاهد څخه) ﴿ فَإِنَّمَآ إِثْمُهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُۥٓ ﴾ نو هم دا خبره ده چې ګناه ددې (بدلولو) په هغو کسانو ده چې بدلوي يې دا وصيت ځکه دوی دشرعي حکم مخالفت اوهم خيانت کوي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ بيشکه چې الله ﷻ ښه اوريدونکی (دټولو اقوالو) ښه پوهيدونکي دی (په ټولو احوالو) پدې کي دبدلونکو لپاره سخت وعيد دی ﴿ فَمَنْ خَافَ مِن مُّوصٍ جَنَفًا ﴾ (نو هغه څوک چې وويريږي له وصيت کونکي څخه دظلم (په خطا سره) يعني چې پدې پوه شي او يا يې ګومان ورسيږي چې موصٰی له حق څخه په خطا لوري ميل او کږوالی کوي ﴿ أَوْ إِثْمًا ﴾ او يا په قصد سره دګناه ﴿ فَأَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ﴾ نو اصلاح وکړي په منځ ددوی (موصٰی او موصٰی له) نونشته هيڅ ګناه په ده باندی په دغه تبديلي او تغير باندي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ بيشکه الله ښه بخښونکي پوره رحم لرونکي دی په هغه چاچي پخپلو کړو وړو کي داصلاح قصد لري.

## بلاغت:

١. (وَلَٰكِنَّ ٱلْبِرَّ مَنْ ءَامَنَ) پدې کلمه کي مبالغه ده ځکه چې نيکي يې دمؤمن وګنله او دبلغاؤ په کلام کي داسي ډير ليدل شوي چې وايي (سخاءحاتم) و(الشعر زهير) يعنی سخا سخا دحاتم طايي ده او شعر شعر دزهير دی ځکه نو سيبويه په دې هکله وايي چې الله ﷻ په خپل کلام کي فرمايي (وَلَٰكِنَّ ٱلْبِرَّ مَنْ ءَامَنَ) او خبره داده بله نه ده چې (وَلَٰكِنَّ ٱلْبِرَّ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ) (١) او ددی مثال هسي ده لکه چې ووايي سخا دانه ده چې يوه روپۍ ورکړي خو سخا هغه ده چې په زرهاؤ وي مناسب داسي ده چې وويل شي سخي هغه ده چې په زرهاؤ روپۍ ورکوي.

---

(١) البحر المحيط ٣/٢.

۲. پدې کلمه کې چې فرمايي: (وَفِي ٱلرِّقَابِ) دلته ايجاز بالحذف دی معنی يې دا چې په خلاصولو دغاړو کې يعني دبنديانو په را خلاصولو کې همدا رنګه (الرقاب) په کلمه کې مرسل مجاز دی چې جز ذکر شوی او مراد ځني کل دی يعنی يوازې غاړه را وړل شوې مقصد ځنې ټول بدن دې.

۳. پدې جمله کې چې فرمايي: (وَٱلصَّٰبِرِينَ فِي ٱلْبَأْسَآءِ) اصل خو داؤو چې مرفوع ذکر شوی وای لکه: (وَٱلْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ) خو دلته يې په ځانګړې توګه نصب ورکړی او دبلغاؤو ترمنځ داسي اسلوب د (قطع) په نامه پيژندل شوی هغه دا چې کله دمدح او يا ذم صفتونه ذکر شي او په اعراب کې يې بدلون او تغير ځرګند شي نو تفنن ګڼل کيږي ځکه له معلوم ځخه تغير په زيات اهتمام او اعتناء دلالت کوي چي او ريدونکی ورته ښه خير او تشويق شي.

۴. (أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ) په دغه جمله کې خبر دماضي فعل راغلی چې تحقيق افاده کړی او دا چې دغه کار له دوی ځخه واقع شوی دی په دوهمه جمله کې خبر جمله اسميه راغلې چې: (وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُتَّقُونَ) تر ځو په ثبوت دلالت وکړي او چې دغه يې ګواکې خوی خاصيت دی سر بيره پردې دفاصلې رعايت هم پکې شوی دی.

۵. پدې قول کې چې فرمايي: (حَقًّا عَلَى ٱلْمُتَّقِينَ) دا دهځوني او راپارونې لپاره ده.

۶. پدې کلماتو کې چې فرمايي: (اتباع) او (اداء) او (حر) او (عبد) دطباق صنعت راوړل شوی دی.

## فوائد او ګټې:

لومړۍ فائده: دا چې الله ﷻ داخوت په کلمه سره ذکر فرمايلې: (فَمَنْ عُفِيَ لَهُۥ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ) ددې لپاره ده چې ديني ورورولي ورپه ياد کړي الله پاک قاتل دمقتول دولي ورور ياد کړی تر ځو مينه او عواطف يې يو له بله سره وپښن کاندي او ترمنځ يې عفو او يا ورکړه د ديت په ښه وجه او اخيستل په احسان سره تر سره شي.

دوهمه فائده: په بني اسرائيلو کې يوازې قصاص ؤو او ديت پکې روانه ؤو او په نصارا ؤو کې بيا ديت ؤو خو قصاص پکې نه ؤو الله ﷻ دغه محمدي امت دقصاص، ديت او عفو بخښښ په هکله اختيار لرونکی جوړ کړ او دا ګواکې دمحمدي شريعت على صاحبها الف الف صلوة وسلام آسانتيا ځرګندوي.

دريمه فائده: دبديع او بيان پوهان او علماء په دې کې اتفاق لري چې دا آيت شريف چې فرمايي: (وَلَكُمْ فِي ٱلْقِصَاصِ حَيَوٰةٌ يَٰٓأُوْلِي ٱلْأَلْبَٰبِ) دبلاغت په لوړو پوړيو کې ده او له عربو ځخه دهمدې مقصد په هکله يو بل متل رانقل شوی چې وايي: (القتل انفىٰ للقتل) خو په قرآنکريم کې دحکمت له کبله دحسن بيان له پلوه بهتري او فضل شته که غواړي چې دقرآني بلاغت په بهتري او په لوړه مرتبه يې له هغه کلام ځخه چې بلغاء او اديبان يې وايي خبر شي نو دغو دوو عبارتو نو ته وګوره هله به بيا تاته داعجاز له ورځو هغه څه درځرګند شي چې دخالق او مخلوق دکلام ترمنځ ځومره توپير موجود دی؟ قرآني حکمت دژوندانه سبب قصاص بللی او هغه دبرابرې وژلو ته وايي چې دقتل په سبب قاتل ووژل شي او عربي متل دژوندانه سبب قتل بللی او قتل خو هغه دی چې په ظلم هم وي نو به دتباه کيدلو سبب وی خو دهمدغه عبارت تصحيح دا ډول کيدای شي چې ووايي: (القتل قصاصا انفىٰ للقتل ظلما) يعني هغه قتل چې دقصاص وي هغه دهغه قتل ورکونکي دی کوم چې په ظلم تر سره شوی وی آيت شريف له تکرار ځخه پرته راغلی او په متل کې دقتل کلمه دوه ځله تکرار راغلې چې هغه دروندوالی او ثقل پکې پروت

دی کوم چي په آیت شریف کي نشته او له نورو باریکو توپیرونو څخه یو دا هم دی چي آیت شریف قصاص دژوندانه سبب ګڼلی او متل قتل او وژل دقتل دورکولو سبب بللی هغه چي دژوندانه مستلزم نه دی ، علمائ کرامو په شمیر سل دوله توپیرونه دقرآني آیت شریف او دعربي متل ترمنځ ذکر کړی چي سیوطي په اتقان نومي کتاب کي راوړی که زړه دی وی هلته يې وګوره چي تنده دي ماته شي.

الله تعالی فرمایي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ﴿١٨٣﴾ أَيَّامٗا مَّعۡدُودَٰتٖۚ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٖ فَعِدَّةٞ مِّنۡ أَيَّامٍ أُخَرَۚ وَعَلَى ٱلَّذِينَ يُطِيقُونَهُۥ فِدۡيَةٞ طَعَامُ مِسۡكِينٖۖ فَمَن تَطَوَّعَ خَيۡرٗا فَهُوَ خَيۡرٞ لَّهُۥۚ وَأَن تَصُومُواْ خَيۡرٞ لَّكُمۡ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ﴿١٨٤﴾ شَهۡرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ فِيهِ ٱلۡقُرۡءَانُ هُدٗى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَٰتٖ مِّنَ ٱلۡهُدَىٰ وَٱلۡفُرۡقَانِۚ فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ ٱلشَّهۡرَ فَلۡيَصُمۡهُۖ وَمَن كَانَ مَرِيضًا أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٖ فَعِدَّةٞ مِّنۡ أَيَّامٍ أُخَرَۗ يُرِيدُ ٱللَّهُ بِكُمُ ٱلۡيُسۡرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ ٱلۡعُسۡرَ وَلِتُكۡمِلُواْ ٱلۡعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُواْ ٱللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَىٰكُمۡ وَلَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ ﴿١٨٥﴾ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌۖ أُجِيبُ دَعۡوَةَ ٱلدَّاعِ إِذَا دَعَانِۖ فَلۡيَسۡتَجِيبُواْ لِي وَلۡيُؤۡمِنُواْ بِي لَعَلَّهُمۡ يَرۡشُدُونَ ﴿١٨٦﴾ أُحِلَّ لَكُمۡ لَيۡلَةَ ٱلصِّيَامِ ٱلرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَآئِكُمۡۚ هُنَّ لِبَاسٞ لَّكُمۡ وَأَنتُمۡ لِبَاسٞ لَّهُنَّۗ عَلِمَ ٱللَّهُ أَنَّكُمۡ كُنتُمۡ تَخۡتَانُونَ أَنفُسَكُمۡ فَتَابَ عَلَيۡكُمۡ وَعَفَا عَنكُمۡۖ فَٱلۡـَٰٔنَ بَٰشِرُوهُنَّ وَٱبۡتَغُواْ مَا كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمۡۚ وَكُلُواْ وَٱشۡرَبُواْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ ٱلۡخَيۡطُ ٱلۡأَبۡيَضُ مِنَ ٱلۡخَيۡطِ ٱلۡأَسۡوَدِ مِنَ ٱلۡفَجۡرِۖ ثُمَّ أَتِمُّواْ ٱلصِّيَامَ إِلَى ٱلَّيۡلِۚ وَلَا تُبَٰشِرُوهُنَّ وَأَنتُمۡ عَٰكِفُونَ فِي ٱلۡمَسَٰجِدِۗ تِلۡكَ حُدُودُ ٱللَّهِ فَلَا تَقۡرَبُوهَاۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ ءَايَٰتِهِۦ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَتَّقُونَ ﴿١٨٧﴾ ﴾ البقرة: ١٨٣ - ١٨٧

## مناسبت او تړاو:

الله تعالی په تیرو آیتونو کي دقصاص حکم راوړ بیا يې وړسې و- یت کول مور او پلار او خپلوانو ته ذکر کړل وروسته يې دروژې احکام په تفصیلي توګه بیان کړل څکه دسورت دغه برخه په شرعي احکامو مشتمله ده، او څرنګه چي روژه ددین له ډیرو مهمو ارکانو څخه ده الله ﷻ دلته ذکر کړه تر څو خپلو بندګانو ته دسپېڅلتیا پړاوونه او دنیکانو متقیانو معراجونه ورکړي.

لغتونه: (الصيام) په لغت کي امساک ته ویل کیږي ابو عبیده وایي چي هر څوک چي له خوړلو څښلو خبري کولو او له تګ کولو څخه امساک کوي ورته صائم ویلی شي ، په شرعي اصطلاح کي دورځي په اوږدو کي له خوړلو څښلو او جماع څخه دروژي په نیت ځان ساتل دی ، (یطیقونه) یعني هغه چي په مشکل او تکلیف روژه نیسي راغب وایي طاقت هغه اندازي کارته وایي چي انسان يې دکولو امکان سره له تکلیفه ویني څکه نو له طوق سره مشابه ګڼل شوي چي په یو شی راګرځیدلي وي(١) (فدية) بدل هغه چي انسان يې دخپل ځان په بدل کي مال

---

(١) مفردات القرآن للراغب ص٣١٢.

(شهر) له اشتهار څخه اخيستل شوی او ځرګندوالی ته وايي (رمضان) له رمض څخه ده او سختي ګرمي ورکوي او تودوخي ته وايي او دروژې مياشت ځکه رمضان وبلل شوه چې هغه دمسلمانانو ګناهونه سيځي (الرفث) جماع او دهغې اسبابو ته وايي (رفث) په اصل کي بد و خبروته وايي خو دلته له کوروالي (جماع) څخه کنايه راغلي ده (تختانون) په لسان العرب کي وايي چې (خانه واختانه او مخانة) له خيانت څخه اخيستل شوی او دامانت ضد دی له يو چا څخه دتوري په هکله وپوښتل شول چې هغه په څواب کي ورته وويل: چې دورور لپاره دی هم ده که يې ستا (په ناموس کي) خيانت کاوو (عاکفون) اعتکاف په لغت کي درنګ کولو او ملازمت ته وايي خو په شرعي اصطلاح کي په مسجد کي دعبادت لپاره پاتي کيدلو ته اعتکاف وايي (حدودالله) حد په لغت کي منع ته وايي او په اصل کي ددوو متقابلو او مخامخ شيانو تر منځ بيلونکي څيز يا علامې ته حد وايي شرعي احکامو ته چې حد ود وويل شول دوې هم دحق او باطل بيلوونکي دی.

دنزول سبب:

روايت دی: چې يوې تولې صحرايي اوسيدونکو اصحابانو له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې: اې محمده ! زموږ رب نژدې ده چې ورسره مناجات وکړو او که ليري دی چې ورته ناري کړو؟ بيا الله ﷻ دا آيت نازل کړ: (وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِى عَنِّى فَإِنِّى قَرِيبٌ) دآيت شريف تر پايه.

تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ اې مؤمنانو ! دايمان په لفظ يې ورته غږ کړ تر څو چې دطاعت مشاعريې راوپاروي او دايمان سکروته يې لمبه او بل کړي ﴿ كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلصِّيَامُ ﴾ فرض کړی شوی ده پر تاسي باندی روژه (درمضان دمياشتی) ﴿ كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ ﴾ لکه چې فرض کړی شوی وو پر هغو کسانو چې پخوا له تاسي څخه ؤو (هغه پخواني امتونه) ﴿ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴾ لپاره ددې چې تاسو دالله متقيان بندګان جوړ شي هغه چې دالله له محارمو ځان ژغوری ﴿ أَيَّامًا مَّعْدُودَٰتٍ ﴾ يو څو ورځي شميرلې شوې يعني دروژې ورځي لږدي تول عمر خو دربادی فرض نه ده او دا په تاسي باندی درحمت پيرزوينه او اسانتيا ده ﴿ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ﴾ پس هر څوک چې وي له تاسي څخه ناروغ او يا په سفر روان او روژه ونه نيسي) نو (پر ده باندی لازم ده روژه نيول دخوړليو شپو) له نورو ورځو چې قضا به يې راوړي ﴿ وَعَلَى ٱلَّذِينَ يُطِيقُونَهُۥ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ ﴾ او هغه کسان چې دروژې نيولو توان لري (خو له مشقت او تکليف سره چې يا بوډا او يا ضعيف وی) فديه ورکول دي خوراک ديوه مسکين په بدل دهري ورځي روژه خوړلو کي ﴿ فَمَن تَطَوَّعَ خَيْرًا ﴾ پس هرڅوک چې پخپله خوښه کومه نيکي وکړي يعني له دغي پيمانې دیو مسکين خوراک زيات څه ورکړي ﴿ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُۥ ﴾ نو دغه بهتره ده ده لره الله تعالی فرمايي: ﴿ وَأَن تَصُومُوا۟ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ او روژه نيول ستاسي (سره دافطار له رخصته) ډير بهتر دی تاسي لره (له خوړلو څخه) که چيري يې تاسي چې پوهيږی چې په روژه کي څومره اجر او فضليت شته بيا الله ﷻ دروژې مياشت او وخت بيانوي ﴿ شَهْرُ رَمَضَانَ

﴿ ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ فِيهِ ٱلۡقُرۡءَانُ هُدٗى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَٰتٖ مِّنَ ٱلۡهُدَىٰ وَٱلۡفُرۡقَانِ ﴾ (د روژې مياشت هغه ده چي نازل کړی شوی دی پدې کي قرآن چي هدايت دی لپاره د خلګو او دليلونه دی ښکاره چي هغه لاره ښيي او بيلونکي دحق او باطل دی) يعنی هغه شميرلی ورځي چي په تاسو يي روژه نيول فرض کړی شوی دی اې مؤمنانو (هغه مياشت ده چي دقرآن کريم دنزول پيل په کي شوي دی هغه چي دخلګو لپاره لار ښود او په کي ارشاد او اعجاز موجود دی دلار ميندلو څرګند دلائل پکښي شته او دحق او باطل بيلونکي دی ﴿ فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ ٱلشَّهۡرَ فَلۡيَصُمۡهُ ﴾ نو هر څوک چي ومومي له تاسي (اې مکلفينو) دا مياشت نو ضروري ده چي روژه ونيسي دهغې (مياشتي) ﴿ وَمَن كَانَ مَرِيضًا أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٖ فَعِدَّةٞ مِّنۡ أَيَّامٍ أُخَرَ ﴾ او څوک چي له تاسي څخه ناروغ او يا په سفر روان وي نو پر ده باندی دی (روژه نيول) په شمار (دخوړل شو و روژو) له نورو ورځو څخه او دا يې تکرار ذکر کړ چي څوک داسي ګومان ونکړي چي پخوانی همدا حکم به دمياشتي دموندلو په عمومي حکم چي روژې نيول دی نسخ شوی وی ﴿ يُرِيدُ ٱللَّهُ بِكُمُ ٱلۡيُسۡرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ ٱلۡعُسۡرَ ﴾ اراده لري الله په تاسي باندی دآسانتيا او اراده نلري په تاسي باندی دسختي يعني الله په دغه رخصت کي ستاسي آسانتيا اراده کړې دتکليف او مشقت اراده او غوښتنه يې نه ده ﴿ وَلِتُكۡمِلُواْ ٱلۡعِدَّةَ ﴾ او لپاره ددې چي پوره کړي (تاسي په قضا راوړلو سره) شمار (دروژې دمياشتي) ﴿ وَلِتُكَبِّرُواْ ٱللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَىٰكُمۡ ﴾ او چي په لويي سره ياد کړئ الله پدې چي هدايت يې کړی دی تاسي ته. ﴿ وَلَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ ﴾ او دپاره ددې چي تاسي شکر وباسئ دالله ﷻ دفضل او احسان... بيا الله ﷻ داسي وفرمايل: چي هغه بلونکو ته نژدې دی دهغوی دعاګاني مني او دحاجتمندو حاجتونه پوره کوي ﴿ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ ﴾ او کله چي پوښتنه وکړي له تا څخه (اې محمده ا) بندګان زما (له ليري والي او نژدې والي) زما نو بيشکه زه نژدې يم) يعني زه له دوی سره يم دعاګاني يې اورم او بيوزلي او عجز تضرع يې وينم او وربانديې پوه يم چي څه حال يې دی لکه چي بل ځای فرمايي: ﴿ وَنَحۡنُ أَقۡرَبُ إِلَيۡهِ مِنۡ حَبۡلِ ٱلۡوَرِيدِ ﴾ [ق: ۱۶] ﴿ أُجِيبُ دَعۡوَةَ ٱلدَّاعِ إِذَا دَعَانِ ﴾ (قبلوم سوال دغوښتونکي په هغه وخت کي چي وبولي ما) يعني کله چي يې غوښتنه له ايمان او دزړه له خشوع سره جوخته وي زه يې قبلوم ﴿ فَلۡيَسۡتَجِيبُواْ لِي وَلۡيُؤۡمِنُواْ بِي لَعَلَّهُمۡ يَرۡشُدُونَ ﴾ نو ښايي چي دوی هم ومني حکم زما او ټينګ دی اوسي په ايمان په ما باندی ښايي چي دوی په سمه لار باندی محکم پاتي شي يعنی که چيري زه ستاسو غني پالونکی پروردګار يم ستاسي دعاوي منم نو تاسي زما بلني ته غاړه کښيږدی چي دايمان او طاعت بلنه دركوم په ايمان باندی ثابت اوسئ تر څو نيکمرغه راشدين پاتي شئ ، بيا الله دروژې دنورو حکمونو دبشپړولو بيان وروسته له هغه چي دنزديکت او دعا منلو ارشاد يې وکړ داسي پيل کړ ﴿ أُحِلَّ لَكُمۡ لَيۡلَةَ ٱلصِّيَامِ ٱلرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَآئِكُمۡ ﴾ حلال کړی شوی دی تاسي ته په شپه کي دروژې يو ځای والی (جماع) له خپلو ښځو (ميرمنو) ﴿ هُنَّ لِبَاسٞ لَّكُمۡ وَأَنتُمۡ لِبَاسٞ لَّهُنَّ ﴾ (دوی لباس دی تاسي لره او تاسي لباس (جامې) يې دوی لره) ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي دوی ستاسي

لپاره سکن ارامتیا او تاسي ددوی لپاره یاست ﴿ عَلِمَ ٱللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ ﴾(معلوم دی الله ته چي بیشکه تاسي یئ چي خیانت کوئ په ځانو نو خپلو) یعني دا چي دروژې په شپو کي کوروالي (جماع) کوئ او دا د اسلام په پیل کي حرام وه بیا وروسته نسخ شوه بخاري رحمه الله له براء رضی الله عنه څخه روایت کوي چي هغه وویل: کله چي به د رمضان میاشت رابره شوه نو به ټوله میاشت میرمنو ته نه نژدې کیدل (جماع به یې ورسره نه کوله) خو خینو کسانو به بیا خیانت کاؤو په ځانونو خپلو (کوروالي به یې کاوو) نو الله ﷻ دا آیت شریف نازل کړ. ﴿ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ ﴾ستاسی توبه یې قبوله کړه او ښښنه یې وکړه له تاسي د تیر شوي خیانت تر پخوا د منسوخ کیدلو) ﴿ فَٱلْـَٔـٰنَ بَـٰشِرُوهُنَّ وَٱبْتَغُوا۟ مَا كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمْ ﴾نو اوس جماع کوئ له خپلو ښځو سره او وغواړئ هغه څه چي لیکلي دی الله ستاسي لپاره یعني تاسي له هغوی سره یوازي د شهواني غریزې د اشباع لپاره جماع مه کوئ بلکه د هغوی په جماع سره د اولاد غوښتنه کوئ. ﴿ وَكُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ ٱلْخَيْطُ ٱلْأَبْيَضُ مِنَ ٱلْخَيْطِ ٱلْأَسْوَدِ مِنَ ٱلْفَجْرِ ﴾ (او خورئ او څښئ تاسي تر هغه پوري چي ښکاره شي تاسي ته تار سپین (جلا) له تاره توره (چي سپین تار) عبارت له سبا څخه (دی) ﴿ ثُمَّ أَتِمُّوا۟ ٱلصِّيَامَ إِلَى ٱلَّيْلِ ﴾(بیا پوره کړئ روژه تر شپې پوري) یعني د لمر تر ډوبیدلو پوري له خوړلو څښلو او کوروالي (جماع) څخه ځان وساتئ. ﴿ وَلَا تُبَـٰشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَـٰكِفُونَ فِى ٱلْمَسَـٰجِدِ ﴾او مه نژدې کیږئ ښځو ته (په جماع سره) حال دا چي تاسي معتکفان یئ په مسجد ونو کي) یعني کله چي معتکفین یاست مه په شپه او مه په ورځ کي ښځو ته نژدې کیږئ ﴿ تِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا ﴾(دا احکام او حدود د الله دی نو مه نژدې کیږئ دوی ته (په ماتولو سره) یعني دغه د الله اوامر او زواجر دی هغه چي ستاسو لپاره یې تاکلي نو مخالفت یې مه کوئ. ﴿ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ ءَايَـٰتِهِۦ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴾ همداسی بیانوي الله آیتونه خپل لپاره د خلکو چي دوی ځان وساتي (د دې حدودو له مخالفته) او محارمو څخه.

بلاغت:

١ - په دې آیت شریف کي چي فرمایي (كَمَا كُتِبَ...) تشبیه په فرضیت کښي ده نه په کیفیت او څرنګوالي کي یعني همداسی فرض شوي لکه چي فرض شوی دی په پخوانیو امتونو او دغي تشبیه ته مرسله مجمله وایي.

٢ - (فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ) دلته ایجاز بالحذف دی یعنی (من كان مريضا فافطر او على سفر فافطر فعليه قضاء ايام بعدد ما افطر ) یعني څوک چي ناروغ وي روژه وخوري او یا په سفر روان وی ویې خوري نو په ده باندي د همدغو خوړل شوو شپو قضایي روژه نیول شته.

٣ - (وَعَلَى ٱلَّذِينَ يُطِيقُونَهُۥ) د جلالین شریف په تفسیر کي یې د (لا) کلمه ورسره مقدر کړې (لايطيقونه) خو دغه تقدیر ته ضرورت نشته څکه دآیت معنا داده چي له مشقت سره یې توان لري او دا لکه بوډا او تی ورکونکي (مرضعه)مور او یا هم امیدواره میرمن دوی خو روژه نیولای شي لکن له زیات تکلیف سره او طاقت دهغه څه نوم دی څوک چي دیو کار توان سره له تکلیفه او سختي لري.

۴ - دالله ﷻ په دې کلام کې چې فرمايي: (يُرِيدُ ٱللَّهُ بِكُمُ ٱلْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ ٱلْعُسْرَ) د(طباق السلب) صنعت چې له بديعي محسناتو څخه ګڼل کيږي راغلې دی.

۵ - (ٱلرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَآئِكُمْ) الرفث له جماع (کوروالي) څخه کنايه او په الی باندی متعدي شوی ځکه چې د افضاء معنی پکې نغښتې شوې ده هغه چې خلوت ته وايي او دا له کناياتو څخه شميرل کيږي لکه دا قول دالله تبارک وتعالی: ) (فلما تغشاها) او يا دا چې: (فأتوا حرثکم) او يا دا: (فالآن باشروهن) ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې الله عز وجل کريم او حکيم دی کنايه راوړي.(روائع البيان ۱۹۰/۱ تلخيص البيان ص ۱۲).

۶ - پدې آيت کې چې فرمايي (هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ) دلته ښکلې استعاره ده ځکه هر يو دميړه او ميرمنې يې له لباس سره تشبيه کړې چې يو په بل رانغاړل شوې وي لکه لباس او جامې غونډې چې په اغوستونکي راتاو شوې وي نو لباس استعاره ده. (الکشاف ۱۷۵/۱).

۷ - شريف رحمه الله وايي چې پدې کلام کې چې فرمايي (ٱلْخَيْطُ ٱلْأَبْيَضُ مِنَ ٱلْخَيْطِ ٱلْأَسْوَدِ) پدې کې عجيبه استعاره ده چې مراد ځني (دسباؤون سپين والی او دشپې توروالی دی او دوه تارونه مجاز راغلی او دوی يې ځکه تشبيه کړل ځکه چې دسهار سپين والی په اول ختلو کې وي چې نری ځليږي او دشپې توروالی تلونکی او ختميدونکی وی نو دواړه ډير ضعيف خو دا لومړی خپريږي او زياتيږي او دادوهم زياتره پسی پټيږي او زمخشري بيا وايي چې دغه بليغه تشبيه ده.

## ګټې او فائدې:

لومړی فائده: له حسن رحمه الله څخه روايت شوی چې هغه ويلي: الله تعالی درمضان روژه په نصاراؤو او يهودانو فرض کړې وه خو يهودانو پريښوده او په کال کې به يې يوه ورځ روژه نيوله ګومان يې کاوو چې دغه ورځ دفرعون دډوبيدلو ده، او نصاراؤو درمضان روژه نيوله خو يووخت له سختې ګرمي سره يې سمون راغی نو دوی داسې وخت ته واړوله چې تغير نه مني او بيا يې وويل چې موږ به يې زياته نيسو لس ورځ يې وربادندی زياتي کړې او بيا وروسته له څه مودې يې پاچا ناروغ شو اووه روژې يې نذر کښيښودې او زياتې يې کړې بيا بل پاچا راغی نو ويل دغه درې دوله څه معنی پوره پنځوس يې کړې او دا دالله ﷻ هغه قول دی چې فرمايي: (ٱتَّخَذُوٓاْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا) (التفسير الکبير ۷۲/۵).

دوهمه فائده: حافظ ابن کثير وايي چې دالله ﷻ له لوري ددې آيت چې په دعا باعث دې دروژې داحکامو په منځ کې راوړل ددې ارشاد کوي چې په دعا کې زيارو ايستل شي کله چې شمير بشپړ شي بلکه په هر روژه ماتي کې دی دعا وشي ځکه په حديث کې راځي چې روژه لرونکي لره دروژه ماتي په وخت کې دعا منل کيږي او عبدالله بن عمر چې به کله روژه ماتوله داسې به يې ويل: (اللهم اني اسألک برحمتک التي وسعت کل شئ ان تغفرلي).

دريمه فائده: په ظاهر کې خو ددغې جملې چې: (وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِى عَنِّى) معنا داده چې دوی دالله په باب پوښتنه کوله او پوښتنه له ذات څخه نه بلکه له حالاتو څخه وې نو چې دا په ځواب کې راځي (فَإِنِّى قَرِيبٌ) په دې دلالت کوي چې دوی له نژديوالي او ليرې والي څخه پوښتنه کوله او همدارنګه ځواب په (قل) سره او يا په (فقل) سره ندی راغلی لکه چې په نورو پوښتنو کې به راتو لکه: (وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّى نَسْفًا) بلکه

الله پخپله خواب ورکوي چي بيخي نژدې والی يې څرګند شي او دا چي له هر پوښتونکي سره يوځاي دی چي اجابت يې واسطې ته اړتيا نلري.

څلورمه فائده: امام ابن تيميه رحمه الله وايي چي (الله له عرش نه دپاسه په خلکو څارندوی مهيمن او خبردار دی او په دې کي هغه ايمان چي الله خپل مخلوق ته نژدې دی داخليږي) په صحيح احاديثو کي راغلي چي هغه څوک چي تاسي يې بولی. (ورته دعا کوی) تاسو ته ستاسي دکجاوې ترغاړه نژدې ده (ان الذي تدعونه اقرب الی احدکم من عنق راحلته) او هغه چي په کتاب او سنت کي دالله ﷻ دمعيت او نژدې والي په هکله راغلي له دې سره منافي نه دی چي الله څومره لوړ دی څکه چي سبحانه وتعالی ليس کمثله شي دی.

پنځمه فائده: الله پاک له جنسي مباشرت څخه هغه چي دميړه او خپلي ميرمني تر منځ وی په يو لوړ او پاسته تعبير بيان وفرمايه تر څو موږ ته په ټولو هغو امورو کي چي دميرمنو او جنس په باب وی تعليم راکړي څکه ابن عباس رضي الله عنهما وايي: (ان الله عزوجل کريم حليم يکنی) يعنی الله عزوجل کريم او حليم دی کنايه فرمايي.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ وَتُدْلُوا۟ بِهَآ إِلَى ٱلْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا۟ فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ بِٱلْإِثْمِ
وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ (۱۸۸) ۞ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْأَهِلَّةِ ۖ قُلْ هِىَ مَوَٰقِيتُ لِلنَّاسِ وَٱلْحَجِّ ۗ وَلَيْسَ ٱلْبِرُّ بِأَن تَأْتُوا۟ ٱلْبُيُوتَ مِن
ظُهُورِهَا وَلَٰكِنَّ ٱلْبِرَّ مَنِ ٱتَّقَىٰ ۗ وَأْتُوا۟ ٱلْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَٰبِهَا ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (۱۸۹) وَقَٰتِلُوا۟
فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا۟ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ (۱۹۰) وَٱقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ
وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ ۚ وَٱلْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ ٱلْقَتْلِ ۚ وَلَا تُقَٰتِلُوهُمْ عِندَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ حَتَّىٰ يُقَٰتِلُوكُمْ فِيهِ ۖ فَإِن قَٰتَلُوكُمْ
فَٱقْتُلُوهُمْ ۗ كَذَٰلِكَ جَزَآءُ ٱلْكَٰفِرِينَ (۱۹۱) فَإِنِ ٱنتَهَوْا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (۱۹۲) وَقَٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ لِلَّهِ ۖ فَإِنِ
ٱنتَهَوْا۟ فَلَا عُدْوَٰنَ إِلَّا عَلَى ٱلظَّٰلِمِينَ (۱۹۳) ٱلشَّهْرُ ٱلْحَرَامُ بِٱلشَّهْرِ ٱلْحَرَامِ وَٱلْحُرُمَٰتُ قِصَاصٌ ۚ فَمَنِ ٱعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ فَٱعْتَدُوا۟ عَلَيْهِ
بِمِثْلِ مَا ٱعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلْمُتَّقِينَ (۱۹۴) وَأَنفِقُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا تُلْقُوا۟ بِأَيْدِيكُمْ إِلَى ٱلتَّهْلُكَةِ ۛ
وَأَحْسِنُوٓا۟ ۛ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ (۱۹۵) ﴾ البقرة: ۱۸۸ - ۱۹۵

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله ﷻ په تيرو آيتو نو کي دروژې احکام بيان کړل او مسلمانانو ته يې درمضان دمياشتي په شپو کي په خوړلو څښلو او کوروالي (جماع) رواوالی وښود وروسته يې دحرام مال خوړل ناروا وګڼل چي بغير حق مالونه خوړل او په هغه ګټه اخيستل نه خو په روژه کي روا ده او نه هم بې له روژې او لکه چي دروژې په هکله دمياشتی دليدلو خبره کيږي او دا نو بيا ګواکي دخلکو په زړه کي دمياشتي په هکله پوښتنه راپاروي چي مياشتی پخپله څه دی؟ څکه دا آيتونه فرمايي چي: مياشتي دعبادتونو لپاره که روژه وي او که نور ثوابي کړه وړه ټاکلي شوې دی.

**لغتونه:**

(الباطل ) په لغت کي تلونکي او ورکيدونکي ته وايي ويل کيږي (بطل الشئ بطولا فهو باطل) يعني باطل شوی وو يو شی ، او په شرعي اصطلاح کي حرام مال لکه دغصب ، غلا ، قمار ، جواري، او ربا (سود ) ته باطل ويل کيږي (وتدلوا ) له ادلاء څخه اخيستل شوی په اصل کي دسلواغي څروول په کوهي کي يې معنی ده خو بيا وروسته دهر قول او فعل دتر سره کولو او دمال ورکولو ته (ادلا ) وويل شوه لکه چي وايي: (ادلیٰ بحجته ) يعني خپل دليل يې وړاندي کړ ، او دلته يې معنی ورکول دی درشوت لپاره (الاهلة ) دهلال جمع ده او هغه دسپوږمی دلومړني ليدني په حالت کی هلال بولي چي بيا وروسته قمر او بيا کله چي ځلا يې بشپړه شي بدر بلل کيږي (مواقيت) دميقات جمع او هغه وخت ته وايي لکه ميعاد چي دوعد ی په معنا وي او چا بيا ويلي چي ميقات دوخت منتها ته وايي (ثقفتموهم) دموندلو او بري وربانداي تر لاسه کولو ته وايي کله چي وويل شي (رجل ثقفٌ) معنا يې داده چي ژرنيوونکي ترخپلو همزولو. (التهلكة) هلاکت او تباهي ته وايه شي.

**دنزول سبب:**

روايت کيږي چي ځينی اصحابانو ﷺ رسول الله ﷺ ته وويل چي: ولي سپوږمی په لمړي پيل کي باريکه او نری لکه تار ليدل کيږي او ورو ورو زياتيږي تر څو چي ډکه او پوره شي بيا وروسته تل کميږي آن تر دې چي هغه پخواني حالت ته ورسيږي دلمر په شان نه ده چي په يو حالت باندی وی نو دا آيت شريف نازل شو: (يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْأَهِلَّةِ) (الرازي ۵/۱۳۲-اسباب النزول للواحدي ص۲۸).

روايت کاوه شي چي انصارو به کله احرام وتاړه نو به خپل کورته له دروازې څخه نه راتلو بلکه له شاخوا به په کوم سوري را دننه شول يا به په زينو راوختل کورته به راغلل دا عمل به يې دجاهليت په وخت کي کا وو چي الله ﷻ دا آيتونه نازل کړل (وَلَيْسَ ٱلْبِرُّ بِأَن تَأْتُوا۟ ٱلْبُيُوتَ مِن ظُهُورِهَا).

**تفسير:**

﴿ وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ ﴾ (اومه خورئ مالونه ستاسي په منځو ستاسو کي په ناحقه سره) يعنی يو دبل مالونه په داسي ډول چي الله روا کړي نه وی مه خوری ﴿ وَتُدْلُوا۟ بِهَآ إِلَى ٱلْحُكَّامِ ﴾ او رسوی دا مال تر حاکمانو) چي په رشوت کي يې ورکوئ ﴿ لِتَأْكُلُوا۟ فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ بِٱلْإِثْمِ ﴾ دپاره ددې چي وخوری يو څه له مالونو دخلکو ځنی په ظلم (ناحقه سره) ﴿ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ او تاسي پوهيږی (چي دا ظلم دی) يعني دغه په رشوت کي ورکول دمال ددې لپاره کوی چي له تاسي سره دناحقه مالونو په خوړلو کي مرسته وکړي ﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْأَهِلَّةِ ﴾ (پوښتنه کوي له تا څخه (اې محمد !) له حاله دنويو مياشتو ) چي ولي لکه تار نری معلوميږي او بيا لوييږي او گرديږي بيا کميږي او نری کيږي تر څو هسي شي لکه چي پخواوه ﴿ قُلْ هِىَ مَوَٰقِيتُ لِلنَّاسِ وَٱلْحَجِّ ﴾ ورته ووايه (اې محمده !) چي دا مياشتي تاکلي شوي وختونه دی لپاره دخلکو او حج) يعنی دا ستاسو دعبادت وختونه او هغه څرگندونکي علامې دی چي تاسي وربانداي دروژې حج او زکات وختونه معلوم کړئ ﴿ وَلَيْسَ

الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا ﴾ او نه ده نیکي چې راځي کوروته دشاله لوري لکه چې به تاسي په جاهلیت کې کول) ﴿ وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَىٰ ﴾ ولکن (خاوند) دنیکي هغه څوک دی چې وویریږي (له الله ﷻ) یعني هغه نیک عمل چې تاسي الله ﷻ ته نژدې کوي هغه دالله ﷻ له محارمو څخه خان ژغورل دی ﴿ وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا ﴾ او راځئ کوروته له طرفه ددروازو دهغوی لکه څنګه چې دخلکو دود او عادت دی ﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ او وویریږئ له الله څخه ښایي چې تاسي خلاص شئ دالله ﷻ له عذابه څخه او پخپل مراد ورسیږئ دالله رضا او خوښي مو په نصیب شي ﴿ وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ ﴾ او جنګ کوئ په لاره دالله کې له هغو کسانو سره چې جنګ کوي له تاسي سره یعني له کافرانو سره داعلاء کلمة الله لپاره جنګ وکړئ ﴿ وَلَا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴾ او زیادت مه کوئ (په هیڅا باندی اې مؤمنانو) بیشکه چې الله نه خوښوي تیریدونکي له حده) یعني تاسي ددوی سره په جنګ کولو پیل مه کوئ څکه الله ﷻ ظالمان نه خوښوي دغه ددعوت او بلنې په لومړي سر کې شرعي حکم وو او بیا د(براءة) په آیت سره منسوخ شو (وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً) او چا بیا ویلي چې په هغه آیت منسوخ شوي چې له دې آیته وروسته راځي او فرمایي ﴿ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ ﴾ او ووژنئ دوی هر چیرې چې دوی ومومئ که په حل کې او که حرم کې وی ﴿ وَأَخْرِجُوهُمْ مِنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ ﴾ او وباسئ دوی له هغه خایه چې تاسي یې ایستلی یاست) یعني دوی له خپلو وطنو نو وشړئ او وباسئ لکه چې تاسي یې له مکې ایستلی واست. ﴿ وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ﴾ او فتنه ډیره سخته ده له وژلو څخه) یعني فتنه دمؤمن په دین کې (له دینه څخه اړول) ډیر سخت دي تر وژلو یې او یا دا چې دکافرانو کفر ډیر سخت او ستر دی تر هغه چې تاسي دوی په حرم کې ووژنئ نو که تاسي ددوی وژل په حرم کې سخت ګڼئ بیا خو ددوی کفر تر دې ډیر سخت دی ﴿ وَلَا تُقَاتِلُوهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتَّىٰ يُقَاتِلُوكُمْ فِيهِ ﴾ (او جنګ مه کوئ له دوی سره په نزد دمسجد حرام کې تر څو پورې چې وجنګیږي دوی له تاسي سره په دغه حرم کې) یعني تاسي رومبی خل په دوی جنګ مه پیل کوئ چې تر څو یې هغوی پیل کړی ﴿ فَإِنْ قَاتَلُوكُمْ فَاقْتُلُوهُمْ ﴾ پس که جنګ وکړ دوی له تاسي سره نو تاسي جنګ له دوی سره وکړئ) یعني که چیرې دوی جنګ پیل کړ بیا ورسره جنګ وکړئ څکه دوی دحرم شریف حرمت تر پښو لاندي کړ او څوک چې شر پیل کوی هغه ستر ظالم دی ﴿ كَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْكَافِرِينَ ﴾ (همداسي جزاء ده دکافرانو) یعني دا حکم جزا دهر کافر ده ﴿ فَإِنِ انْتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴾ پس که چیرې یې منع راوړه (له شر که نو الله به یې وبښي) نو بیشکه الله ډیر بخښونکي پوره رحم لرونکی دی ﴿ وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ ﴾ او جنګ کوئ تاسي له دوی سره تر هغه پورې چې پاتي نشي فتنه (شرک او فساد) او شي دین (حکم) خاص الله لره یعني دهغو جنګیالو سره وجنګیږئ تر څو یې شوکت مات شي او دمخکي په مخ شرک پاتي نشي او دالله ﷻ دین په ټولو ادیانو بریالی او سرلوړی شي ﴿ فَإِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ إِلَّا عَلَى الظَّالِمِينَ ﴾ پس که چیرې وګرځیدل (دوی له شرکه نو تاسی تجاوز مه کوئ پردوی) پس نشته هیڅ تیری مګر (شته

جزا دظلم) پر ظالمانو باندی) يعني كه چيري دوی ستاسي له وژلو لاس واخيست نو تاسي يې هم مه وژنئ او كه چا ووژل ظالم دی او نشته تيری مگر په ظالمانو او يا دا چي كه له شرک څخه يې توبه وكښله نو بيا يې مه وژنئ بيا الله ﷻ هسي بيان وفرمايه چي دمشركانو وژل په شهرحرام (يعني حرامه مياشت) كي ددې لپاره چي مسلمانان يې له ضرر څخه خوندي پاتي شي روادی ويې ويل: ﴿ ٱلشَّهۡرُ ٱلۡحَرَامُ بِٱلشَّهۡرِ ٱلۡحَرَامِ وَٱلۡحُرُمَٰتُ قِصَاصٞۚ ﴾ (مياشت حرامه په بدل دحرامي مياشتي كي ده او تعظيمونه سره برابر دی) يعني كه چيري يې له تاسي سره په حرامه مياشت جنگ وكړ تاسي يې هم په حرامه مياشت كي ورسره كوئ لكه چي دوی دمياشتي حرمت او ستاسي وينی تر پښو لاندي كړی تاسي هم ورسره هما غسي چلند وكړئ (او چا بيا ويلي چي هغه شهر حرام چي تاسي پكښي مكي ته داخل شوئ په بدل دهغې مياشتي كي ده چي تاسي څني گرزول شوئ او منع شوئ واست چي مكي ته راشي هغه دحديبيې په كال ذيقعده مياشت وه. ﴿ فَمَنِ ٱعۡتَدَىٰ عَلَيۡكُمۡ فَٱعۡتَدُواْ عَلَيۡهِ بِمِثۡلِ مَا ٱعۡتَدَىٰ عَلَيۡكُمۡۚ ﴾ (پس هر چا چي تيری وكړ پر تاسي باندي نو تاسي هم تيری كوئ په هغو باندی په شان دهغه چي تيری يې كړی ؤ په تاسي) يعني له خپلو ځانونو څخه شر دفع كړئ او معامله بالمثل ورسره وكړئ. ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلۡمُتَّقِينَ ﴾ او ووېرېږئ له الله ﷻ څخه او پوه شئ چي بيشكه الله له پرهيزگارانو سره دی (په مرسته او نصرت كولو كي په دنيا او آخرت كي) ﴿ وَأَنفِقُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا تُلۡقُواْ بِأَيۡدِيكُمۡ إِلَى ٱلتَّهۡلُكَةِ ﴾ (او صرفوئ مالونه خپل دالله په لار كي او مه غور ځوئ ځانونه خپل په هلاكت كي) يعنی دجهاد او په نورو تولو دخير كارونو كی خپل مال ولگوئ او بخل مكوئ چي هلاک به شئ دښمنان به درباندی برې ومومی او چا بيا ويلی چي جهاد مه پرېږدئ چي تاسي پخپلو مالونو او لادونو مشغول شئ بيا به هلاک شئ ﴿ وَأَحۡسِنُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴾ (او نيكي كوئ (په تولو عملونو كي) بيشكه چي الله دوستي كوي له نيكو كارانو سره) يعني تاسي به هله دالله ﷻ دوستان او مقربين وليان جوړ شئ.

بلاغت:

١. (يَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلۡأَهِلَّةِۖ قُلۡ هِيَ مَوَٰقِيتُ لِلنَّاسِ وَٱلۡحَجِّ) دغه دول ځواب ته دبديع په علم كي (الاسلوب الحكيم) وايي څكه دوی له رسول الله ﷺ څخه دهلال (مياشتي) په هكله پوښتنه كوله چي ولي يو ځل نرۍ معلومېږي څو چي بشپړه او رڼايې پوره شي ؟ نو بيا يې دوی ددغي مياشتي څخه دحكمت لورته واړول او لكه چي ورته وايي بهتره داوه چي تاسي دمياشتي دپيدا ينبت په هكله پوښتنه كړې واي نه خو دكوچني والي او لوی والي په هكله او دا هغه اسلوب دی چي دبلاغت علمائې (الاسلوب الحكيم) بولي.

٢. (ٱلشَّهۡرُ ٱلۡحَرَامُ بِٱلشَّهۡرِ ٱلۡحَرَامِ وَٱلۡحُرُمَٰتُ قِصَاصٞ) دلته ايجاز بالحذف دی تقدير يې داسي راغي چي: (هتک حرمة الشهر الحرام تقابل بهتک حرمة الشهر الحرام) يعني دشهر حرام عزت تر پښو لاندی كول په مقابل دعزت پايمالولو دشهر حرام كي روادی او دغه ته ايجاز بالحذف وايي.

٣. (ٱلشَّهۡرُ ٱلۡحَرَامُ بِٱلشَّهۡرِ ٱلۡحَرَامِ وَٱلۡحُرُمَٰتُ قِصَاصٞ) دتجاوز جزاته يې تجاوز وويل او دې ته مشاكلت وايي چي لفظ خو متفق مگر په معنی كي به يې اختلاف وي لكه چي وايي. (وَجَزَٰٓؤُاْ سَيِّئَةٖ سَيِّئَةٞ

مِّثْلُهَا ) زجاج وايي چي عرب کله داسي هم وايي (ظلمني فلان فظلمته ) فلاني راباندي ظلم کړي ما هم وریاندي ظلم وکړ ، يعني دظلم جزا مي ورکړه.

## ګټي او فائدې:

لومړۍ فائده: روايت کوي چي دمسلمانانو يو تن درومیانو په لښکر حمله وکړه آن تر دې چي پکي ورګډ شو نو خلګو چيغي کړي: سبحان الله پخپلو لاسونو يې ځان هلاکت او تباهي ته ورکړ ابو ایوب انصاري ﷺ وویل دا آيت: (وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ ) زموږ انصارو په باب رانازل شوی دی کله چي الله تعالی اسلام ته بری ورکړ او مرستندويان يې زيات شول نو موږ وويل کاشکي موږ دخپلو باغونو او مالونو پالنه کړې وای چي تاوان موراګرزولی وای نو دا آيت نازل شو (وَأَنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ ) نو هلاکت په پاتي کیدلو او دمال په ساتلو او پالنه کي دی چي ځوک له جهاد څخه راپاتي کړي همدا وجه وه چي ابو ايوب انصاري په تل تر تله جګه غاړه په جهادي ډګر کي ولاړ وو تر څو چي شهيد او دروم په مځکه کي ښخ کړای شو.

دوهمه فائده: په قرآنکريم کي دقتال او جهاد لفظ نه ذکر کيږي مګر ورسره جوخت في سبيل الله راځي او په دې کي څرګند دلالت دی چي له جنګ جګړې څخه يو سپيڅلی او شريف هدف او موخه شته چي هغه دالله ﷻ دکلمي لوړوالی دی نه دا چي ولجې او غنيمتونه تر لاسه کړي او يا هم ښارونه ونيسي او لوړ تيا ته ورسیږي يا داسي نور چتي او ناکاره مقصد ونه.

**تنبيه:**

ټول هغه څه چي په قرآنکريم کي دسوال (پوښتني ) په صيغه ذکر شوي ځواب يې په (قل ) کلمه ورکول شوی دی پرته دسورت (طه ) څخه چي هلته په ځواب کي (فاء ) زياته ته شوې ده چي فرمايي: (فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا ) حکمت پکي دادي چي: ځواب په نورو ټولو ځايونو کي له پوښتني وروسته ورکول شوی خو په سورت (طه ) کي مخ کي تر پوښتني ځکه تقديري يې داسي دی که چيري له تا څخه د غرونو په هکله پوښتنه وشي نو بيا ورته ووايه!

- (الفتوحات الالهية ١/١٥٢)

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِّن رَّأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ فَإِذَا أَمِنتُمْ فَمَن تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ذَٰلِكَ لِمَن لَّمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ (١٩٦) الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَاتٌ فَمَن فَرَضَ فِيهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ اللَّهُ وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَىٰ وَاتَّقُونِ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ (١٩٧) لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ فَإِذَا أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِندَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ وَإِن كُنتُم مِّن قَبْلِهِ لَمِنَ

ٱلضَّآلِّينَ ﴿١٩٨﴾ ثُمَّ أَفِيضُواْ مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ ٱلنَّاسُ وَٱسْتَغْفِرُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿١٩٩﴾ فَإِذَا
قَضَيْتُم مَّنَٰسِكَكُمْ فَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ كَذِكْرِكُمْ ءَابَآءَكُمْ أَوْ أَشَدَّ ذِكْرٗاۗ فَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ
رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِي ٱلدُّنْيَا وَمَا لَهُۥ فِي ٱلْأٓخِرَةِ مِنْ خَلَٰقٖ ﴿٢٠٠﴾ وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِي ٱلدُّنْيَا حَسَنَةٗ
وَفِي ٱلْأٓخِرَةِ حَسَنَةٗ وَقِنَا عَذَابَ ٱلنَّارِ ﴿٢٠١﴾ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيبٞ مِّمَّا كَسَبُواْۚ وَٱللَّهُ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ﴿٢٠٢﴾ ۞
وَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ فِيٓ أَيَّامٖ مَّعْدُودَٰتٖۚ فَمَن تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَن تَأَخَّرَ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِۖ لِمَنِ ٱتَّقَىٰۗ
وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّكُمْ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٢٠٣﴾ ﴾ البقرة: ١٩٦ - ٢٠٣

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی په تیرو آیتونو کي دروژې احکام ذکر کړل وروسته یې دحج احکام راوړل څکه دحج میاشتي له روژې سمدستي وروسته راځي او دجهاد آیتونه یې دیو مهم حکم دبیانولو لپاره راوړل چي هغه په حرامو میاشتو کي دجهاد حکم دی او که چیري مشرکان په مسلمانانو متعرض شول (وبلوسیدل) پداسي حال کي چي مسلمانان په احرام کي وو نو ایا بیا مسلمانانو ته له خپله ځانه دفاع کول او له دوی سره په دې میاشتو کي قتال جایز دی ؟ نو په تحقیق سره پخواني آیتونه په دې باب دمیاشتو حکمت بیانوي او دا چي میاشتي دروژې او حج لپاره تاکلې شوې دمسلمانانو دریز دجنګ په هکله څرګند دی کله چي رسول الله ﷺ دعمرې دادا کولو اراده درلوده خو مشرکینو هغه له دې ارادې تر سره کولو څخه چي مکې ته ننوتل دی منع کړ ، او بیا دحدیبې صلح لاس لیک شوه بیا چي یې په راتلونکي کال کي دعمرې دادا کولو تکل وکړ نو اصحابو ﷺ اندیښنه درلوده که چیري مشرکان پداسي حال کي چي مسلمانان په احرام کي وي جنګ پیل او خیانت وکړي نو دوی به څه کوي؟ دا آیتونه نازل شول چي دوې به دغه حرمات تر پښو نه لاندي کوي خو که چیري دښمن تیری وکړي دوی کولای شي له ځانه دفاع او دعدوان خواب ورکړي چي دا دقصاص غوندي معامله شي وروسته بیا دحج احکام او احصار حکم ته خبره راغبرګه شوه چي دا دتیرو او راتلونکي آیتونو تړون څرګند وي.

## لغتونه:

(احصرتم) کله چي بند شئ دحصر معنا منع او بندیدل دی لکه چي وایي: (حصره عن السفر) له سفر څخه یې راوګرزاوو او ازهري وایي (حصر الرجل في الحبس) راوګرزیدو سړي په بند کي او (احصر في السفر من مرض) او یا بند کړشو په سفر کي دناروغي له امله (الهَدْىَ) هغه څاروی چي بیت الله شریف ته اهداء (سوغات) او ډالی کیږي هغه څاروی لکه اوښان ، غوایي او پسونه دی او تر ټولو وړوکی یې پسه دی (محله) هغه ځای چي هلته هَدْىَ حلالیږي چي هغه حرم او (محصر) لره دبندیدلو ځای دی (نسک) دنسیکة جمع ده او هغه حلالی ته وایي چي بنده یې دالله په نامه دعبادت په توګه حلالوي (جناح) ګناه اصل یې له جنوح څخه اخستل شوي او هغه له قصد څخه میل ته وایي (او زما (مترجم) په نزد دګناه معرب دی) (افضتم) چي رابنکته شئ په قوت سره څخه داله (فاض الماء) څخه اخستل شوي کله چي په زور سره را خوتیږي او یا بهیږي همدا راز خلګ په قوت او زور سره له عرفات نه راکوزیږي (خلاق) دالهي رحمت نصیب ، برخه ، ونډه (تحشرون) دحساب لپاره ورټولیږی

## د نزول سبب:

لومړۍ خبره: ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي ديمن خلګو به کله چي حج کاوو توښه به يې له ځانه سره نه راوړله ويل به يې موږ توکل کونکی يو او چي مکې ته به راغلل نو به يې سوال او ګدايي کوله الله ﷻ دا آيت نازل کړ: (وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَىٰ) .(اسباب النزول للواحدي ٣٢/١)

دوهمه خبره: عائشه رضي الله عنها وايي قريش او ددوی په دين خلک به په مزدلفه کي تم کيدل عرفات ته به نه ورختل او دې ته به يې (حمس) وايو کله چي اسلام راغی الله خپل پيغمبر ته وفرمايل: چي عرفات ته ولاړشی او بيا له هغه ځخه رابښکته شی، او قريش به له مشعر حرام ځخه راکوزيدل الله ﷻ دا آيت نازل کړ: (ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ) . (اسباب النزول للواحدي ٣٢/١)

## تفسير:

﴿ وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ ﴾ (او پوره ادا کړی حج او عمره دالله لپاره) يعني سره له خپلو ارکانو او شرطونو يې ادا کړې ﴿ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ﴾ نو بيا که چيري منع کړی شوې (نو واجب دی پر تاسي) هغه ځه چي آسان دی له هديې ځخه يعنی که چيری له تمامولو دحج او عمرې ځخه ناروغي او يا دښمن منع کړی او غوښتل مو چي ځان حلال کړی نو پر تاسي باندی هغه چي درته آسانه مذبوحه وي واجب ده هغه که اوښ وی او که غوا يا پسه وي ﴿ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ﴾ او مه خريئ سرونه خپل تر هغه پوري چي ورسيږي هديه (مذبوحه) ځای دحلال خپل ته چي هغه حرم او يا ځای داحصار (بنديدلو) دی ﴿ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ ﴾ نو هر څوک چي وي له تاسي ځخه نا جوړه يا وي په ده پوري ضرر (له طرفه) دسر دده نو لازمه ده په ده باندي فديه له روژې ځخه يا له خيراته يا له حلالولو (دپسه) يعني اې محرمينو که چيري يو څوک له تاسي ځخه داسي ناروغ وي چي ويښتان يې خوروي او سر يې وخريبل او يا يې په سر کي ځه تکليف درلود لکه سپږي يا دردونه او سر يې وکښيل نو په هغه باندی بدله شته يا درې ورځي روژه او يا به درې پيمانې خيراتوي په شپږو مسکينانو او يا به پسه حلالوي ﴿ فَإِذَا أَمِنْتُمْ ﴾ (نو هر کله چي په امن (بيغمه) شي) يعني په لومړي سر کي او يا له احصار ځخه وروسته ﴿ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ﴾ نو هر چا چي نفع واخيستله په عمري سره (چي يو ځای يې کړه) له حج سره نو (واجب دی) په ده باندی (هغه) هديه چي ورته آسانه وي) يعني چا چي دحج په مياشتو کي عمره وکړه او نفع يې واخيسته په هغه ځه چي هغه غير محرم کوي لکه خوشبويي لګول او کوروالي(جماع) نو بيا په ده باندي يو پسه ده چي دالله ﷻ لپاره به يې شکرانه حلالوي ﴿ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ ﴾ (هر چا چي ونه موندله (هديه) نو واجب دی په ده باندی روژې ددريو ورځو په حج کي او اوه روژې کله چي وګرزي وخپل اهل او هيواد ته) ﴿ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ﴾ دغه لس ورځي دی پوره چي دذبح په ځای درېږي او ثواب يې هم دومره ده لکه د ذبحې) ﴿ ذَٰلِكَ لِمَنْ لَمْ

يَكُنْ أَهْلُهُۥ حَاضِرِي ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ ﴾ (دا حكم (دتمتع) هغه چالره دی چي نه دی كورني دده په (حوالي) دمسجد حرام كي) يعني دغه تمتع او هديې په هغه چا پوري ځانګړي ده چي دحرم له اوسيدونكو څخه نه وي او هغه چي په حرم كي اوسي نو نه ددوی لپاره تمتع شته او نه هم وربانديې هديې شته ﴿ وَٱتَّقُوا ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓا أَنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴾ (او وويريږئ له الله څخه او پوه شئ چي بيشكه الله ډير سخت عذاب وركونكی دی ) يعني دالله اوامر پر ځای او له نواهيو څخه يې ځان وژغورئ او پدې وپوهيږئ چي عذاب يې ډير سخت دی بيا الله تعالی دحج وخت بيان كړ او دايې وفرمايل: ﴿ ٱلْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَٰتٌ ﴾ (وخت د ) حج (څو ) مياشتي معلومي دی) هغه چي دخلكو تر منځ پيژندل شوي او شوال ،ذيقعده اولس دذي الحجې دی. ﴿ فَمَن فَرَضَ فِيهِنَّ ٱلْحَجَّ ﴾ نو هر چا چي فرض كړ (پخپل ځان) په دې مياشتو كي حج يعني دحج لپاره يې احرام وتاړه او تلبيه يې ولوستله نو په ځان يې لازم كړ.

﴿ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي ٱلْحَجِّ ﴾ نو نه دی كوي جماع (كوروالی او نه دواعي دهغې) او نه ګناهونه او نه جګړې پدې (ورځو ) دحج كي ځكه دی الله ﷻ ته ورتلونكي او دهغه خوښي غواړي نو بايد چي شهوتونه پريږدی او ګناهونه او جګړې له خپلو ملګرو او نور چا سره ونكړي ﴿ وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ ٱللَّهُ ﴾ او هر څه چي كوی له نيک كار څخه نو پوهيږي په هغه باندی الله يعني هغه څه چي تاسي يې دخپلو ځانونو لپاره نيک عملونه استوی الله به په هغو ښه جزا دركاندي. ﴿ وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ ٱلزَّادِ ٱلتَّقْوَىٰ ﴾ (او توښه واخلی (له ځانو سره ) نو بيشكه بهتره توښه ځان ساتل دی ، يعني دآخرت لپاره ښه توښه تقوی او پرهيزګاري ده. ﴿ وَٱتَّقُونِ يَٰٓأُولِي ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ (او وويريږی له ما اې خاوندانو دعقلونو ) او فهم درلودونكو خلكو. ﴿ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ (نشته په تاسي باندی هيڅ ګناه پدې كي چي غواړی روزي له فضله درب خپله) يعني دحج په موده كي په سوداګري كولو بنديز نشته هغه چي دنيوي كاروبار دی او دا له عبادت سره منافي نه دی دوی به ګومان كاوو چي دا به ګناه وي نو آيت شريف نازل شو او دحج په مياشتو كي يې دتجارت كولو روا والی بيا ن كړ. ﴿ فَإِذَآ أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَٰتٍ فَٱذْكُرُوا ٱللَّهَ عِندَ ٱلْمَشْعَرِ ٱلْحَرَامِ ﴾ (نو هر كله چي راكوز شي له عرفاته نو يا دوی الله په نزد دمشعر الحرام) يعني كله چي له عرفات څخه وروسته له دريدلو راكوزشی بيانو الله ﷻ په ذكر ، دعا ، تهليل، تكبير او عاجزي باندي دمشعر حرام سره يادوئ ﴿ وَٱذْكُرُوهُ كَمَا هَدَىٰكُمْ وَإِن كُنتُم مِّن قَبْلِهِۦ لَمِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴾ او يادوئ هغه (الله) لكه چي لاره يې دربنودلې تاسي ته او بيشكه چي وی تاسي پخوا له هدايته خامخا له ګمراهانو څخه) يعنی داسي به يادونه يې كوی لكه څنګه چي هغه ښه لار ښوونه درته كړې او دهدايت او ايمان په نعمت باندی شكر وباسی ځكه تاسي پخوا تر هدايته دلارورکو (ګمراهانو ) په ټولی كي ګڼل كيدئ هغه چي نه په ايمان خبر وي او نه هم ددين او شريعت حكمونه ورته معلوم وي. ﴿ ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ ٱلنَّاسُ ﴾ (بيا راكوزيږی (اې قريشو! دطواف لپاره) له هغه ځايه چي راكوزيږي نورخلګ ) دلته خطاب قريشو ته ځكه دی چي دوی به په خلكو ځان لوړ بالوچي دوی دالله ﷻ دحرم اوسيدونكي غوره كسان دي نو به عرفات ته نه ختلو او په مزدلفه كي به دريدلو ځكه هغه له حرم څخه او دوی به ويل موږ له حرم څخه نه وزو او بيا به له هغه ځايه راكوزيدو دې ته به يې (حُمس)

وایو پس الله ﷻ خپل پیغمبر ته امر وفرمایل : چي عرفات ته داخل او بیا له هغه ځایه راکوز شی.
﴿ وَٱسۡتَغۡفِرُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ (او مغفرت غواړی له الله څخه بیشکه چي الله ښه مغفرت کوونکی پوره رحم لرونکی دی ) یعني دخپلو هغو ګناهونو چي پخوا مو کړي له الله ﷻ څخه مغفرت او ښښنه وغواړی هغه دستر مغفرت او پراخ رحمت خاوند دی ﴿ فَإِذَا قَضَيۡتُم مَّنَٰسِكَكُمۡ فَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ كَذِكۡرِكُمۡ ءَابَآءَكُمۡ أَوۡ أَشَدَّ ذِكۡرٗاۗ ﴾ او هر کله چي ادا کړل تاسي افعــال دحج خپل نو یادوی الله لکه یا دول ستاسي پلرونو خپلو لره (په جاهلیت کي په فخر سره ) بلکه لا ډیر زیات یا دول) یعني کله چي دحج له اعمالو څخه فارغ شی نو دالله ذکر زیات کوی لکه چي به تاسي دخپلو پلرونو ویاړني بیانولې بلکه تر هغه هم لا زیات ، مفسرینو ویلي چي کله به دوی دحج له مناسکو ادا کولو فارغ شول نو په منیٰ کي دغره او مسجد تر منځ به ودریدل او دپلرونو ښې ورځې او افتخارات به یې بیانول نو الله ﷻ ورته امر وکړ چي یوازي دالله ﷻ یا دونه او ذکر کوی ﴿ فَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِي ٱلدُّنۡيَا وَمَا لَهُۥ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِنۡ خَلَٰقٖ ﴾ نو ځیني له خلکو څخه هغه خوک دی چي وایي اې ربه زموږ راکړه موږ ته په دنیا کي (زموږ برخه مال او جاه ) او نشته ده لره په آخرت کي هیڅ برخه) یعنی ځینی کسان هغه دی چي یوازي دنیایي مقصد او موخه وی نو وایي : چي زما برخه او ونډه په دنیا کي راکړه ﴿ وَمِنۡهُم مَّن يَقُولُ رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِي ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٗ وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِ حَسَنَةٗ وَقِنَا عَذَابَ ٱلنَّارِ ﴾ (او ځیني له دوی څخه هغه خوک دی چي وایي : اې ربه زموږ راکړه موږ ته په دغه دنیا کي نیکي (نعمت) او په آخرت کي نیکي (جنت) او وساته موږ له عذابه داور څخه یعني ځیني هغه خوک دی چي ددنیا او آخرت ښیګڼي غواړي او هغه هوښیار مؤمن دی څکه نو په دې غوښتنه کي هر خیر راځي او له هر شر څني ګوښه توب کیږي چي ددنیا نعمت ،روغتیا ، جوړوالی ، پراخی او ښکلي ماڼی ، ښې میرمني زیاتي روزي او نور ډیر شیانو ته شامله ده او دآخرت نیکي بیا دآخرت له تکلیفونو څخه په امن کیدل دحساب آساني دجنت داخلیدل او دالله ﷻ دیدار کولو ټولو ته ورغلی ده. ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمۡ نَصِيبٞ مِّمَّا كَسَبُواْۚ وَٱللَّهُ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ ﴾ (دغه کسان شته دوی لره لویه برخه له سببه دهغو دښو اعمالو چي دوی کړی دی او الله ﷻ ژر اخیستونکي دحساب دی) یعني دا کسان چي ددارینو نیکمرغي یې غوښتله دوی لره لویه ونډه دخپلو ښو عملو نو شته او الله ﷻ دستر ګو په رپ کي دخلکو محاسبه تر سره کوي. ﴿ وَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ فِيٓ أَيَّامٖ مَّعۡدُودَٰتٖۚ ﴾ (او یا دوی الله دتکبیراتو په ویلو سره په څو ورځو شمیر لیو شویو (دتشریق) کي ) یعني دالله یادکوي (تکبیرونه وروسته له لمنځونو او دجمراتو له ویشتلو وروسته وایاست )چي داله یوم النحر څخه وروسته دتشریق درې ورځي دی ﴿ فَمَن تَعَجَّلَ فِي يَوۡمَيۡنِ فَلَآ إِثۡمَ عَلَيۡهِ ﴾ هر چا چي بیړه وکړه (په تلو کي له منیٰ نه مکې ته) په دوو ورځو کي نو نشته هیڅ ګناه په ده باندی ﴿ وَمَن تَأَخَّرَ فَلَآ إِثۡمَ عَلَيۡهِۖ لِمَنِ ٱتَّقَىٰۗ ﴾ او هر چا چي تاخیر وکړ نو نشته هیڅ ګناه په ده باندي) دا بیګناهی هغه چالره ده چي پرهیز یی کړی وی (له مناهیو څخه) یعني هغه چي ددریمي ورځي جمرې یې هم وویشتلي ورباندي هیڅ ګناه نشته ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّكُمۡ إِلَيۡهِ تُحۡشَرُونَ ﴾ (او ویریږی له الله څخه او پوه شی چي بیشکه تاسي خاص الله ته ورټولیږی) او بیا به تاسي ته پخپلو اعمالو جزادرکړي.

## بلاغت:

۱. -(يَبْلُغَ ٱلْهَدْىُ مَحِلَّهُۥ) په دې کلمه کې کنايه راغلې له ذبحې څخه داحصار په ځای کې.

۲. -پدې کلمه کې چې فرمايي (فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا) ايجاز بالحذف دی چې تقديرېې داسې راځي څوک چې له تاسې څخه ناروغ وی او سرو خرېې نو ورباندي فديه شته.

۳. - پدې کلام کې چې: (وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ) دالتفات صنعت دی هغه چې له غائب څخه مخاطب ته راگرزېدل کيږي او دا هم له بديعي محسناتو څخه دی.

۴. -(تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ) پدې کې له تفصيل نه وروسته اجمال دی چې (اطناب) ورته ويل کيږی او گټه يې زيات تاکيد او مبالغه ده چې بايد په بشپړه توگه پوره لس روژې ونيول شي نه پکې نقصان او نه هم سستي وشي.

۵. -دضمير په ځای کې اظهار دهيبت او روعت څرگندونه کوي لکه چې فرمايي: (وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ) او دا هم له محسناتو څخه يو دی.

۶. -پدې جمله کې چې فرمايي: (فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ) صيغه يې دنفی او حقيقت يې نهی او ممانعت دی څکه داسې افاده کوي چې دا کار هيڅکله بايد ونشي ولې کوم کار چې پخپله بد او ناروا وی نو دحج په مياشتو کې خو بيخي زيات بد او ناروا دی څکه نو دخبر په صيغه راوړل او دنهی اراده کول څرگنده مبالغه دی

۷. - (فَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ كَذِكْرِكُمْ ءَابَآءَكُمْ) په دې کې تمثيلي تشبيه دی چې ورته (مجمله مرسله) تشبيه وايي.

۸. - لطيفه مقابله ددې دوو آيتونو ترمنځ لکه: (فَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِى ٱلدُّنْيَا) او ددې آيت (وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِى ٱلدُّنْيَا حَسَنَةً) چې دا هم له بديعي محسناتو څخه گڼل کيږي.

## گټې او فائدې:

لومړی فائده: (نسک ) په اصل کې عبادت ته وايي او چې دڅلور بولو (انعامو ) ذبيحې ته (نسک) وويل شو څکه هغه له اشرفو عباداتو څخه دی چې بنده الله ﷻ ته نژدې کوي.

دوهمه فائده: ددنيا توښه سړی نفسي خواهشاتو او غوښتنو ته رسوي او دآخرت توښه بيا سړی تل تر تله نعمتونو ته څکه نو الله دآخرت توښه گټوره بللې.

## الله تعالى فرمايي:

﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُعۡجِبُكَ قَوۡلُهُۥ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَيُشۡهِدُ ٱللَّهَ عَلَىٰ مَا فِي قَلۡبِهِۦ وَهُوَ أَلَدُّ ٱلۡخِصَامِ ﴿٢٠٤﴾ وَإِذَا تَوَلَّىٰ سَعَىٰ فِي ٱلۡأَرۡضِ لِيُفۡسِدَ فِيهَا وَيُهۡلِكَ ٱلۡحَرۡثَ وَٱلنَّسۡلَۚ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلۡفَسَادَ ﴿٢٠٥﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُ ٱتَّقِ ٱللَّهَ أَخَذَتۡهُ ٱلۡعِزَّةُ بِٱلۡإِثۡمِۚ فَحَسۡبُهُۥ جَهَنَّمُۖ وَلَبِئۡسَ ٱلۡمِهَادُ ﴿٢٠٦﴾ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشۡرِي نَفۡسَهُ ٱبۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِ ٱللَّهِۚ وَٱللَّهُ رَءُوفُۢ بِٱلۡعِبَادِ ﴿٢٠٧﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱدۡخُلُواْ فِي ٱلسِّلۡمِ كَآفَّةً وَلَا تَتَّبِعُواْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيۡطَٰنِۚ إِنَّهُۥ لَكُمۡ عَدُوّٞ مُّبِينٞ ﴿٢٠٨﴾ فَإِن زَلَلۡتُم مِّنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡكُمُ ٱلۡبَيِّنَٰتُ فَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٠٩﴾ هَلۡ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن يَأۡتِيَهُمُ ٱللَّهُ فِي ظُلَلٖ مِّنَ ٱلۡغَمَامِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ وَقُضِيَ ٱلۡأَمۡرُۚ وَإِلَى ٱللَّهِ تُرۡجَعُ ٱلۡأُمُورُ ﴿٢١٠﴾ سَلۡ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ كَمۡ ءَاتَيۡنَٰهُم مِّنۡ ءَايَةِۢ بَيِّنَةٖۗ وَمَن يُبَدِّلۡ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُ فَإِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ﴿٢١١﴾ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَا وَيَسۡخَرُونَ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْۘ وَٱلَّذِينَ ٱتَّقَوۡاْ فَوۡقَهُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِۗ وَٱللَّهُ يَرۡزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيۡرِ حِسَابٖ ﴿٢١٢﴾ ﴾ البقرة: ٢٠٤ - ٢١٢

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالى په تيرو آيتونو کي هغه عبادات ذکر کړل لکه روژه، صدقه، او حج چي زړونه يې پاکول او نفسونه يې مينځل او دايې ووېل: چي ځيني خلک ايکي يوازي دنيا غواړي او ځيني بيا دالله خوښه اورضا غواړي نو په دی پسی جوخت وروسته يې دوه ډلې په دې ډول ذکر کړي چي يوه دګمراهي ډله هغه چيّ ځان يې په شيطان پلورلی وي او بله دهدايت ډله چي ځان يې په رحمٰن پلورلی وی او بيامو الله دشيطان په پله له پل اېښودلو څخه ويروي او دهغه سخت عداوت او دښمني راښيي.

## لغتونه:

(الد) سخت (کرېږ) طبري وايي (الالد) په دښمني کي سخت په حديث شريف کي راځي: (ان ابغض الرجال الى الله الالد الخصم) يعني تر ټولو کرکجن خلک الله ته هغه په دښمني کي سخت خلک دی (الحرث) کښت ته وايي څکه چي زراعت وکرل شي بيا کښت شي (النسل) ذوذات او لاد ته وايي نسل يې څکه بولي چي دمور له ګېډي ژر رابهر شي، او نسل هم ژر راوتلو ته وايي څکه راځي چي (الى ربهم ينسلون) (العزة) کبر (حسبه) يعني هغه يې کافي او بس ده (المهاد) فراش او دخوب آرامځای ته وايي (يشري) پلوري (ابتغاء) دغوښتني له امله (السلم) دسين په کسره بنه اسلام ته وايي او په زبر سره يې سولي او مصالحې ته وايي او اصل يې له استسلام نه اخيست شوي چي خضوع او غاړه اېښودلو ته وايي (زللتم) له سمي لاري څخه انحراف ته وايي چي په اصل کي په کږو لارو تګ ته زلل وايي خو بيا په معنوي شيانو کي استعمال شو (ظلل) د (ظلة) جمع او سيوري کونکي ته وايي هر څه چي دلمر ورانګې پټوي ورته (ظله) وايي.

## دنزول سبب يې:

١: روایت کیږي چي اخنس بن شریق رسول الله ﷺ ته راغي او اسلام يې ورته ښکاره کړ لوړه يې وکړه چي هغه له رسول الله سره مینه لري خو هغه منافق وو په ظاهره يې اسلام او په پټه يې کفر خپل کړی وو او له رسول الله ﷺ څخه رخصت شو دمسلمانانو یو چا په کښت را برابر شو هغه يې وسو څاروي دمسلمانانو اوښان يې ووژل نو الله ﷻ دا آیتونه نازل کړل (وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُعْجِبُكَ قَوْلُهُۥ...) آن تر دې قوله پورې چي (وَإِذَا تَوَلَّىٰ سَعَىٰ فِى ٱلْأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيهَا وَيُهْلِكَ ٱلْحَرْثَ وَٱلنَّسْلَ...) (الفخر الرازي ٥/٢١٥، واسباب النزول ص٣٤)

٢: روایت کیږي چي صهیب رومي کله چي مدینې منورې ته دهجرت کولو تکل وکړ یوه ډله مشرکان قریش يې مخي ته ورغلل او هغه له خپلي سورلۍ څخه کوز شو غشي يې راوسپړل لیندې يې را اوچته کړه بیا يې وویل اې قریشو! تاسي پوهیږئ چي زه ستاسي ښه غیشي ویشتونکي یم او زما دې په الله ﷻ لوړه وي چي ماته به رانږدې نشئ. څومي تول غشي دربانده ویشتلي نه وي او بیا به په توره درسره جنګیږم څومي وس وي بیا چي څه غواړئ وېې کړئ. هغو ورته وویل ته ناداره راغلی وې هیڅ دې نلرل اوس بډایه شوې او ډیر مال دولت لرې نو صهیب ﷺ ورته وویل ایا که زه خپل مال دروښیم زما لاره به خوشي کړئ؟ دوی وویل هو! نو خپل کوم مال چي يې په مکه کي درلود ورویې ښودل کله چي مدینې منورې ته راغی او درسول الله ﷺ په حضور مشرف شو رسول الله ﷺ ورته وویل: (ربح البیع صهیب، ربح البیع صهیب) ګټوره سودادي کړې صهیبه!، ګټوره سودا دې کړې صهیبه! الله ﷻ دا آیتونه نازل کړل: (وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشْرِى نَفْسَهُ ٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِ ٱللَّهِ... الی اخرالآیه)

## تفسیر:

﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُعْجِبُكَ قَوْلُهُۥ ﴾ (او ځیني له خلکو څخه هغه دی چي په تعجب کي اچوي تا خبره دده) یعني ځیني له خلکو څخه هغه څوک دی چي د دوی پستې خبرې تا ته خوند درکوي او د هغه په ژبغړاندتوب تعجب کوي خو هغه دروغجن منافق وی ﴿ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَيُشْهِدُ ٱللَّهَ عَلَىٰ مَا فِى قَلْبِهِۦ ﴾ په ژوند ددنیا کي فقط او په ژوندانه دآخرت کي خو هغه چي حکم چلوونکي علام الغیوب ذات دی دزړونو په پټو رازونو خبر دار دی ﴿ وَهُوَ أَلَدُّ ٱلْخِصَامِ ﴾ حال دا چي دی ډیر سخت دی په جګړه او عداوت کي) یعني په باطل کار کي مجادله کونکی په ظاهر کي دیندار او سوله خوښونکي ځان ښکاره کوي ﴿ وَإِذَا تَوَلَّىٰ سَعَىٰ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ او کله چي بیرته وګرزي (له تانه اې محمده!) نو ګرځي ګرځي په ځمکه کي دپاره ددې چي فساد پکي وکړي) دا آیتونه داخنس په باب نازل شوي او حکم يې عام دی هر منافق چي په خوله هغه څه وايي کوم چي په زړه کي يې نه وي (یعطیک من طرف اللسان حلاوة * ویروغ فیک کما یروغ الثعلب) دژبي له لوري خواږه او پستې خبري دراوروي خو داسي دوکه او فریب درکوي لکه ګیدړه غونډي. ﴿ لِيُفْسِدَ فِيهَا وَيُهْلِكَ ٱلْحَرْثَ وَٱلنَّسْلَ ﴾ او هلاکوي کښت او ساکښان (په سوځلو او وژلو سره) یعني تباه کوي کښت او هغه چي دانسان او حیوان نسل وی، معنایي داده چي فساد يې عام وي څکه کښت او زراعت دمیوو دانو او نسل چي دحیواناتو محصول دی دخلکو دژوندانه اکثر اړتیا وي همدا پوره کوي نو ددوی تباه کول دانسانیت تباهي ده ﴿ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلْفَسَادَ ﴾ (حال دا چي الله ﷻ نه خوښوي فساد) یعني الله فساد او مفسدین نه خوښوي له هغو څخه کرکه کوي ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُ ٱتَّقِ ٱللَّهَ أَخَذَتْهُ ٱلْعِزَّةُ

﴿بِٱلۡإِثۡمِۚ﴾ او كله چي وويل شي ده ته چي ووېرېږه له الله نيسي دی غرور (عار او ننګ په کولو) يعني کله چي دې فاجر ته پند ورکول شي او ورته وويل شي چي له دې خپلو بد وکړو ورو ويلو او کولو وګرځه نو دجاهليت غرور يې دګناه په کولو لا ټينګ کړي او دحق له منلو يې تکبر راوګرځوي نو په فساد جوړولو کي لا پسي ډوب شي.

﴿فَحَسۡبُهُۥ جَهَنَّمُۖ وَلَبِئۡسَ ٱلۡمِهَادُ﴾ (نو پس کافي ده ده لره عذاب ددوزخ) اوهرومرو بد بستر دی (دا اوردوزخ) ﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشۡرِي نَفۡسَهُ ٱبۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِ ٱللَّهِۚ﴾ او ځيني له خلکو څخه هغه څوک دی چي خرڅوي نفس خپل لپاره درضا دالله (يعني له خپل ځان او ماله تيرېږي) دا دوهمه ټولی ده چي دنيکو کارو صالحانو ده وروسته له دې چي الله ﷻ دمنافقينو بد صفتونه ذکر کړل ورپسي يې دمؤمنانو نيک صفتونه راوړل هغوی چي خپل ځانونه دالله ﷻ درضا لپاره خرڅوي دهغه ثوابونه غواړي او له خپلو کړو وړو څخه يې الله مقصد وی. ﴿وَٱللَّهُ رَءُوفُۢ بِٱلۡعِبَادِ﴾ او الله ډير مهربان دی په بندګانو باندی ګناوي يې ببښي نيکي يې ورزياتوي هغه چي ځني سرغړونه کوي سمدستي يې نه نيسي بيا الله مؤمنانو ته دانقياد او غاړه ايښودلو امر وفرمايو چي په اسلام کي هغه مبارک دين چي دالله خوښ دی داخل شي او ټول حکمونه يې ومني. ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱدۡخُلُواْ فِي ٱلسِّلۡمِ كَآفَّةً﴾ (اې هغو کسانو چي ايمان يې راوړي وی (اې مؤمنانو) ننوځی په اسلام کي (دهغه له ټولو شرائطو سره) ټول) هسي مه کوی چي يو حکم يې واخلی بل پرېږدی لمونځ کوی زکاتونه نه ورکوی اسلام داسي کل دی چي ټوته کيږي نه. ﴿وَلَا تَتَّبِعُواْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيۡطَٰنِۚ إِنَّهُۥ لَكُمۡ عَدُوّٞ مُّبِينٞ﴾ او مه کوی پيروي دقدمونو دشيطان بيشکه دا (شيطان) ستاسي ښکاره دښمن دی ﴿فَإِن زَلَلۡتُم مِّنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡكُمُ ٱلۡبَيِّنَٰتُ﴾ (بيا که وښويدی تاسي وروسته له هغه چي راغلی دی تاسي ته ښکاره معجزې) يعني که وروسته له دې چي قاطع دليلونه يې په حقيقت باندی شته بيا هم وښوئيدئ ﴿فَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ (نو وپوهيږي چي الله ډير غالب لوی حکمت والا دی) يعني هغه دومره غالب دی چي له ګنهکارانو څخه دانتقام په اخيستلو کي پاتي نه راځي او پخپل حکمت اوصنعت کي دحکمت خاوند دی ﴿هَلۡ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن يَأۡتِيَهُمُ ٱللَّهُ فِي ظُلَلٖ مِّنَ ٱلۡغَمَامِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ﴾ (انتظار نه کوي دوی مګر دې ته چي راشي دوی ته (عذاب د) الله په سيورو کي له ورېځو څخه (او راشي دوی ته) پرښتې (دعذاب) ﴿وَقُضِيَ ٱلۡأَمۡرُۚ وَإِلَى ٱللَّهِ تُرۡجَعُ ٱلۡأُمُورُ﴾ او خلاص شي کار (دهلاکت ددوی) او (خاص) الله ته بيرته ګرځول کيږي ټول کارونه (په قيامت کي دمجازاتو لپاره) يعني دوی انتظار نه کوي مګر دا چي دوی ته الله پخپله په ورځ دقيامت راشي تر څو دخلکو تر منځ فيصله وکړي. (۱) کله

(۱) امام فخررازي وايي چي دا کلام دمضاف په حذف سره دی معنی ددې قول (ان يأتيهم الله) دادي چي راشي عذاب دخدای او يا امر دخدای لکه چي په (اسأل القرية) کي مضاف حذف شوي او دا دمجاز مشهور ډول دی لکه چي وايي (ضرب الامير فلانا) او (اعطی الامير فلانا) پخپله خويې امير نه وهي او نه پخپل لاس څاته څه ورکوي بلکه حکم کوي او هغه عملي کيږي اودغه تاويل يې په بل آيت هم ملاتړ کړی چي؛ (هَلۡ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن تَأۡتِيَهُمُ المَلَائِكَةُ أَوۡ يَأۡتِيَ أَمۡرُ رَبِّكَ) خو هغه چي موږ رانقل کړي دابن کثير تفسير او دسلفو مذهب دی چي تاويل نه مني او دآيت معني په تفصيلي توګه الله ﷻ ته تفويض کوي

چي اسمان وچوي او الله ﷻ دوریځو په سیورو کي (بلا کیفه) رانښکته شي دعرش ورونکي او نوري ډيري ملائکي اوپر ښتي چي شمیر یې له الله ﷻ څخه پرته هیچا ته ندي معلوم او دوی لره دتسبیح صوت وی وایي (( سبحان ذي الملک والملکوت سبحان ذي العزة والجبروت سبحان الحي الذي لایموت سبحان الذي یمیت الخلائق ولا یموت سبوح قدوس رب الملائکة والروح) او دخلکو تر منځ جلا والی وشي یوه ډله په جنت کي او بله په اور کي ولویږي او یوازي الله ته دخلکو بیرته ګرځول کیږي مقصد دلته دقیامت دورځي سترتوب او هیبت انځورول دی اوهم ددې بیان دي چي الله ﷻ دپاچهانو پاچا دی هغه چي حکم یې څوک شاته غورځولی نشي او نه یې څوک فیصله ماتولای شي هغه احکم الحاکمین ذات دی وروسته بیا رسول الله ﷺ ته خطاب فرمایي:

﴿سَلْ بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ كَمْ ءَاتَيْنَٰهُم مِّنْ ءَايَةٍۭ بَيِّنَةٍ﴾ پوښتنه وکړه (اې محمد !) له بني اسرائیلو څخه چي څومره ورکړي دی موږ دوی ته له معجزی څرګند ی څخه ؟ یعني اې محمد ﷺ ! له بنی اسرائیلو څخه دتوبیخ په توګه وپوښته چي له موسی ﷺ سره یې څومره زیاتي څرګندي معجزې لیدلی خو بیا هم ایمان یې نه دي راوړي ﴿وَمَن يُبَدِّلْ نِعْمَةَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ فَإِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ﴾ (او هر څوک چي بدل کړي نعمت دالله (په ناشکري سره) وروسته له هغه چي راغلی ږو دا (نعمت) ده ته نو بیشکه الله سخت دی عذاب دده (په دنیا او عقبی کي) ﴿زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا﴾ ښائسته کړی شوی دی هغو کسانو لره چي کافران شوي دی دغه ژوندون لږ (ددنیا) یعني ښائسته کړی شوی دی دوی لره ددنیا نعمتونه چي دومره یې ورسره مینه ده چي له آخرت څخه یې راګرزولي دي. ﴿وَيَسْخَرُونَ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ (او مسخرې کوي دوی پر هغو کسانو چي ایمان یې راوړي دی) یعني ملنډي وهي او مسخري کوي په مسلمانانو باندی هغوی بې عقل ګڼي چي دنیا ته یې شا کړې او آخرت یې مدنظر ګرځولی دی لکه چي بل ځای راځي: (إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ) الله وریاندي رد کوي فرمایي: ﴿وَٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ فَوْقَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ﴾ (او هغه کسان چي ځانونه یې ساتلي دی (له شرک څخه) ددوی دپاسه به وي په ورځي دقیامت کي) یعنی مؤمنان به په (اعلی علیین) او دوی به په (اسفل سافلین) کي وی مؤمنان به په بشپړ او کامل عزت او کرامت کي وی کافران به ذلت او خواري په خوساوند کي ﴿وَٱللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ او الله روزي ورکوي هغه چا لره چي اراده یې وکړي بې له حسابه (ډیره پراخه) یعني خپلو اولیا ووته پراخ رزق ورکوي چي تل تر تله وي لکه چي بل ځای فرمایي: (يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ يُرْزَقُونَ فِيهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ) اویا رزق ورکوي په دنیا کي هغه چا ته چي اراده یې وشي که مؤمن دی او که کافر نیکو کاروي که ګنهکار او داهم دخپلي ارادي له مخي چي هیڅ محاسبه هم ورسره نکوي.

## بلاغت:

۱. پدې کلام کي چي فرمایي: (أَخَذَتْهُ ٱلْعِزَّةُ بِٱلْإِثْمِ) داثم کلمه یې وروسته له عزت څخه راوړه چي دې ډول صنعت ته دبدیع دعلم علماء (تتمیم) وایي ځکه ډیر خله داسي ګومان کیږي چي دغه به ښه عزت وي نو ورسره یې اثم راوور چي څرګنده شي دا دګناه عزت دی.

۲. (وَلَبِئْسَ ٱلْمِهَادُ) دلته تهکم او استهزاء مقصد ده ځکه دوزخ یې ددوی لپاره فرش او زانګوغوندي وګڼله هغه چي مور خپل ګران زوی وریاندی نازوي.

۳. پدې کلام کې چې فرمايي: (هَلۡ يَنظُرُونَ) دلته استفهام انکاري دی او دنفی په معنی دی خکه چې وروسته څنې (الا) راغلې ده معنی یې داده چې انتظار نکوي.

۴. (فِي ظُلَلٖ مِّنَ ٱلۡغَمَامِ) تنکیر پدې جمله کې دهیبت او تهویل لپاره دی چې دومره پنډې وریځې وی چې لیدونکي هیڅ نه ویني او (وَقُضِيَ ٱلۡأَمۡرُ) په مضارع باندې عطف دی خو چې دماضي په صیغه یې ذکر کړ معنی یې داده چې اثبات او تحقق افاده کړې لکه چې دا کار شوی دی.

۵. پدې کلام کې چې: (فَإِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ) دالله ﷻ نوم یې ظاهر راووړ چې هیبت او ترهه څرګنده شي.

پدې کلماتو کې چې فرمايي: (زُيِّنَ ... وَيَسۡخَرُونَ) تزئین یې دماضي په صیغه راوړی چې ګواکي داددوی په طبیعت کې پروت او ټینګ دی خو فعل مضارع یې وربا ندی عطف راوړي چې دسخر یې په استمرار او همیشه توب دلالت وکړي.

**تنبیه:**

ابن تیمیه رحمه الله پخپله (تدمریه رساله) کې وایي چې دالله ﷻ وصف پدې چې راځي په سیورو (وریځو) کې داسي ده لکه راتګ په نورو آیتونو کې او ددوی په شان هغه دی چې دالله ﷻ خپل ځان پخپل کتاب کې ستایلي او یا له رسول الله ﷺ څخه یې روایت شوی پدې ټولو کې خبر یوډول ده او هغه دامت دسلفو او علماؤو امامانو مذهب دی چې دوی دالله هغه ډول صفت بیانوي لکه چې الله ﷻ یې کوي او یا رسول الله ﷺ هغه ستایي نه تحریف پکې کوي او نه تعطیل نه یې څرنګوالی (کیف) بیانوي او نه هم تمثیل او دالله په صفاتو کې قول همداسي ده لکه دهغه په ذات کې او (لیس کمثله شئ لا في ذاته ولا في صفاته ولا في افعاله) نو که چیرې پوښتونکي سوال وکړي چې الله څرنګه راځي؟ ورته دی ووایي چې لکه څرنګه چې ته دالله دذات په کیفیت علم او پوهه نلرې همدا ډول دهغه دصفاتو کیفیت هم درته څرګند ندي

## الله تعالی فرمایي:

﴿ كَانَ ٱلنَّاسُ أُمَّةٗ وَٰحِدَةٗ فَبَعَثَ ٱللَّهُ ٱلنَّبِيِّـۧنَ مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ وَأَنزَلَ مَعَهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ بِٱلۡحَقِّ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَ
ٱلنَّاسِ فِيمَا ٱخۡتَلَفُواْ فِيهِۚ وَمَا ٱخۡتَلَفَ فِيهِ إِلَّا ٱلَّذِينَ أُوتُوهُ مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُمُ ٱلۡبَيِّنَٰتُ بَغۡيَۢا بَيۡنَهُمۡۖ فَهَدَى ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ
ءَامَنُواْ لِمَا ٱخۡتَلَفُواْ فِيهِ مِنَ ٱلۡحَقِّ بِإِذۡنِهِۦۗ وَٱللَّهُ يَهۡدِي مَن يَشَآءُ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٍ ﴿٢١٣﴾ أَمۡ حَسِبۡتُمۡ أَن تَدۡخُلُواْ ٱلۡجَنَّةَ
وَلَمَّا يَأۡتِكُم مَّثَلُ ٱلَّذِينَ خَلَوۡاْ مِن قَبۡلِكُمۖ مَّسَّتۡهُمُ ٱلۡبَأۡسَآءُ وَٱلضَّرَّآءُ وَزُلۡزِلُواْ حَتَّىٰ يَقُولَ ٱلرَّسُولُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَهُۥ مَتَىٰ
نَصۡرُ ٱللَّهِۗ أَلَآ إِنَّ نَصۡرَ ٱللَّهِ قَرِيبٞ ﴿٢١٤﴾ يَسۡـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَۖ قُلۡ مَآ أَنفَقۡتُم مِّنۡ خَيۡرٖ فَلِلۡوَٰلِدَيۡنِ وَٱلۡأَقۡرَبِينَ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ
وَٱلۡمَسَٰكِينِ وَٱبۡنِ ٱلسَّبِيلِۗ وَمَا تَفۡعَلُواْ مِنۡ خَيۡرٖ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٞ ﴿٢١٥﴾ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡقِتَالُ وَهُوَ كُرۡهٞ لَّكُمۡۖ وَعَسَىٰٓ
أَن تَكۡرَهُواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ خَيۡرٞ لَّكُمۡۖ وَعَسَىٰٓ أَن تُحِبُّواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ شَرّٞ لَّكُمۡۚ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ وَأَنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ﴿٢١٦﴾

﴿يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلشَّهْرِ ٱلْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ ۖ قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ ۖ وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَكُفْرٌۢ بِهِۦ وَٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِۦ مِنْهُ أَكْبَرُ عِندَ ٱللَّهِ ۚ وَٱلْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ ٱلْقَتْلِ ۗ وَلَا يَزَالُونَ يُقَٰتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ ٱسْتَطَٰعُوا۟ ۚ وَمَن يَرْتَدِدْ مِنكُمْ عَن دِينِهِۦ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُو۟لَٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢١٧﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱلَّذِينَ هَاجَرُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ أُو۟لَٰٓئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ ٱللَّهِ ۚ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢١٨﴾﴾ البقرة: ٢١٣ - ٢١٨

## مناسبت او تړاو:

الله ﷻ په تیرو آیتونو کي ذکر کړل چي انسانان په دوو ټولګیو ویشل شوی یوه د له هغه چي په مځکه کي فساد خپروي او خلک په خوړه او پسته ژبه ګمراه کوي بله د له هغه دی چي خان یې د الله درضا لپاره خرخ کړی وی له الله پرته نور هیڅ نه غواړي او خرنګه چي خامخا د خیر او شر تر منځ ټکر راځي نو باید چي دحق توره وچلیږي څکه نو الله ﷻ مؤمنانو لره داسي لاره وښوده چي توره راواخلئ ملا وتړئ او جهاد یې رواکړ تر څو چي دظلم او طغیان مخه ونیسي دښمني او عدوان له منځه یوسي.

## لغتونه:

(بغیا) دښمني او طغیان (وزلزلوا) له (زلة الارض) څخه اخیستل شوی او هغه ښوریدلو او اضطراب ته وایي چي شدید او سخت خوځښت یې معنا ده (کره) مکروه او نا خوښه ابن قتیبه وایي چي کره په ضمه (پیښ) سره مشقت او په زبر (فتحه) سره قهر او اکراه ته وایي (صدّ) منعي ته ویلي شي (یرتد) رجوع کوی او (ردة) ته وایي کله چي له ایمانه کفر ته رجوع وکړي راغب وایي (ارتداد) او (رجوع) له کومي لاري چي راغلي وی په هغې بیرته ګرزیدلو ته وایي خو (ردة) په کفر کي استعمالیږي او (ارتداد) عام دی په کفر او نورو کي راځي لکه چي الله فرمایي: (فارتدا علی آثارهما قصصا) (مفردات القرآن للراغب) (حبطت) باطل شول په لسان العرب کي وایي چي (حبط) معنی دا چي یو عمل یې تر سره کړ او بیرته یې باطل یا فاسد کړ په قرآنکریم کي راځي: (فاحبط أعمالهم) یعني ثواب یې باطل کړ (یرجون) رجا طمع دیو کار او آرزو (هیلي) ته وایي چي پکي ګټه او مصلحت وي (لسان العرب د (حبط) ماده).

## دنزول سبب یې:

رسول الله ﷺ عبدالله بن جحش دیوې ډلی اصحابانو په مشر تابه واستاوو چي دقریشو د قافلي څارنه وکړي هغه قافله چي عمر بن الحضرمي او درې تنه نور هم پکي ول بیا اصحابانو هغه وواژه او دوه تنه یې په اسارت ونیول قافله یې سره له مالونو راوستله دا پیښه درجب په لومړی ورځ وه دوی ګومان کاوو چي دا به دجمادی الاخر وروستی وي نو قریشو وویل: دادی چي محمد ﷺ حرامه میاشت حلاله کړه هغه چي ویریدونکي پکي په امن وي او خلک دخپلو کارونو لپاره پکي تیت او خواره وي دا خبره پر مسلمانانو ډیره درنده شوه بیا دا آیتونه نازل شول: (یَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلشَّهْرِ ٱلْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ...) دآیت تر پایه.

تفسير:

﴿ كَانَ ٱلنَّاسُ أُمَّةً وَٰحِدَةً ﴾ (ټول خلک (په ابتداکي) يوه ټولى په يوه حق دين وو) يعنى په ايمان او مستقيم فطرت وو بيا يې اختلاف وکړ ﴿ فَبَعَثَ ٱللَّهُ ٱلنَّبِيِّـۧنَ مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ ﴾ پس الله انبياء وليږل (دخلکو دلاربښوونې لپاره) زيرې ورکونکي (مؤمنانو ته په جنت سره) او ويرونکي کافرانو ته (په جحيم سره.) ﴿ وَأَنزَلَ مَعَهُمُ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ ﴾ او راويې ليږه له دوى سره کتاب (بيانونکي ددين) په حقه سره) يعني له دوى سره يې آسماني کتابونه راواستول چې بشريت ته هدايت وکړي او ددين په امورو کې چې دوى يې په هکله اختلاف کاؤو سمه لاره وروښيي ﴿ لِيَحْكُمَ بَيْنَ ٱلنَّاسِ فِيمَا ٱخْتَلَفُوا۟ فِيهِ ۚ وَمَا ٱخْتَلَفَ فِيهِ إِلَّا ٱلَّذِينَ أُوتُوهُ ﴾ او اختلاف نه دي کړى په هغه هادي کتاب کې مګر هغو کسانو چې ورکړى شوي وو دوى ته کتاب) يعنى دوى بر عکس کار غوره کړ هغه کتاب چې داختلافاتو دله منځه وړلو لپاره راغلى وو داختلافاتو دلا ټينګولو سبب يې کړ ﴿ مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ ٱلْبَيِّنَٰتُ ﴾ (وروسته له هغه چې راغلى ؤو دوى ته دليلونه ښکاره) يعني وروسته له دې چې دکتاب په رڼښتنولې ښکاره دليلونه او براهين ورته موجود وو خو دوى له علمه سره سره مخالفت پيل کړ ﴿ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ﴾ په سبب دکينې په منځ ددوى کې يعني کافرانو له مؤمنانو سره حسد کاوو ﴿ فَهَدَى ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لِمَا ٱخْتَلَفُوا۟ فِيهِ مِنَ ٱلْحَقِّ بِإِذْنِهِۦ ﴾ (پس الله سمه لاره وښودله هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړي دى هغه شي ته چې جګړه کړې وه دوى په هغه کې چې (عبارت دى) له حقه په اذن (حکم) خپل سره) يعني الله پخپل لطف مؤمنانو ته دهغه څه هدايت وکړ چې دګمراهي خاوندانو يې په هکله اختلاف کاوو ﴿ وَٱللَّهُ يَهْدِى مَن يَشَآءُ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ او الله هدايت کوي هغه چا ته چې اراده (يې دهدايت) وکړي دسمې لارې لور ته هغه چې جنت ته رسونکي وى ﴿ أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا۟ ٱلْجَنَّةَ ﴾ بلکه ايا ګومان کوي تاسې (اې مؤمنانو) چې داخل به شې جنت ته ؟ چې هيڅ ازموينت به دربانډې نه راشي ﴿ وَلَمَّا يَأْتِكُم مَّثَلُ ٱلَّذِينَ خَلَوْا۟ مِن قَبْلِكُم ﴾ حال دا چې راغلى به نه وى په تاسې بانډې په مثل (دسختيو) دهغو کسانو چې پخواله تاسې نه ؤو ، يعني تاسې ته هومره سختي او محنتونه نه دي رسيدلي لکه چې پخوانيو ته رسيدلى وو ﴿ مَّسَّتْهُمُ ٱلْبَأْسَآءُ وَٱلضَّرَّآءُ ﴾ چې رسيدلى وو دوى ته سختي (لکه فقراو رنځ) او مرض ﴿ وَزُلْزِلُوا۟ حَتَّىٰ يَقُولَ ٱلرَّسُولُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ مَتَىٰ نَصْرُ ٱللَّهِ ﴾ (او کړ خول شوي وو دوى (په سختيو سره) تر هغه پورې چې ويل به (هم) رسول او (هم) دوى هغو کسانو چې ايمان يې راوړى ؤو سره له ده چې کله به وى دالله ﷻ مرسته ؟) يعني دوى به داسې سخت ګوزارونه خوړلى ؤو لکه چې زلزله وربانډې راغلې وى آن تر دې چې پيغمبراو مؤمنانو به ويل : دالله نصرت به کله وى ؟ څکه په دوى به وخت ډير اوږد شوى وو او دادسختيو او مشکلاتو دډير زياتوالي انځور دى څکه کله چې پيغمبر سره له دومره لوړ ذات او منزلته او دا چې په محنتونو کې فوق العاده زغم او صبر لري خو بيا هم حال يې دې ته رارسيدلى وى نو ګواکې شدت او محنت

خپل وروستي سرحد ته رسيدلى دى. ﴿أَلَآ إِنَّ نَصۡرَ ٱللَّهِ قَرِيبٞ﴾ خبر دارشئ واورئ چي بيشكه نصرت دالله نژدې دى (مؤمنانو لره) زيرى مؤمنانو لره! چي دنصرت وخت راورسيدو (وَلَيَنصُرَنَّ ٱللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ) بيا الله تعالى وفرمايل: ﴿يَسۡـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ﴾ (پوښتنه كوي له تاڅخه اې محمده! چي څه شي صرف كړى دوې (په لاره (دالله كي)؟ يعني دوى له تانه سوال او پوښتنه كوي چي څه شى وركړى او چاته يې وركړى؟ دا آيت شريف هغه وخت نازل شو چي څينو اصحابو ﷺ وويل: اې دالله پيغمبره موږ دخپلو مالونو څه وركړو او چاته يې وركړو؟ ﴿قُلۡ مَآ أَنفَقۡتُم مِّنۡ خَيۡرٖ فَلِلۡوَٰلِدَيۡنِ وَٱلۡأَقۡرَبِينَ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينِ وَٱبۡنِ ٱلسَّبِيلِۗ﴾ (ووايه (اې محمده !)هرشى چي صرفوى تاسى له مالونوڅخه نويې(صرف كړې) لپاره دموراوپلار اولپاره دخپلوانواولپاره ديتيمانو اومسكينانو اوله پاره دمسافرانو)يعني په دغونومورو خلكويې صرفوى ﴿وَمَا تَفۡعَلُواْ مِنۡ خَيۡرٖ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٞ﴾ (اوهرهغه څه چي كوى تاسى له نيك كاره نوبيشكه چي الله په هغه باندى (لكه په نورو شيانو) ښه عليم دى) ﴿كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡقِتَالُ وَهُوَ كُرۡهٞ لَّكُمۡۖ﴾ (فرض كړى شوى دى پرتاسى باندى جنګ كول (له كفاروسره)حال داچي دغه جنګ بدښكارى تاسى ته)څكه چي پكښې دمال اوځان تيريدنه ده ﴿وَعَسَىٰٓ أَن تَكۡرَهُواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ خَيۡرٞ لَّكُمۡۖ﴾ اوښايي چي بدګڼئ تاسى يوشى حال داچي هغه ډير بهتروى تاسى لره)يعنى لكن كله كله ستاسى نفسونه يوشى نه خوښوى خوهغه ټول سره ګټه وى) ﴿وَعَسَىٰٓ أَن تُحِبُّواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ شَرّٞ لَّكُمۡۚ﴾ اوښايي چي تاسى خوښوى يوڅيز اوهغه ستاسى لپاره شر وى (ډيربدوى)په هغه كى ستاسى لپاره ضرراوخطرنغښتى وى نودغه قتال (كه څه هم تاسى يې نه خوښوى) ډير بهترده څكه يابه پكى بريااليتوب وى اوولجه غنيمت يابه شهادت اواجر اودهغه په پريښودلوكى(چي تاسى يې خوښوى)ذلت ،بيوزلى اوداجرنشتوالى دى ﴿وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ وَأَنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ﴾ اوالله عالم دى(په خيرستاسى)اوتاسى نه پوهيږى (پخپل خير)يعنى الله ﷻ دامورو په پايلو اوعواقبوښه پوهيږى اوپه هغه څه چي ستاسى ددنيا اوآخرت ښيګڼى دى ښه خبردى نو هغه چي څه درته فرمايى ويې منئ ﴿يَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلشَّهۡرِ ٱلۡحَرَامِ قِتَالٖ فِيهِۖ﴾ پوښتنه كوى خلك له تانه (اى محمده )له مياشتى حرامى څخه له جنګ كولو په دى كى (چي روادى كه نارواً؟)يعنى اى محمده ستاملګرى (اصحابان)درڅخه دحرامى مياشتى په هكله پوښتى چي دوى لره پدى مياشت كى قتال روادى اوكه ناروا؟ ﴿قُلۡ قِتَالٞ فِيهِ كَبِيرٞۚ﴾ ورته ووايه (اى محمده )چي جنګ كول (په اشهرالحرم كى (عمداً) لويه ګناه ده) يعنى ګناه لويه اوسزايى ستره ده خولهته تردى هم بل لوى اوخطرناك څيز شته چي هغه ﴿وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَكُفۡرُۢ بِهِۦ وَٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِ وَإِخۡرَاجُ أَهۡلِهِۦ مِنۡهُ أَكۡبَرُ عِندَ ٱللَّهِۚ﴾ اومنع كول له لارى (دين)دالله اوكافركيدل په الله او(منع )كول له مسجد حرام نه اوايستل داهل دمسجدحرام له ده څخه (ګناه) ډيره لويه ده په نزد دالله (له قتاله په اشهر الحرم كى )يعنى داچي مومنان له دين څخه منع كوى په الله كافركيږى له مسجدحرام دمكى څخه خلك ګرزوى اوتاسويې له بلد حرام څخه وايستى اچي تاسويې اهل اوساتونكى واست داټول ډيره لويه ګناه ده ترهغه چي تاسومشركان ووژنى نوكه تاسوپه اشهرالحرم كى قتال دروند ګڼى په دى پوه شى چي كوم

جنایات دوی دنبی ﷺ اومسلمانانو په حق کی کړی دی تر قتال ډیر لوی اوبد دی ﴿ وَٱلْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ ٱلْقَتْلِۗ وَلَا يَزَالُونَ يُقَٰتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ ٱسْتَطَٰعُوا۟ ﴾ اوفتنه ډیره لویه ګناه ده له جنګ څخه او همیشه به وی دوی (کافران) چي جنګ به کوی له تاسی سره ترهغه پوری چي بیرته وګرځوی تاسی ستاسی له دینه که یی لاس ورسیږی) یعنی دوی به تل ستاسی سره دجګړی کولو کوښښ کو ی ترڅو کفر ته مو واړوی که یی لاس برشی خودوی پخپله له کفر څخه نه اوړی ﴿ وَمَن يَرْتَدِدْ مِنكُمْ عَن دِينِهِۦ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُو۟لَٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ﴾ (اوهرڅوک چي ګرزی له تاسی نه له دینه خپله پس مرشی حال داچي دی کافروی نودغه کسان ضائع شوی دی (تیر) عملونه ددوی په دنیا اوآخرت کی) یعنی که له تاسو څخه څوک ددو ی خبره ومنی اوله خپله دینه وګرزی مرتدشی بیاپه کفرکی مرشی نوهغه صالح عملونه یی په دنیا اوآخرت کی ضائع شول اوثواب یی ولاړ ﴿ وَأُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ اودغه کسان ښتنان داور (ددوزخ) دی همدوی به په دی (اورکی) تل ترتله وی) چي هیڅکله به څنی نه را ایستل کیږی ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱلَّذِينَ هَاجَرُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ أُو۟لَٰٓئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ ٱللَّهِۚ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ بیشکه هغه کسان چي ایمان یی راوړی دی اوهغه کسان چي هجرت یی کړی دی اوجهادیی دالله په لاره کې کړی دي دغه کسان امید لری دوی درحمت دالله اوالله ښه مغفرت کونکی (دخطیئاتو) پوره رحم لرونکی دی (داجرپه زیاتوالی سره) یعنی هغوی چي خپل اهل اوهیواد یی پرې ایښی له دښمنانو سره یی جنګ کړی دوی ددی وړدی چي دالله رحمت اومغفرت ورته ورسیږی الله دستر مغفرت اوپراخ رحمت ښتن دی

بلاغت:

- پدی کلمه کښی ایجاز بالحذف دی کوم چي فرمایی:(كَانَ ٱلنَّاسُ أُمَّةً وَٰحِدَةً) یعنی وودوی یوامت په ایمان باندی چي دحق پیروان وو بیایی اختلاف پیل کړلو الله ﷻ انبیاء راواستول اوپدی باندی داقول دلالت کوی چي: (لِيَحْكُمَ بَيْنَ ٱلنَّاسِ فِيمَا ٱخْتَلَفُوا۟ فِيهِ)
- (أَمْ حَسِبْتُمْ) أم منقطعه اوهمزه دانکار لپاره دی چي دلته انکاری استفهام بلل کیږی.
- پدی جمله کی چي فرمایی(وَلَمَّا يَأْتِكُم)لما په نفی دلالت کوی سره له هیلی دواقع کیدلو لکه چي زمخشری وایی معنی یی داده :لما ینزل بکم مثل مانزل بمن قبلکم وسینزل فان نزل فاصبروا )یعنی په تاسو خوهغه څه نه دی راغلی چي په پخوانیو راغلی وو اوژربه په تاسوهم راشی کله چي راشی بیاصبراوزغم کوی مبردوایی:کله چي څوک ووایی( لم یأتنی زید ) معنی یی داده چي ستادپوښتنی معنی کوی کوم چي تاورته ویلی وو (أتاک زید )ایازید درته راغلی وو؟هغه وایی هیڅکله زید نه دی راغلی اوکه یی بیا وویل چي(لمایأتنی)نومعنی یی دادی چي تراوسه ندی راغلی اوزه هیله کوم چي رابه شي نوپدی توګه په مسلمانانو دسختیو اومشکلاتو راتلل شته اوانتظاریی کیدای شی.

- (أَلَآ إِنَّ نَصۡرَ ٱللَّهِ قَرِيبٌ) پدې جمله کې څو تاکيدات شته چې د نصرت په راتلو دلالت کوي اول داچې جمله د استفتاح په حرف (توري) پيل شوې چې (الا) ده او تاکيد څنې معلومېږي داسې نه دې ويل شوي چې په تاکيد دلالت کوي دوهم (ان) ذکر شوی چې په تاکيد دلالت کوي دريم داچې اسميه جمله غوره شوې او څلورم داچې د نصرت يې رب العلمين ته اضافت کړی هغه چې په هرڅه قادر ذات دی.
- (وَهُوَ كُرۡهٞ لَّكُمۡ) په دې جمله کې مصدر د مفعول پرځای راوړل شوی چې (کره) د (مکروه) په ځای دی او په دې کې مبالغه ده لکه چې خنساء وايي: فانما هي اقبال وادبار.
- په دې دوو جملو کې چې فرمايي: (وَعَسَىٰٓ أَن تَكۡرَهُواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ خَيۡرٞ لَّكُمۡۖ وَعَسَىٰٓ أَن تُحِبُّواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ شَرّٞ لَّكُمۡ) دلته د مقابلې صنعت دی چې د حب او کراهيت او خير او شر ترمينځ راغلی او د بديع علم له محسناتو څخه ګڼل کېږي.
- (وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ وَأَنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ) دلته د طباق سلب صنعت دی.

**فائده او ګټه:**

الله تعالی د انبياوو له کتابونو څخه په يوه کتاب تعبير وفرمايه چې: (وأنزل معهم الكتاب) دې ته اشاره کوي کتابونه که څه هم متعدد دي خو په اصل او مقصد کې يو دي څکه په يوه شريعت مشتمل دي لکه چې بل ځای الله فرمايي (شَرَعَ لَكُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا وَصَّىٰ بِهِۦ نُوحٗا وَٱلَّذِيٓ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ وَمَا وَصَّيۡنَا بِهِۦٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَىٰٓۖ أَنۡ أَقِيمُواْ ٱلدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُواْ فِيهِۚ كَبُرَ عَلَى ٱلۡمُشۡرِكِينَ مَا تَدۡعُوهُمۡ إِلَيۡهِۚ ٱللَّهُ يَجۡتَبِيٓ إِلَيۡهِ مَن يَشَآءُ وَيَهۡدِيٓ إِلَيۡهِ مَن يُنِيبُ).

**تنبيه:**

امام بخاري رحمه الله له خباب ابن الارت ﷺ څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ د کعبې سيورې ته په خپل څادر باندې تکيه کړې وه مونږ ورته وويل: ايا زمونږ لپاره مرسته نه غواړې؟ ايا مونږ ته دعا نه کوې ؟ نو يې ورېل پخوا له تاسې داسې څوک وو چې سرې به يې په مځکه کې ښخ کړ او په سر به يې اره ورکښېښوده دوه ځايه به يې کړ او د اوسپنې په ږمنځو به يې داسې ږمنځول چې غوښې او هډوکي به يې بېل شول خو دوی له دينه څخه نه اوښتلو په الله لوړه چې الله به دا دين داسې خپور کړي چې سپور به له صنعاء تر حضرموت پورې درومي خو له الله پرته به له بل چا څخه نه ويرېږي او نه به د خپلې رمې په هکله څوک له لېوه د ارېږي خو تاسې تلوار کوئ.

الله تعالی فرمايي:

(۞ يَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلۡخَمۡرِ وَٱلۡمَيۡسِرِۖ قُلۡ فِيهِمَآ إِثۡمٞ كَبِيرٞ وَمَنَٰفِعُ لِلنَّاسِ وَإِثۡمُهُمَآ أَكۡبَرُ مِن نَّفۡعِهِمَاۗ وَيَسۡـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلِ ٱلۡعَفۡوَۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلۡأٓيَٰتِ لَعَلَّكُمۡ تَتَفَكَّرُونَ ﴿٢١٩﴾ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۗ وَيَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلۡيَتَٰمَىٰۖ قُلۡ إِصۡلَاحٞ لَّهُمۡ خَيۡرٞۖ وَإِن تُخَالِطُوهُمۡ فَإِخۡوَٰنُكُمۡۚ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ ٱلۡمُفۡسِدَ مِنَ ٱلۡمُصۡلِحِۚ وَلَوۡ شَآءَ ٱللَّهُ

لَأَعْنَتَكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٢٠﴾ وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ
أَعْجَبَتْكُمْ ۗ وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا ۚ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ ۗ أُولَٰئِكَ يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ ۖ
وَاللَّهُ يَدْعُو إِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِإِذْنِهِ ۖ وَيُبَيِّنُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٢٢١﴾ وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ ۖ قُلْ هُوَ
أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ ۖ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ ۖ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ
التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ﴿٢٢٢﴾ نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ ۖ وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا
أَنَّكُم مُّلَاقُوهُ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٢٣﴾ وَلَا تَجْعَلُوا اللَّهَ عُرْضَةً لِّأَيْمَانِكُمْ أَن تَبَرُّوا وَتَتَّقُوا وَتُصْلِحُوا
بَيْنَ النَّاسِ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٢٤﴾ لَّا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ
حَلِيمٌ ﴿٢٢٥﴾ البقرة: ٢١٩ - ٢٢٥

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی په تیرو آیتونو کی دجنګ احکام بیان کړل اوهغه ستر هدف چي جهاد یې رواکړی اوهغه دحق مرسته اوددین لوړ تیا اوتعالي ده ترڅواسلامی امت له دی څخه وژغورل شی چي دښمن یې له ستونی تیرکړی ذکر کړ وروسته یې مومنان هغه داخلی اصلاح ته متوجه کړل اوهغه یې وفرمایل چي په ټولنه کی دفضیلت اوښو اخلاقو پوری تړلی اوتعلق لری څکه چي ټولنه باید له بهرنی (خارجی)اوداخلی اصلاح څخه برخور داره وی ترڅو یې تاداوونه خوراتینګ اومحکم شی اوددنیا طوفانی بادونه یې ونه خوځوی.

## لغتونه:

(الخمر)مستوونکی شیان خمر یې څکه بولی چي هغه پټولوته وایی اوداشیان هم عقل پټوی لکه چي وایی:(خمرت الاناء)لوښی می پټ کړ یعنی برغولی می وراندی دپاسه کښیښود(المیسر)قمار ته وایی له یسر څخه اخیستل شوی څکه پرته له تکلیف نه تر لاسه شوی اوچاپیاویلی چي له یسارنه راغلی چي بدایی اوغناته وایی اوداهم دبډایی سبب ګرزی(الاثم)ګناه ته وایی جمع یې(آثام)راځی شرابوته هم (اثم)ویل کیږی څکه دوی دګناه سبب جوړیږی (العفو) ترحاجت زیات څه ته ویل کیږی(اعنتکم) په سختئ کی به تاسی واچوی دعنت اصل مشقت اوسختی ده (امة)مینځې ته وایی جمع یې (اماء)راځی اوداصیلی مقابل ده (المحیض)مصدر اودحیض په معنا ده لکه (معیش )چي دعیش په معنی ده حیض په اصل کی بهیدلوته وایی اوښځی ته (حائض) او (حائضه) ویل کیږی فراء وایی:(کحائضة یزنی بهاغیرطاهر) لکه چي له حائضی سره ناولی زناکوی (الحرث) دتخم (زری) اچول په مځکه کی داخبره راغب کړی اوجوهری وایی چي کښت ته وایی[1] او(حارث)کښت کوونکی بولی اودحرث معنی دلته دښنه کیدلو ځای اودماشوم دزیږیدلو ځای د تشبیه په دول ګڼل شوی دی(عرضة) منع کونکی اوهرشی چي منع کوی (عرضه )بولی لکه چي وریځ عارض بولی څکه دلمرورانګی نه پریږدی (لغو)چتیات هغه که خبری اوکه نورڅه وی دمرغه آواز ته هم چي لغو وویل شی څکه معنیٰ نلری.

[1] الصحاح للجوهری د(حرث) ماده.

د نزول سبب:

الف-یوه ډله انصار رضی الله عنهم رسول الله ﷺ ته راغلل چې پکې عمر بن الخطاب ﷺ وو اورته ويل يې: موږ ته د شرابو او قمار په هکله فتوا راکړه ځکه دا دواړه شيان عقل او مال بايلي او له مينځه يې وړي يې نو الله ﷺ دا آيت نازل کړ (يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْخَمْرِ وَٱلْمَيْسِرِ).

ب- له ابن عباس ﷺ څخه روايت شوی چې هغه وايي کله چې الله دا آيت نازل کړ: (وَلَا تَقْرَبُوا۟ مَالَ ٱلْيَتِيمِ إِلَّا بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ) نو هغه چا چې ورسره به د يتيم مال وو هغه يې گوښې کړ، خوراک څښاک يې ځنې جلا کړ کله چې به يې د يتيم له خوراک څخه څه پاتې شوي وو هغه به يې ورته خوندي کړل ترڅو به خوساشو او يا به يې وخوړل نو دا په دوی سخته شوه او رسول الله ﷺ ته يې عرض وکړ الله دا آيت نازل کړ: (وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْيَتَـٰمَىٰ قُلْ إِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ) دا آيت ترپايه.

ج- أنس ﷺ وايي چې: کله به د يهودو له ښځو څخه کومه يوه حائضه (د مياشتنی ناروغه) شوه نو به يې له خونې (کوټې) بهر کړه ورسره به يې خوراک څښاک نه کاوو او نه به يې په کور کې ورسره يو ځای گوزاره کوله نو له رسول الله ﷺ څخه په دې هکله پوښتنه وشوه الله ﷻ دا آيت نازل کړ چې: (وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى) دا آيت ترپايه.

تفسير:

﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْخَمْرِ وَٱلْمَيْسِرِ ﴾ پوښتنه کوي له تا څخه (ای محمده ﷺ) له (حکمه) د شرابو او له (حکمه) د قمار څخه ﴿ قُلْ فِيهِمَآ إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَـٰفِعُ لِلنَّاسِ ﴾ ورته ووايه (ای محمده) په دې دواړو کې گناه لويه ده او گټې دي لپاره د خلکو ﴿ وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا ﴾ او گناه د دواړو ډيره لويه ده تر گټه د دوی دواړو ځکه د عقل وړل او د مال بايلود ل او د تن وړاندې کول ناروغۍ ته په شرابو کې دي لکه چې قمار کورونه ورانوي کورنۍ تباه کوي د قمار بازانو لوبغاړو ترمينځ کرکه او نفرت راولي د اتول ليدل شوي او منل شوي دي که چيرې يې د غه ستر ضرر او تاوان له ليرې گټې سره پرتله شي نو به د دغه منکر او خبيث عمل تاوان ځرگند شي ﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ ﴾ (او پوښتنه کوي (ای محمده) له تا څخه چې څومره ولگوئ) يعنی څومره مصرف او څومره مال پريږدي؟ ﴿ قُلِ ٱلْعَفْوَ ﴾ ورته ووايه (ای محمده) چې صرف کړئ هغه چې (وی) زيات له حاجته ستاسی نه او هغه مه لگوئ چې ستاسو ورته اړتياوی او خانونه خوار کړی ﴿ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلْـَٔايَـٰتِ ﴾ (همداسي بيانوي الله تاسي ته احکام) يعنی لکه چې احکام درته بيانو ی همداسي گټي او تاوانونه او حلال حرام هم دربښيي ﴿ لَعَلَّكُمْ

تَتَفَكَّرُونَ فِي ٱلدُّنْيَا وَٱلْآخِرَةِ ﴾ (لپاره ددې چي تاسي فكر وكړئ (دالله تعالى په احكامو اودلائلوكي ) اوپه (كارونود ) دنيا اوآخرت كي) نوبه وپوهيږئ چي دنيا پاتي اوفنا اوآخرت تل ترتله باقي پاتي دي نوبه هغه كاركوئ چي ستاسي لپاره ترټولو ښه وي هوښيار هغه دي چي باقي ژوندته په فاني ژوند ترجيح وركړي

﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْيَتَٰمَىٰ ۖ قُلْ إِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ ﴾ اوپوښتنه كوي دوى له تانه (اي محمده )له معاملاتو ،ديتيمانو ته ورته ووايه (اي محمده) چي اصلاح دمال ددوى بهتردى (له بيزاري نه) يعني دوى ديتيمانو دګډون په هكله پوښتنه كوي چي ايا هغه له خانه سره ملګري كه څنګ ګوښي كړي نوورته ووايه چي ددوى ګډول داصلاح په ډول دهغوى له ګوښي توب څخه غوره دي ﴿ وَإِن تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَٰنُكُمْ ﴾ (اوكه يوځاى كړئ خرڅ ددوى )له خانه سره نودوى ورونه ستاسي دي) يعني كه موخپل مالونو دهغوى له مالونو سره ګډكړل داصلاح اومصلحت په ډول نوبيادوى ستاسي ديني ورونه دي اوديني اخوت ترنسبي ټينګ دي اودهمدي وروروولي له حقوقو څخه يودادي چي دمصالحې اوګټې لپاره به يي مال ګډوئ ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ ٱلْمُفْسِدَ مِنَ ٱلْمُصْلِحِ ﴾ اوالله ته معلوم دي ضائع كونكي (دمال) له اصلاح كونكي نه) يعني الله دادواړه پيژني اوهريوه ته په خپل عمل باندي جزا وركوي ﴿ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ ﴾ اوكه اراده كړي واى الله (دمشقت) ستاسي نوخامخابه يي مشقت راووست په تاسي باندي) خوالله ﷻ دآسانتياارادہ لري اودخپل رحمت اومهرباني له مخي يي دين درته آسانه كړى دى ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ (بيشكه چي الله ښه غالب ښه تدبير والادى) يعني الله ﷻ داسي قوي اوغالب ذات دي چي هيڅ ورته ممتنع نه دي هغه چي كوم احكام دخپلو بندګانو لپاره ټاكي دحكمت خاونددى ، بياالله تعالى دهغو مشركو ښځو له په نكاح كولو څخه ويرونه كوي چي هغوى اسماني دين اوكتاب نلري فرمايي: ﴿ وَلَا تَنكِحُوا۟ ٱلْمُشْرِكَٰتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ﴾ اوپه نكاح مه اخلئ مشركې ښځي ترهغو پوري چي ايمان راوړي دوى) يعني داهل كتابو نه پرته مشركې ښځې په نكاح مه اخلئ ترڅوپه الله اوآخرت باندې ايمان راوړي ﴿ وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ ﴾ (اوخامخا وينځه مسلمانه بهتره ده له مشركې اصيلې څخه اګركه تاسي ته ښه درښكاره شي) يعني كه څه هم چي مشركه اصيله دمال اوجمال څښتنه وي اونورټول هغه صفات چي كورني اوحسب يي لوړوي پكي موجودوي خومؤمنه مينځه ترې بهتره ده ﴿ وَلَا تُنكِحُوا۟ ٱلْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا۟ ﴾ اوپه نكاح مه وركوئ (مسلمانې ښځې) كافرانو ته ترهغه پوري چي ايمان راوړي دوى) يعني تاسوخپلي لونې مشركانو ته كه بت پرستان وي اويااهل كتاب مه وركوئ ترڅو چي په الله اوپيغمبر ﷺ ايمان راوړي ﴿ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ ﴾ (اوخامخا مريئ مومن بهتردى له كافرسړي نه اګركه ښه درښكاره شي تاسې ته ) يعني كه تاسو خپلي لونې مومن مريي ته واده كړي ترهغه ښه ده چي اصيل مشرک ته يي ودوى كه څه هم دغه مشرک په مال جمال حسب او نسب كي لوړ وي اوتاسي ته ښه ښكاري ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ يَدْعُونَ إِلَى ٱلنَّارِ ﴾ دغه كسان بولي (خلک په بدعمل سره) په لوري داور ( ددوزخ ) يعني دغه ذكرشوي مشركان اومشركې ښځي چي له دوى سره دوستي دمصاهرت اويابه نكاح اخستل ناروا وګڼل شودوى تاسې هغه څه ته بولي چي اورته موغور ځوي اوهغه كفر اوفسق دى

نوحق دادی چي نه خو خپله لور ورکړی اونه هم تاسو دغه مشرکې په نکاح واخلی ﴿ وَٱللَّهُ يَدْعُوٓاْ إِلَى ٱلْجَنَّةِ وَٱلْمَغْفِرَةِ بِإِذْنِهِۦ ﴾ اوالله بولی(خلک)په لوری دجنت اومغفرت په اذن (حکم اوارادې)خپلی سره یعنی الله موهغه څه ته بولی چي جنت اومغفرت واجبوی ستاسو دخیر اراده لری اونیکمرغی ته موبولی ﴿ وَيُبَيِّنُ ءَايَٰتِهِۦ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴾ اوبیانوې احکام خپل خلکوته دپاره ددې چي دوی نصیحت ومنی(پند واخلی)نودخیر اوشرتوپیربه وکړی. وروسته الله ﷻ دحیض احکام داسي بیانوی: ﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْمَحِيضِ ۖ قُلْ هُوَ أَذًى ﴾ اوپوښتنه کوی دوی له تانه (ای محمده له احکامو )دحیض څخه ووایه (ای محمده دوی ته)دایوه پلیتی ده)یعنی دوی له تانه ددی پوښتنه کوی چي دحیض په موده کی له ښځوسره جماع (کوروالی )رواده که ناروا؟نوورته ووایه چي دایوناپاکه حالت دی اوپه دی کی (کوروالی)کول دداړو لپاره ضرردې ﴿ فَٱعْتَزِلُواْ ٱلنِّسَآءَ فِى ٱلْمَحِيضِ ۖ ﴾ نوپه څنګ شی له جماع دښځو څخه په وخت دحیض کی ﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ ۖ ﴾ اومه نژدی کیږی(په جماع سره)دوی ته ترهغه پوری چي (ښی)پاکی شی)یعنی چي وینی یی ودریږی اوغسل وکړی اومراد داده چي کوروالی (جماع ) مه ورسره کوئ نه داچي مطلق نزدیکت یی مه کوئ یوځای مه کښینئ اومه ورسره خوراک څښاک کوئ لکه چي به یهودوانو کله چي به یی میرمن حائضه شوه کول ﴿ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ ٱللَّهُ ﴾ نوهرکله چي ښی پاکی شوی دوی نوراځئ دوی ته (په جماع سره )له هغه ځایه چي الله تاسی ته حکم کړی دی چي هغه دنسب اواولاد روزلو ځای دي یعنی دمخه لوري ، نه دشالوري ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلتَّوَّٰبِينَ وَيُحِبُّ ٱلْمُتَطَهِّرِينَ ﴾ بیشکه چي الله خوښوی توبه ایستونکی له ګناهونو اوخوښوی ځان ساتونکی (له پلیتیو څخه) ﴿ نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُواْ حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ ۖ ﴾ ستاسی ښځی ځای دکرلو ستاسی دی نوراځی ځای دکرلو خپلوته (چي دمخه لوری دی)په هرډول چي خوښه شی ستاسی ) ابن عباس رضي الله عنه وایی خپل کښت چي چیری زرغونیږی هلته یی اوبه کړه (اسق نباتک حیث ینبت )او(أنیٰ شئتم ) معنا داده چي څه ډول موزړه غواړی په ولاړی وی که په ناستی یاملاستی یاپه اړخ وی خوچي دمخې له خوا (فرج) کی وی اوداديهودانو دهغه خبری رد دی چي دوی به ویل که څوک دشاله خوادمخې په ځای کی مجامعت وکړ ي نوماشوم یی چپ سترګی (احول)زیږی ﴿ وَقَدِّمُواْ لِأَنفُسِكُمْ ﴾ اوپه مخکی ولیږئ تاسی لپاره دځانو نوخپلو (نیک عمل)ترڅو ستاسو لپاره ذخیره وی ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّكُم مُّلَٰقُوهُ ۗ ﴾ اوویریږی له الله څخه اوو پوهیږئ چي بیشکه تاسی ملاقات کوونکی یی له الله سره )یعنی تاسو هغه ته ورځی اوهغه به تاسوته ستاسی په اعمالوجزا درکړی ﴿ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوزیری ورکړه (ای محمده )مؤمنانو ته (دجنت دنعمتونو ) ﴿ وَلَا تَجْعَلُواْ ٱللَّهَ عُرْضَةً لِّأَيْمَٰنِكُمْ ﴾ اومه ګرزوئ(نوم د ) الله نښانه لپاره دقسمونو خپلو ) یعنی تاسو په خدای باندی لوړه سبب دمنعي دنیک عمل مه ګرزوئ چي بیا قسم پلمه کړی. اوواياست چي مالوړه کړی چي داسې به نه کوم غواړم چي قسم پرځای کړم بلکه تاسو نیک

کاروکړی، اودقسم کفاره ورکړي.[1] ابن عباس ﷺ وايي چي الله دخپل قسم لپاره ننبه مه ګرزوه چي ته به ښه کار نه کوی بلکه دقسم کفاره ورکړه اوښه کار ترسره کړه ﴿ أَن تَبَرُّواْ وَتَتَّقُواْ وَتُصۡلِحُواْ بَيۡنَ ٱلنَّاسِۚ ﴾ (داچي (نه) به نیکي کړئ او(نه)به پرهيزګاري او(نه)به روغه کوی، په مينځ دخلکو کی )يعنی الله سبب دمنعي دښو کارونو ،تقویٰ، اودخلکو ترمينځ دروغی جوړی مه ګرزوی دا آيت شريف دعبدالله بن رواحه په هکله نازل شوی چي هغه قسم خوړلئ وو چي دخپل اوښی نعمان بن بشير سره به خبرې نکوی اونه به دهغه اوخپلې خور ترمينځ روغه جوړه کوی ﴿ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٞ ﴾ (اوالله ښه اوريدونکی ښه عالم دی )يعنی ستاسی داقوالو اوريدونکئ اوستاسی داحوالو ليدونکی دی بيا الله وفرمايل: ﴿ لَّا يُؤَاخِذُكُمُ ٱللَّهُ بِٱللَّغۡوِ فِيٓ أَيۡمَٰنِكُمۡ ﴾ (نه نيسی الله تاسی په لغو (اوپه ګمان)سره په قسمونو ستاسی کی) يعنی الله تاسی په هغو قسمونو چي بی اختياره موپه خوله راشی نه نيسی لکه چي څوک وايی(بلی والله )يعنی هوپه والله اويانه په والله خودلوړې اوقسم قصد يی نه وی ﴿ وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَتۡ قُلُوبُكُمۡ ﴾ اولکن نيسی (الله)تاسې په هغه قسم چي قصد کړی وی (دهغه)زړونو ستاسې ) ﴿ وَٱللَّهُ غَفُورٌ حَلِيمٞ ﴾ اوالله ښه مغفرت کونکی ښه تحمل کونکی دی ژرتر ژره بندګان په عذاب نه نيسي.

## بلاغت:

۱- (يَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلۡخَمۡرِ وَٱلۡمَيۡسِرِ )پدی کلام کی (ايجازبالحذف)دی يعنی پوښتنه کوی له تاڅخه دشرابو دڅښلو اودقمار دکولو په هکله.

۲-پدې قول کي چي الله فرمايی( وَإِثۡمُهُمَآ أَكۡبَرُ مِن نَّفۡعِهِمَا )دلته اطناب اوهغه داچي له اجمال نه وروسته تفصيل راشی.

۳-( كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلۡأٓيَٰتِ)پدی کی(مرسله مجمله) تشبيه ده.

۴-( وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ ٱلۡمُفۡسِدَ مِنَ ٱلۡمُصۡلِحِ)دلته دطباق صنعت دمفسد اومصلح ترمينځ دی اودبديعی محسناتو څخه ګڼل کيږی.

۵-( أُوْلَٰٓئِكَ يَدۡعُونَ إِلَى ٱلنَّارِۖ وَٱللَّهُ يَدۡعُوٓاْ إِلَى ٱلۡجَنَّةِ )په دی کی هم دطباق صنعت دی چي يويې دنار کلمه له بلې دجنت له کلمي سره راغلی.

۶-(قُلۡ هُوَ أَذٗى ) پدی کلام کی بليغه تشبيه ده څکه دتشبيه تورې حذف شوی اووجه دشبهی هم نده ځرګنده نوورته بليغه تشبيه وايو نوبه لکه چي وويل شی (علی زمرئ دی ) اودابه نودمبالغی لپاره وی.

۷-(وَلَا تَقۡرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطۡهُرۡنَ )له جماع څخه کنايه راغلی ده.

[1] چاپياويلی چي ډيرقسمونه مه خورئ چي الله دخپلو قسمونو ننبه وګرزوئ اوپه هرلوی اوکوچنی سپک اودرانه کارکی قسمونه اخلئ غوارئ چي تاسی قسم پرڅای کړی پرهيزګاراوصالحان ياست خوقسم خورهيڅکله هم نيک اوپرهيزګار نه وی.

٨ - پدی جمله کی چي فرمايي: (نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ) دادمضاف په حذف سره راغلی يعنی ځای (دحرث) ستاسو دی اويا تشبيه ده چي ښځه يی له مځکی سره مشابه ګڼلی او نطفه لکه تخم او زږی اولاد لکه کښت نو (حرث) دمحرث په معنی دمبالغی لپاره راوړل شوی دی.

## فوائد او ګټي:

**لومړۍ فائده: شرابو ته (ام الخبائث) وايی ځکه هغه دهر بدفعل سرچينه ده نسائی روايت کوی چي عثمان ﷺ وويل که له شرابو ځان وژغوری هغه (ام الخبائث) دی پخوا يو عبادت کونکی سړی وو نويوی پليتی ښځی هغه بی لاری کړ چي وينځه يی ورته راواستوله ورته ويل يی دشاهدۍ لپاره دی بولی او هغه له وينځی سره ورغی کله چي به په يوه دروازه دننه شوه هغه به يی پسی وتړله ترڅوچي ښځی ته وررورسيدل او هلته يو ماشوم او يو هم دشرابو خم وو ښځی ورته وويل: ماته دګواهۍ لپاره نه يی رابللی بلکه غواړم چي راسره (جماع) وکړی اوياداشراب وڅښی او هم داماشوم ووژنی هغه ورته وويل شراب راوڅښه چي يوه پياله يی ورکړه نوريی وغوښتل هغه يی هم ورڅښل ترڅويی زنا وکړه او ماشوم يی وواژه نوله شرابو ځان وژغوری ځکه چي بيشکه په الله قسم که به ايمان او تل ترتله شراب خوړل سره يوځای شی خامخابه يو يا بل ايستلو ته اړباسی).**

دوهمه فائده: په شرابو کی به څنګه فائده وی سره له دی چي هغه عقل او مال دواړه بيايی؟ ځواب داچي په آيت شريف کی مادی منافع مقصد دی چي دوی به سود اګری کوله او ګټي وتی به يی خوړلی اويا کيدای شی دغه لړ غوندی خوند اومست والی به مطلب وی قرطبی وايی: دشرابو څښونکی دخلکو ساتيری او خندنی جوړشی او په خپلو بولو او غائطه موادو لوبی کوی کله کله يی په مخ موښی چي ليدل شو ی يو چا له دوی څخه مخ په متيازو لړلی او ويل يی (اللهم اجعلنی من التوابين واجعلنی من المتطهرين) څينی داسي ليدل شوی چي سپی مخ ورڅټی او هغه وايی چي (اکرمک الله کما اکرمتنی)(١)

دريمه فائده: زمخشري وايی چي په (فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ) (مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ) (فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ) پدی ټولو کی کنايات لطيفه او تعريضات حسنه موجود دی او داکلمې او داسي نور هغه څه دی چي الله مؤمنانو ته دادابو ښوونه کوی څوبی زده کړی او په خپلو محاوراتو او ليکنو کی يی راوړی(٢)

## الله تعالى فرمايي:

﴿ لِّلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ فَإِن فَآءُو فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٢٦﴾ وَإِنْ عَزَمُوا۟ ٱلطَّلَٰقَ فَإِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٢٧﴾ وَٱلْمُطَلَّقَٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَٰثَةَ قُرُوٓءٍ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ ٱللَّهُ فِىٓ أَرْحَامِهِنَّ إِن كُنَّ يُؤْمِنَّ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِى ذَٰلِكَ إِنْ أَرَادُوٓا۟ إِصْلَٰحًا وَلَهُنَّ مِثْلُ ٱلَّذِى عَلَيْهِنَّ بِٱلْمَعْرُوفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ

---

[1] القرطبی (٣/٥٧)
[2] (الکشاف ١/٢٠٢)

دَرَجَةٌ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٢٨﴾ الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ ۖ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ ۗ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا
آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا إِلَّا أَنْ يَخَافَا أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ ۖ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ ۗ تِلْكَ
حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَعْتَدُوهَا ۚ وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٢٢٩﴾ فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا
غَيْرَهُ ۗ فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يَتَرَاجَعَا إِنْ ظَنَّا أَنْ يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ ۗ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٢٣٠﴾

البقرة: ٢٢٦ - ٢٣٠

## مناسبت او تړاو:

الله تعالی په تیرو آیتونو کی ځینی ټولنیزی ناروغی ذکر کړی چي دامت تن کمزوری کوی او دیوالی مزی پری کوی او دامت په مینځ کی دښمنی او کرکی رامینځته کوی لکه شراب خوړل او قمار کول او س بیرته خبره دکورنۍ په لور ولیږدیده چي هغه ګواکی لومړی زړی دی چي ښایسته ټولنه وربا ندی جوړیږی ځکه دکورنۍ په سموالی ټولنه سمیږی او په فسادیی بیا ټولنه فاسدیږی او تباه کیږی نو یی دکورنۍ احکام په دی بنا او پیل کړل چي دزوجینو ترمینځ علاقه او تړون باید ددین په تادا و بناوی ترڅو دغه تړون تلپاتی او پکی مهربانی ،اخلاص او رښتنولی موجوده شی ځکه نو مشرکه ښځه نباید دمسلمان په څنګ کې وی او مسلمانه ښځه نه ښایی چي دکافر او مشرک ترسلطی لاندې وی ځکه اسلام دمشرکانو نکاح او یادا چي مشرکانو ته مومنانې په نکاح ورکول شی حرام اعلان کړل او س په دی آیتونو کی ځینې نورې ناروغی یادوی هغه چي دکورنۍ موجودیت ته خطرپیښوې چي هغه ایلاء، طلاق او خلع ده او ددې لپاره یی بریالی علاج هم بیان کړ ترڅو کورنۍ له ورانی څخه وژغورل شی.

## لغتونه:

(یؤلون) په لغت کی لوړی ته وایی له (له ألی ،یؤالی ،ایلاء) څخه اخیستل شوی او دشریعت په اصلاح کی هغه قسم او لوړی ته وایی چي هغه یی دجماع په نه کولو اخلی (تربص) تربص انتظار ته وایی (قُلْ تَرَبَّصُوا فَإِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُتَرَبِّصِينَ) الطور ٣١ (فیئ) رجوع ته وایی ځکه نوسیوری ته هم (فیئ) وای چي هغه له کموالی وروسته راګرزی او راټولیږی فراوایی: چي عرب وایی: فلانی سری (سریع الفیئ) ده یعنی له غضب نه وروسته ژر راګرزی (قروء) له قرء څخه اخیستل شوی له اضدادو څخه دی او حیض ،پاکی دواړو ته وایی اصل یی راټولیدنی ته وایی ځکه په رحم کی وینی راټولیږی په قاموس کی وایی چي (قرء) په ضمه او فتحه سره حیض، طهر او وخت ته وایی خو دطهر جمع یی قروء راځی او دحیض په معنی چي وی جمع یی اقراء راځی (بعولتهن) دبعل جمع او میړه ته وایی (وهذا بعلی شیخا) او ښځی ته بعلة وایی (درجة) منزلت او لوړی رتبی ته وایی (الطلاق) مصدر ده معنی یی دنکاح دغوټی پرانستل دی چي له آره خلاصولو او پرانستلو ته وایی ویل کیږی (ناقة طالقة) هغه اوښه چي پرته له ترلو اوشپانه په څرځای کی ګرزی ، نوهغې طلاقې شوی ښځي ته هم پرانستلي او خلاصه وویل شوه (تسریح) استول خلاصولو ته وایی او دوبینتانو ږمنځولو ته ځکه تسریح ویل کیږي چي یو له بله پرانستل شی او چي ووایی څاروی یی ایله کړ دی ته هم تسریح وایی راغب وایی تسریح په طلاق کی له (تسریح الابل) څخه مستعاره ده لکه چي طلاق مستعار دی له (اطلاق الابل) څخه

د نزول سبب:

په جاهلیت کی به یو تن ښځه څو څو خله طلاق کړه او بیرته به یی ور ته مراجعه کوله تر پخوا اله دی چي عدت یی تیرشی که څه هم یو زر خله به یی طلاق کړه نو یو سړی به خپلی ښځی ته ویل نه دی خپلوم او نه دی خوشی کوم هغی به ویل څنګه ؟ ور ته ویل به یی: طلاق به درکړم کله چي دی د (دعدت) موده تیریدلو ته نژدی شوه بیرته به درته مراجعه وکړم نو ښځی خپل شکایت پیغمبر ﷺ ته وړاندی کړ بیا الله دا آیت نازل کړ:

(اَلطَّلَٰقُ مَرَّتَانِ فَإِمۡسَاكُۢ بِمَعۡرُوفٍ أَوۡ تَسۡرِيحُۢ بِإِحۡسَٰنٍ) دآیت تر پایه.

تفسیر:

﴿ لِّلَّذِينَ يُؤۡلُونَ مِن نِّسَآئِهِمۡ تَرَبُّصُ أَرۡبَعَةِ أَشۡهُرٍ ﴾ دی هغو کسانو لره چي قسمونه کوی (له جماع) د ښځو خپلو نه (مطلقا یا تر څلور و میاشتو پوری) انتظار د څلورو میاشتو یعنی هغه کسان چي قسمونه کوی له خپلو ښځو سره به جماع نه کوی او د هغوی څوریی مقصد وی د څلورو میاشتو انتظار شته ﴿ فَإِن فَآءُو فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ نو که بیا رجوع وکړه دوی (او سره یو ځای شول) پس بیشکه الله ښه ښنونکی د ګناهونو او پوره رحم لرونکی دی (د اجر او ثواب په انعام سره) ﴿ وَإِنۡ عَزَمُواْ ٱلطَّلَٰقَ فَإِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٞ ﴾ او که قصد وکړ دوی د طلاق (او رجوع یی ونه کړه ) پس بیشکه چي الله ښه اوریدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم دی (پر ټولو احوالو ) یعنی که دوی پخپل تصمیم ولاړ وو او رجوع یی نه کوله نو الله د دوی د اقوالو ښه اوریدونکی او علیم د ی د دوی په نیتونو باندی د آیت شریف مراد دادی که څیری میړه داسي قسم وخوری چي له ښځي سره به جماع (کوروالی) نه کوی نو میر من دی ور ته څلور میاشتی انتظار وباسی که ور سره نژدی شو (جماع یی وکړه ) فبها او نعمت هله به نو په قسم حانث شوی او کفاره به یی راوړی او که څیری یی جماع (کوروالی ) ور سره ونکړ کله چي د غه نو موړی موده تیره شوه نو بیا بیلتون او طلاق واقع شو او همدا دامام ابو حنیفه رحمه الله مذهب دی امام شافعي رحمه الله وایي: چي دغه قضیه به حاکم ته پورته کولی شی او هغه به میړه ته امر کوی چي یا خودی ور ته راوګرزی یعنی هغه دی خپله کړی او یا دی طلاق ورکړی که یی ممانعت وکړ نو حاکم دی ور باندی طلاقه کړی دا د ایلاء د حکم لنډیز دی ورو سته الله تعالی د عدت او شرعی طلاق احکام داسي بیانوی: ﴿ وَٱلۡمُطَلَّقَٰتُ يَتَرَبَّصۡنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَٰثَةَ قُرُوٓءٖ ﴾ او طلاق شوی ښځی دی انتظار کوی په ځانونو خپلو (له نکاح کولو نه) تر دریو (قروء) پوری یعنی واجب په هغو اصیلو مدخول بهن میر منو باندی دادة چي د دریو طهرونو په موده انتظار وکړی دا دامام مالک رحمه الله او امام شافعی رحمه الله قول دی او امام ابو حنیفه او امام احمد رایه داده چي دری حیضه موده باندی چي انتظار وګالی او چي دا موده تیره شوه که خونه یی وه بل واده دی وکړی دا د هغو ښځو په هکله دی چي ور باندی دخول شوی وی او غیر مدخول بها بیا عدت نلری چي الله فرمایي: ﴿ فَمَا لَكُمۡ عَلَيۡهِنَّ مِنۡ عِدَّةٖ تَعۡتَدُّونَهَاۖ فَمَتِّعُوهُنَّ وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحٗا جَمِيلٗا ﴾ الأحزاب: ٤٩ ﴿ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكۡتُمۡنَ مَا خَلَقَ ٱللَّهُ فِيٓ أَرۡحَامِهِنَّ ﴾ او نه دی روا دوی لره چي پټوی به دوی هغه شی چي پیدا کړی دی الله په ارحامو د دوی کی (له ولده یا حیضه ) چي دوی د عدت په تیریدلو تلوار و کړی او د میړه حق په رجوع کولو کی تر ښنو لاندی کړی ﴿ إِن كُنَّ يُؤۡمِنَّ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ که وی دوی چي ایمان لرونکی وی په الله او په ورځی د آخرت (چي قیامت دی) دا د دوی لپاره تهدید دی یعنی که دوی په ریښتونی ډول مؤمناتی وی او د الله له عذاب څخه ویریږی نو به حق وایی نه به زیادت کوی او نه نقصان څکه دا داسي حالت دی چي یوازی د دوی له خوا څرګندول کیږی ﴿ وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ

بِرَدِّهِنَّ فِي ذَٰلِكَ إِنْ أَرَادُوا إِصْلَاحًا ﴾ او میړونه ددوی ښه لائق دي په بیا کولو ددې ښځو (په دې موده کې) که اراده ولري دوی د جوړښت (په خپلو منځو کې) یعنې تربل چادوی خپل میړونه دنکاح وړ او لائق دي له رجعت څخه غرض اصلاح دی نه ضرر رسول دا حکم درجعي طلاق په هکله دي ﴿ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ ﴾ (او ښځو لره (حقوق په میړونو باندی) په شان دهغو (حقوقو) چې په دوی دي دخاوندانو په معروف (ښه وجه) سره) هغه چې الله ﷻ امر فرمایلی دښه معاشرت او ضرر نه رسولو او داسې نور ﴿ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ﴾ او شته نارینه وو لره په دوی درجه دبهتروالی (فضیلت) چې هغه قوامیت او انفاق کول دي په دوی او امر کول دي دوی ته او دنارینه وو اطاعت کول دي پر دوی باندی چې دا دتکلیف درجه دی نه دتشریف ﴿ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ او الله ښه غالب دی او ډیر تدبیر والادی (چې هرکار په مصلحت سره کوی) یعنې دا چې الله تعالی غالب دی له هغه چا څخه انتقام اوکسات اخلي چې څنی سرغړونه وکړی او پخپل امر او تشریع کی دحکمت خاوند دی وروسته الله تعالی دطلاق ورکولو دول داسې بیانوي: ﴿ الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ ﴾ (رجعی) طلاق دوه څله دي نوبیا ساتنه ده دښځو په رجوع سره په معروف (ښه وجه) سره یا پریښودل دي (ددې ښځو) په ښه وجه سره) یعنې هغه طلاق چې میړه دبیرته رجوع کولو حق لري په دوه کرته دي اوله دی دوو وروسته بیا هغه یا خو دا چې په ښه وجه يې خپله کړی او یايې په ښه وجه خوشی کړی چې دهغې له حقوقو يې نه محروموی په بدو الفاظو يې نه ستایی خلک له هغې څخه نه متنفرکوی چې څنی کرکه وکړي ﴿ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا ﴾ اوروانه دی تاسو ته (ای خاوندانو) چې واخلی تاسی له هغه مال څخه چې ورکړی تاسی دوی ته (په مهر (ولور) کی (هیڅ شی) که څه هم لږ وی ﴿ إِلَّا أَنْ يَخَافَا أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ ﴾ مگر که ویریږی دوی دواړه (میړه او ښځه) چې و به نشی ساتلی دوی دواړه احکام دالله چې هغه دمعاشرت او دزوجیت حقوق دي کوم چې الله يې امر فرمایلی دی ﴿ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ ﴾ پس که ویریږی تاسی چې و به نشی ساتلی دوی دواړه دالله حقوق پس نشته هیڅ گناه په دوی دواړو باندی چې په هغه شي کی چې فدیه ورکړی دا په هغه سره (یعنی ښځه خان خلاص کړی ) یعنی په هغه صورت کی چې تاسو ویریږی ددوی ترمینځ سم معاشرت نه راځی او ښځه غواړی چې له خپله حقه (چې مهر دی) تیره شی او یا یو څه مال میړه ته ورکړی چې ورسره خلع وشی نو بیا که میړه يې واخلي گنهگار نه دی او نه ښځه گنهکاره ده په ورکولو يې) ﴿ تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَعْتَدُوهَا ﴾ (دا دی ذکر شوی احکام) دالله حدود دی نو تاسی مه تیریږی له حدودو دالله) یعنی دغه ستر احکام دطلاق ،رجعت او خلع او نور دالله شرائع او احکام دی نو تاسو يې مخالفت مه کوئ او څنی تجاوز مه کړئ ﴿ وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴾ (او هر هغه څوک چې تیریږی له حدود الله نه نو دغه کسان هم دوی دی ظالمان ) یعنی هغوی چې دالله دحکمونو مخالفت کړی خانونه دالله ﷻ غضب ته دروی هغوی ظالمان او دعذاب وړ او مستحق دی ﴿ فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ ﴾ نو (وروسته له دې دوو طلاقو) که بیا يې طلاقه کړه دا ښځه (دریم ځل) پس بیا حلاله نه ده ده لره پس (له دی نه) تر هغه پوری چې په نکاح واخلی دا ښځه بل میړه) او بیا څنی طلاقه شی وروسته له هغه چې داد هغه ،او هغه ددې خوند وڅکی (جماع وکړی) لکه چې په حدیث شریف کی راځی او په

د ې کی دښځی له دری ځله طلاقولو څخه زجر نغښتی دی ځکه څوک چي مروت اومیړانه لری هیڅکله نه غواړی میرمن یی تریل لاندی شی اوهغه ورسره جماع وکړی ﴿ فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ أَن يَتَرَاجَعَآ إِن ظَنَّآ أَن يُقِيمَا حُدُودَ ٱللَّهِ ﴾ نوکه طلاقه کړه دوهم میړه دابنځه (اوعدت یی تیرشو) پس نشته هیڅ ګناه په دغو دواړو (ښځه اومیړه ړومبنی) چي بیاسره رجوع وکړی که ددوی ګومان وی چي دالله ﷻ دحکمونو اقامه به وکړي (پرځاي به یې کړي) ﴿ وَتِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ (اوداحکمونه دالله دی چي بیانوې یی دهغه قوم لپاره چي پرې پوهیږی ) یعنی هغوی چي دعلم اوفهم خاوندان وی اودامورو عواقب سنجوي[۱]

## بلاغت:

۱-(فَإِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ) دلته خبرله خپلی معنا څخه دوعید اوتهدید معناته اوښتی دی

۲-په دې کلمه کې چي فرمایی:(وَٱلْمُطَلَّقَٰتُ يَتَرَبَّصْنَ ) دلته خبردامر په معنادی اوپه اصل کې کلام داسي دی چي (ولیتربصن المطلقات) زمخشری وایی:چي کله له خبرڅخه امر راوزی معنی یی دادي چي ددی امر په هکله ټینګار اوتاکید دی چي ژر ترژره دی امتثال وشی اولکه چي دوی امر په ځای کړی وی بیا اخبار ځنی کیږی اوچي په مبتدا بناشوی دادتاکید نوره بهتری هم زیاتوی.

۳-پدی کلام کی چي فرمایی:(إِن كُنَّ يُؤْمِنَّ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ ) دلته په ایمان مقید کول مقصدنه دی بلکه هڅونه او ددوی په زړونو کی دیادشوی امر دهیبت اچول دی.

۴-( وَلَهُنَّ مِثْلُ ٱلَّذِى عَلَيْهِنَّ )پدی کی ایجاز اوابداع دی چي هغه څوک ښه پرې پوهیږی کوم چي دبیان له علم څخه ونده لری ځکه له لومړی څخه حذف ددوهم په قرینه اوله دوهم څخه حذف دلومړی په قرینه راغلی چي معنی یی دادی: (لهن علی الرجال من الحقوق مثل الذی للرجال علیهن من الحقوق) اوهمدارنګه له بدیعی محسناتو څخه دطباق صنعت هم پکې ده چي هغه د(لهن) او(علیهن)کلماتو ترمینځ لیدلای شو.

۵-پدی دوو کلمو کی هم طباق دی چي (فَإِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌۢ بِإِحْسَٰنٍ )طباق دامساک اوتسریح ترمنځ دی۔

۶-پدی کلام کی چي:(تِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ ) دلته دضمیر پر ځای دالله ﷻ دنوم یادونه شوی چي مقصدیی په زړونو کی هیبت اوویره اچول دی اوچي له نهی وروسته یی وعید ذکر کړ داپه تهدید کی مبالغه ده.

۷-پدی کلام کی:(فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ) قصر دصفت په موصوف پوری دی.

[۱] وګوره زموږ په کتاب «روائع البیان»کی۱/۳۴۳«الحکمة التشریعیة للطلاق».

## فائده او نکته:

لومړنی خلع په اسلام کې د ثابت بن قیس او میرمنې ترمینځ یې وه کله چې هغه رسول الله ته راغله ورته ویل یې: ای د الله پیغمبره الله دې تل ترتله زما او دده سر نه سره یوځای کوي زه مادې قسم وي چې زه یې په اخلاقو او دینداری کې څه عیب نه وینم خوزه له اسلامه وروسته کفر بد ګڼم نو رسول الله ﷺ ورته وویل ایا د هغه باغچه بیرته ورکوې هغې وویل: هو نو د دواړو ترمینځ بېلتون واقع شو .

## لطیفه:

روایت کاوه شي چې ابن عباس رضي الله عنه وفرمایل: زه داخوښوم چې خپلې ښځې ته د اسې سینګار وکړم لکه چې دا یې زما لپاره کوي څکه الله تعالی فرمایي: (وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ).

## الله تعالي فرمايي:

﴿ وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ ۚ وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوا ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ ۚ وَلَا تَتَّخِذُوا آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا ۚ وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمَا أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنَ الْكِتَابِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُم بِهِ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٣١﴾ وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَن يَنكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ إِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُم بِالْمَعْرُوفِ ۗ ذَٰلِكَ يُوعَظُ بِهِ مَن كَانَ مِنكُمْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۗ ذَٰلِكُمْ أَزْكَىٰ لَكُمْ وَأَطْهَرُ ۗ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٢﴾ ﴾ البقرة: ۲۳۱ - ۲۳۲

## مناسبت او تړاو:

تر اوسه پورې لا آیتونه د طلاق احکام بیانوي او هغه لاره ښیي چې پکې اداب او شرطونه دي او له ضرر رسولو څخه منع کوي نو د مناسبت وجه څرګنده ده.

## لغتونه:

(فبلغن أجلهن) یعنی دعدت موده تیریدلو ته نژدې شوه (ضرارا) د ضرر رسولو په قصد، قفال وایي (ضرار) مضارة ته وایي لکه چې الله فرمایي: (مسجدا ضرارا) یعنې چې مومنانو ته وربانډې ضرر ورسوي (تعضلوهن) (عضل) منعې ته وایي لکه چې وایي (أعضل الأمر) یعنې سخت شو کار چې تدبیر پکې نه چلیږي او یا (داء عضال) سخته ناروغي چې ډاکتران او طبیبان یې په علاج نه پوهیږي ازهري وایې چې اصل یې له دې اخیستل شوی چې وایي: (عضلت الناقة) کله چې یې جونګې ونښلي او بهر راوتل یې سخت شي (۱) (یوعظ به) په هغه پند او نصیحت ورکاوه شي امر ورته کول کیږي (أزکی) ګټور او ښه وده کونکی وایي: (زکا الزرع) کله چې ښه وده وکړي (أطهر) له طهارت څخه اخیستل شوي او پاکۍ ته وایي هغه که له پلیتۍ څخه وي او که له ګناهونو څخه یعنې ښه پاکیږي .

---

تهذیب اللغة مادة عضل.

## دنزول سبب یې:

روایت کیږي چې معقل بن یسار خپله خورکوم مسلمان ته په نکاح ورکړه اوڅه وخت ورسره وه بیایې طلاق ورکړ اوترڅو یې عدت تیرشو مراجعه یې ورته ونکړه بیاده هم غوښتله اوهغې هم غوښتل ترڅو یې دنوروکسانو په ډله کې په نکاح اخیستل څنې وغوښتل هغه ورته وویل :یا(لکع )معنی ای ناخوانه ماپه نکاح درکړه خوتاطلاقه کړه په خدای قسم که به بیرته تاته درکول شي نوځرنګه چې الله ﷻ دهغه په ارتیا هغې ته اودهغې په ارتیا میره ته خبر وو دا آیت نازل شو(وَإِذَا طَلَّقْتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ) دآیت ترپایه کله چې معقل بن یسار دا آیت واوریدلو نویې وویل:(سمعًا لربیّ وطاعةً) بیایې هغه راوغوښت اوورته یې وویل:تاته یې په نکاح درکوم اونازوم دی.(۱)

## تفسير:

﴿ وَإِذَا طَلَّقْتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ ﴾ اوهرکله چې طلاق کړئ تاسی ښځې په رجعی طلاق پس ورسیدې دوی تاکلي مودې (آخر دعدت ته) ﴿ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ ﴾ نووساتي دوی په ښه ډول (یعنی رجوع ورته وکړی )یاخوشی کړئ دوی په معروف ډول یعنی پرته له ضرر رسولو ورته رجوع وکړئ اویایې په ښه توګه خوشی کړئ چې عدت یې تیرشي بې له دی چې عدت یې وربانذی اوږد کړئ ﴿ وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوا۟ ﴾ اومه ساتئ تاسی دا ښځې (په رجعت سره )لپاره دضرررسولو له جهته ددې چې (پردوی باندی)تیرئ وکړئ ) یعنی تاسو هسی مراجعت مه ورته کوی چې قصد موورته ضرر رسول وی ترڅویې خلع ته مجبوره کړی اوپدی زجر اوتهدید دی څکه پخوا به خلکو چې ښځوته طلاق ورکړه اوچې موده به یې تیریدلو ته نژدې شوه نوبه یې ورته رجوع وکړه ترڅو یې عدت اوږد کړی اوضرر وررسوی دخپلولو رغبت به یې نه وو ﴿ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُۥ ﴾ (اوهرهغه څوک چې وکړی داسي کار نوپه تحقیق سره ظلم یې وکړ په ځان خپل ) یعنی هغه څوک چې داسي کوی هغې ته ضرر رسوی اویایې خلع ته مجبوره کوی نوهغه په ځان ظلم وکړ دالله عذاب ته یې خپل ځان وړاندې کړ ﴿ وَلَا تَتَّخِذُوٓا۟ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ هُزُوًا ﴾ اومه ګرزوی آیتونه دالله (داسي چې په اعراض اوتهاون سره ) مسخرې (پروکړی )یعنی دالله احکام نواهی اواوامر چې دالله شریعت دی وربانذی ملندی مه وهئ چې مخالفت یې کوئ ﴿ وَٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ وَٱلْحِكْمَةِ ﴾ اویادکړی نعمت دالله په تاسو(چې اسلام دی اوتاسی وربانذی مشرف یاست) او(یادکړئ)هغه چې نازل کړی دی الله په تاسی باندی چې کتاب دی اوحکمت (احکام دکتاب )یعنی دالله هغه فضل دربه یادکړئ چې تاسی ته یې داسلام هدایت کړی اود قرآن عظیم او نبوی پاکیزه سنت نعمت یې درکړی دی ﴿ يَعِظُكُم بِهِۦ ﴾ (پنددرکوی تاسی ته په هغه سره ) یعنی په کتاب اوسنت سره مود دارینو نیکمرغی ته رهبری کوی ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴾ (اووویریږی له الله نه اوپوه شئ تاسی چې بیشکه الله په هرشی باندی ښه پوه دی)ستاسی له احوالو هیڅ حال هم له هغه څخه پټ نه دی بیاالله تعالی خپلو انو، اولیاوو ته امر کوی چې هغه میرمنې کومې چې غواړی خپل میړه ته رجوع وکړی

---

(۱) رواه البخاري وګوره التاج ۴/۶۳.

راونه گرزوي فرمايي﴿ وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَن يَنكِحْنَ أَزْوَٰجَهُنَّ إِذَا تَرَٰضَوْا بَيْنَهُم بِالْمَعْرُوفِ ﴾ اوهر كله چي طلاق كړى تاسي ښځې پس ورسيدى دوى تاكلى مودې خپلې ته نومه منع كوئ تاسي دوى له دى نه چي په نكاح واخلى دوى ميړونه خپل كله چي دوى سره خوښ وى پخپلو منځو كى په معروف سره يعنى كله چي ښځى طلاق كړى اوعدت يې بشپړشي نواى(اوليااوو) كه چيرى دپښېماني علامى يې ښكاره شوى اودواړو له دستور سره سم دالله دخوښۍ په لاره تلل غوښتل نو دوى مه منعه كوى چي خپلو ميړونو سره يوځاى شي ﴿ ذَٰلِكَ يُوعَظُ بِهِۦ مَن كَانَ مِنكُمْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ﴾ دا(حكم دنه منع كولو)پندوركاوه كيږى په ده سره هغه چاته چي دى وى له تاسى نه چي ايمان لرى په الله اوپه ورځې آخرې باندې)ځكه هغه په مواعظو باندې پند اخيستلاى شي﴿ ذَٰلِكُمْ أَزْكَىٰ لَكُمْ وَأَطْهَرُ ﴾ دادېره غوره ده تاسي (اودوى )ته اوښه پاكيزه دى) يعنى دغه پند اخيستل په هغه چي ذكر شول اودالله ﷻ په اوامرو منګولى لګول خير اوګټور دى تاسو لره اوښه پاكيزه دى دګناهونو له چټليو څخه ﴿ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ اوالله عالم دى (پر هرشى )اوتاسي نه پوهيږى)يعنى الله پوهيږى چي كوم كار ستاسو لپاره ډېر سم دى له احكامو اوشرائعو څخه اوتاسو پدى نه پوهيږئ نو دهغه اوامر اونواهى په ټولو هغوكړو وړوكى چي كوئ يې اوياپې پريږدى ومنئ.

## بلاغت:

۱. داچي فرمايي:(فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ ) پدې كې يې دكل نوم په اكثر باندى كښيښود او ورته مجازمرسل وايي ځكه كه يې ټول عدت تيرشي بيايې ساتل جواز نلرى اوالله فرمايي:(فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ).

۲. (وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنَ الْكِتَٰبِ وَالْحِكْمَةِ) داله بابه دعطف دخاص دى په عام باندى ځكه نعمت خوعام اوكتاب اوسنت يې له افرادو څخه ګڼل كيږى.

۳. (وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ) په مابين دكلمى د(اعلموا )او(عليم) كى دبديعى محسناتو دجناس اشتقاق صنعت راغلى دى.

۴. پدى كلام كې چي فرمايي: (أَن يَنكِحْنَ أَزْوَٰجَهُنَّ ) مراد ځنى هغه طلاق كوونكى ميړونه دى دلته بيامجاز مرسل اوعلاقه يې اعتبار د(ماكان)ده.

## فائده اوګټه:

امام فخر رازى وايي :حكمت په اثبات درجعت (بيرته راګرزيدلو )كى دادى چي كله انسان له خپل ملګرى سره وى نه پوهيږى چي ايابيلتون يې سخت دى كه نه؟ اوكله چي بيل شى ورته ښكاره شى نوكه چيرى يوازى يوطلاق الله تعالى له رجوع څخه مانع ګرزولى واى په انسان به خورامشقت بارشوى وو ځكه مينه وروسته له بيلتون

او فراقه معلومیږي او څرګندیږي او بیا څرنګه چې د تجربې بشپړ توب په یو خلی نه حاصلیږي الله تعالی دوه خلي د مراجعت حق ثابت کړ چې دا د الله د رحمت په کمال دلالت کوي او په بندګانو د شفقت څرګندونه ده.[1]

## الله تعالی فرمایي:

﴿ ۞ وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ ۖ لِمَنْ أَرَادَ أَن يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ ۚ وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۚ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَا تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُ بِوَلَدِهِ ۚ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَٰلِكَ ۗ فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ۗ وَإِنْ أَرَدتُّمْ أَن تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُم مَّا آتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٣٣﴾ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا ۖ فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٣٤﴾ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ أَوْ أَكْنَنتُمْ فِي أَنفُسِكُمْ ۚ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلَٰكِن لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّا أَن تَقُولُوا قَوْلًا مَّعْرُوفًا ۚ وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي أَنفُسِكُمْ فَاحْذَرُوهُ ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿٢٣٥﴾ لَّا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً ۚ وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ ﴿٢٣٦﴾ وَإِن طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِن قَبْلِ أَن تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ إِلَّا أَن يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ۚ وَأَن تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ ۚ وَلَا تَنسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٣٧﴾ ﴾

البقرة: ٢٣٣ - ٢٣٧

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی یو څه هغه احکام چې د نکاح طلاق، عدت، رجعت، او عضل اړوند وو ذکر کړل وروسته یې په دې آیت کې د رضاع (تی رودلو) حکم بیان کړ څکه په طلاق باندې بیلتون او فراق راځي کله کله یو سړی ښځه طلاق کړي د هغې تی رودونکی ماشوم وي کیدای شي هغه ماشوم له مینځه لاړ شي او یا یې له تی ورکولو څخه محروم کړي چې له میره خپل کسات واخلي او یا یې زوی ته ضرر ورسوي څکه دا آیتونه نازل شول چې طلاق شوی میندې د ماشومانو په هکله رعایت او اهتمام ته راوبولي او بیا وروسته یې هغه فراق او جلاوالی چې د میړه او ارتینې ترمینځ راځي او مړینه یې سبب وي ذکر کړ چې د ښځې عدت یې هغه چې د میړه حق وي بیان کړ لکه چې د هغې نکاح کول یې د عدت په موده کې او د هغې نیمایي ولور استحقاق او یا بشپړ مهر وروسته له فراق او طلاق څخه یې څرګند کړل

---

[1] التفسیر الکبیر ۱۰۵/۲

## لغتونه:

(فصالا) جلاوالی ته وایی ځکه یی (فصال) وباله چي ماشوم دمور له شیدو څخه نور غذاګانو ته ګوښي اوجلاشو مبرد وایی چي فصال ترفصل بهتره کلمه ده ځکه کله چي هغه له موره جلاشي نوموړیی هم ورڅخه جلاشوه نودالکه قتال اوضراب غوندی دواړه خواوی په نظرکی وی (تشاور)درایی را ایستل اودارنګه مشاورت اومشورة دی چي له(شوُر)څخه اخیستل شوی اودشاتو (عسلو)راایستلو اواستخراج ته وایی (یذرون)پریږدی ددی فعل ماضي اومصدريي نشته (عرضتم)له تعریض څخه اوهغه اشاره کولو اوتلویح ته وایی چي څرګندونه اوښکاره والی پکی نه وی لکه چي فقیر سړی یو سخی بدای ته وایی: راغلم چي ستا سخی مخ وګورم (خِطبه)دخاپه کسره سره دنکاح غوښتل اوپه ضمه سره وعظ اوپند ورکولوته وایی لکه دجمعی اواخترونو خُطبې (أکننتم)له اکنان څخه اخیستل شوی اوپټوالی ته وایی(عقدة النکاح)دنکاح غوټه اوپه متل کی راځی (یاعاقد اذکر حلا )یعنی ای ترونکی دخلاصیدو فکر هم کوه راغب وایی عقده په ضمه سره هغه ترون ته چي دنکاح اویالوړه (یمین) یانورو وی وایی(حلیم) څنډوی عذاب ژر ترژره یی ګنهګار ته نه ورکوی (المقتر)فقیر ته وایی لکه چي وایي (اقتر الرجل) کله چي فقیراونیستمن شي.

## دنزول سبب:

روایت کاوه شی چي دانصاروڅخه یوچا دبنی حنیفه له ټبر څخه یوه ښځه په نکاح کړه اوولور یی نه وو معلوم کړی بیاتر پخواله دی چي لاس وروغځوی هغه یی طلاقه کړه نوآیت نازل شو (لَّا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن طَلَّقْتُمُ ٱلنِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ) نورسول الله ﷺ هغه ته وویل:(متعها ولوبقلنسوتک )هغی ته څه خرڅ ورکړه که څه هم ستاخولئ وی.(١)

## تفسیر:

﴿ وَٱلْوَٰلِدَٰتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَٰدَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ ﴾ اومیندی دی شیدی ورکوی اولاد خپل ته دوه کاله پوره ﴿ لِمَنْ أَرَادَ أَن يُتِمَّ ٱلرَّضَاعَةَ ﴾ دا(حکم)هغه چالره دی چي اراده لری دوی چي پوره کړی نیته دتی ورکولو )اوتردی زیاته نه ده ﴿ وَعَلَى ٱلْمَوْلُودِ لَهُۥ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِٱلْمَعْرُوفِ ﴾ اوده په پلار روزی دددوی (میندو )اوکالی ددوی (میندو ) په معروف طریقه(له دستورسره سم) ﴿ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ اوزورنشی کولی په هیڅ نفس باندی مګر په اندازه دتوان دده سره یعنی نفقه به په اندازه دتوان دده سره وی ځکه چي: (لایکلف الله نفساالاوسعها ) ﴿ لَا تُضَآرَّ وَٰلِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُۥ بِوَلَدِهِۦ ﴾ نه دی ضرر رسول کیږی مورته په سبب دولد ددې سره اونه (دی ضرر رساوه شی ) پلار ددې ولدته په سبب دولد دده سره )یعنی مور اوپلار ته دی په ولد ضرر نه رسول کیږی چي پالنه یی لکه چي ښایی هغسی ترسره نکړی اویایوبل دولد په سبب ضرر من کړی چي مور ووایی: زه شیدی نه

(١) القرطبی ۳/۲۰۲

ورکوم ترڅو يې پلار په روزنه ستړی او زيانمن کړي او يا خو پلار ماشوم دهغې له غيږې وکاږي سره له دې چې هغه غواړي شيدې ورکړي مګر دخوړولو لپاره يې داکار وشي همدا خبره مجاهد راوړی ده ﴿ وَعَلَى ٱلْوَارِثِ مِثْلُ ذَٰلِكَ ﴾ اوشته په وارث (پلار) باندې په شان دهغه (نفقې چې په پلار وه) يعنی داچې دماشوم مورته به نفقه ورکوي ضرر به نه ورسوي مراد له وارث ښځه دلته دپلار وارث دی اوچا بياويلي چې دماشوم وارث مراددی
خولومړی وينادطبری غوره اومختاره ده ﴿ فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ﴾ (نوکه وغواړي دوی دواړه (مور اوپلار) بېلول (له تی څخه ترپخوا له دوو کلونو) په خوښې سره ددوی دواړو اوپه مشورې (ددوی دواړو) پس نشته هيڅ ګناه په دوی دواړو باندې (په دې کې) ﴿ وَإِنْ أَرَدتُّمْ أَن تَسْتَرْضِعُوٓا۟ أَوْلَـٰدَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُم مَّآ ءَاتَيْتُم بِٱلْمَعْرُوفِ ﴾ اوکه قصد وکړي تاسې چې دايې ونيسی لپاره دتی ورکولو اولادې ستاسی ته نونشته هيڅ ګناه پر تاسې باند ی کله چې وسپاری هغه څه چې قصد دورکولو کړی وی تاسې دوی ته په معروف (سم له دستورسره) يعني هغه مزدوری چې موافقه مو کړې ورکړی څکه که دايې ونه نازوله شی بيا دماشوم په روزنه کې ستړيانه ګالي اونه يې سم مړوی ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ اووويرېږی له الله ﷻ نه اوپوه شی چې بيشکه الله په هغو شيانو چې کوی يې تاسې ښه ليدونکی (عالم په پټو اوښکاره وو) دی يعنی ستاسی احوال اواقوال ورته څرګند دي ﴿ وَٱلَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَٰجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا ﴾ اوهغه کسان چې مړه شی له تاسې نه اوپرېږدی دوی ښځي انتظار دی کوی دا ښځي (دنکاح کولو څخه) په ځانو خپلو څلور مياشتې اولس (ورځي) دغم ګاللو (حداد) په توګه اوداحکم دهغې لپاره دی چې اميدواره نه وی او کومه چې په ګيډه کې ماشوم لری دهغې عدت بيادحمل زېږول دی چې الله فرمايي: (وَأُو۟لَـٰتُ ٱلْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ) (الطلاق/۴) ﴿ فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِىٓ أَنفُسِهِنَّ بِٱلْمَعْرُوفِ ﴾ نوکله چې ورسېږی دوی مودی دعدت خپل ته پس نشته هيڅ ګناه پرتاسې باندې په هغه کار کې چې کوی يې دا ښځي (په حق د ) نفسو نو خپلو کې په ښه توګه سم له شرعی اصولو سره يعنی کله چې يې عدت بشپړ شی نو ای اولياوو په تاسو هيڅ ګناه نه شته چې اجازه ورکړئ دوی ته دواده کولو او يا هغه څه چې شريعت دوی ته رواکړی له زينت څخه اويا له وړاندی کېدلو نکاح ته ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ اوالله په هغو شيانو چې کوی يې تاسې ښه خبردار دی نوبه ورباندې جزادرکړي ﴿ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِۦ مِنْ خِطْبَةِ ٱلنِّسَآءِ ﴾ اونشته هيڅ ګناه په تاسې باندې په هغه (کار) کې چې اشاره کوئ تاسې په هغه سره چې غوښتل دهغو ښځو دی چې په عدت کې وی ) يعنی ای نارينه وو په تاسې باندې څه ګناه نشته که چيرې کونډې ښځې دعدت په موده کې په اشاره سره غواړي په څرګند ډول نه وی ابن عباس ﷺ وايې لکه داچې ووايي: ماغوښتل چې الله پاک يوه نيکه ښځه راکړی اويازما ښځو ته اړتياشته ﴿ أَوْ أَكْنَنتُمْ فِىٓ أَنفُسِكُمْ ﴾ (يايې پټ ساتی په زړونو خپلو کې) يعنی پدی کې کومه ګناه نشته چې تاسې په زړه کې ددوی دنکاح رغبت پټ ساتئ ﴿ عَلِمَ ٱللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلَـٰكِن لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّآ أَن تَقُولُوا۟ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴾ معلوم دی الله ته چې بيشکه تاسې ژر به يادکړی په غوښتلو سره

دنكاح دابنخي وليكن وعده مه كوئ له دوى سره (دنكاح) په پټه مگر (هم دا) چي ووايئ تاسي ويل ښه (له رواجه اوشريعت سره سم نيک ويل) يعنى الله ستاسى په زړونو خبر دى چي تاسي بي په زړه كي يادوئ اوصبر نشي كولاى نو الله له تاسى څخه گناه پورته كړه چي په اشاره يي يادوئ اوپه هغه ډول چي شريعت درته اجازه دركړى ده ﴿وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ﴾ (اومه كوئ قصد دتړلو دغوټي دنكاح ددوى) ترهغه پورى چي ورسيږى تاكلى عدت انتهاء دنيتې خپلى ته ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي أَنفُسِكُمْ فَاحْذَرُوهُ﴾ اوپوه شى تاسي چي بيشكه الله ته معلوم ده هغه څه چي په زړونو ستاسى كي وى نوووېرېږئ له ده نه. دامرمخالفت يي مه كوئ ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ﴾ اوپوه شي چي بيشكه الله ښه بخښونكى (دخطيئاتو) تحمل والادى يعنى دهغه چي توبه گارښي اوخوک چي گناه كوى په عقوبت يي تلواره نه كوى وروسته الله دهغې مطلقې حكم بيانوى چي لاس نه وى ورورل شوى (قبل المساس) وى وايي ﴿لَّا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً﴾ نشته هيڅ گناه په تاسو باندى كه طلاقى كړى ښځي ترپخواله (جماع) اوترپخواله مهرتاكلو ددوى لپاره مقرر مهرونوطلاق پداسي حال كي ممنوع نه دى كه چيرى دكوم مصلحت اوضرورت په بناوو ﴿وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ﴾ اوڅه خرڅ وركړئ دوى ته (واجب) دى په غني ميړه باندى په اندازه دده اوشته په فقير ميړه په اندازه دتوان دده خرڅ چي په معروف (سم له اصولو سره وى لازمه په نيكى كونكو (مسلمانانو) باندى) او دا ددې لپاره چي زړه يي خوښ اودفراق اوبيلتون وحشت يي ليرې شى ﴿وَإِن طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِن قَبْلِ أَن تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ﴾ اوكه طلاقى كړئ تاسي دوى پخوادمسه كولو ددوى اوپه تحقيق سره تاكلى مووه ددوى لپاره مهر نولازم دى په تاسي باندي نيمايئ څكه دغه طلاق ترپخووا له لاس وروړلودى) ﴿إِلَّا أَن يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ﴾ مگر كه عفوه وكړى دابنځى ( ټول ميړه ته ورپرېږدى )ياهغه سړى (ميړه )عفوه وكړى چي په لاس دده كى ده غوټه دنكاح (چي كامل وركړى) يعنى ياداچي پخپله مطلقه له خپله حقه تيره شى اوميړه ته يي وربښيي اوياخودهغې ولى الأمر كه چيرى كوچنۍ وه دهغې دمهر بښنه ميړه ته وكړى چابيا ويلى چي مراد له سړى څخه ميړه دى څكه هغه دى چي په لاس كى يي دنكاح غوټه ده كه هغه دټول مهر وركولو عفو وكړى داوروستى خبره دابن جرير خوښه ده اوزمخشرى بياوايي چي له ظاهردآيت څنى ولى الأمر معلوميږى (۱) ﴿وَأَن تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾ داچي عفوه وكړى تاسى (اى ښځو اوميړونو دغه) عفوه پر هيږ گارى ته نژدى ده ابن عباس وايي ددواړو تقوئ ته خوراتژدى هغه دى چي عفوه وكړى ﴿وَلَا تَنسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ اومه هيروئ تاسى فضل اواحسان پخپلو منځو نوكى بيشكه چي الله په هغه څه چي كوى يي تاسى ښه ليدونكى دى

---

(۱) داخبره له ابن عباس(رض)څخه روايت شوى اودامام مالک مذهب اوپخوانى مذهب دامام شافعى (رح) وو ناصردزمخشرى په كلام تعليق ليكى وايى :چي زمخشرى رښتياوايي چي داقول په ظاهر كى صحت لرى څكه دحق ښكلا اودصواب خلايي په شپږو وجوهاتو په باريک بيان سره ليكلى په كشاف كى يى وگوره ۲۱۷/۱.

الله ﷻ دآیت پای داحسان اونیکي په نه هیرولو کړی دی چي باید دمیړه اومیرمنی ترمنځ محبت اواحسان هیرنشی که طلاق دکومی اړتیا له مخي رامنځته شوی وي خو دا باید دخپلوی روابط غوڅ نکړی

## بلاغت:

۱:(وَٱلْوَٰلِدَٰتُ يُرْضِعْنَ) داپه حقیقت کی امردی اودخبر په توګه راوړل شوی چي په کولو کي مبالغه یې مقصددی لکه په تیر آیت کی چي راغلی وو (وَٱلْمُطَلَّقَٰتُ يَتَرَبَّصْنَ).

۲:(أَن تَسْتَرْضِعُوٓاْ أَوْلَٰدَكُمْ) دلته ایجاز بالحذف دی تقدیر یې داچي (تسترضعوا المراضع لأولادکم) لکه چي پکی دالتفات صنعت هم راغلی دی چي له غیاب څخه خطاب ته راګرزیدنه شوی څکه مخکی راغلی وو (فَإِنْ أَرَادَا فِصَالاً) اوددی التفات ګټه دادی چي دپلرونو مشاعر داولادونو په هکله راوپښ کاندی.

۳:پدی آیت کی چي فرمایی: (وَلَا تَعْزِمُوا۟ عُقْدَةَ ٱلنِّكَاحِ) دعزم یادونه دنهی دمبالغی لپاره شوی څکه چي دعزم له کولو نهی وشی پخپله له کولو په طریقه أولیٰ نهی راغله.

۴:(مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ) دلته الله له جماع څخه په لاس وروړلو کنایه راوړی چي بند ګانو ته دښو الفاظو دغوره کولو په هکله روزنه ورکړی چي پخپلو خبرو اترو کی یې ووایی.

۵:پدی کلام کی چي الله فرمایی:(وَأَن تَعْفُوٓا۟ )او(وَلَا تَنسَوُا۟ ٱلْفَضْلَ ) خطاب دنارینه اوښځو لپاره عام دی خو دتغلیب په دول راوړل شوی دی.

۶:(وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ) دلته دالله جلیل نوم دضمیر په ځای ظاهر ذکرشوی چي مهابت او روعت یعنی هیبت اوویره افاده کړی.

## فوائد اوګټي:

لومړئ فائده : کله چي یی د(الوالدات) په لفظ ذکر وفرمایه اوداسي یی ونه ویل چي (المطلقات) اویا(النساء المطلقات) ددی لپاره چي داولاد لوری ته یی توجه راوګرزوی څکه طلاق نه ښایی ددوی اولادونه دمور له عاطفي څخه محروم کړی.

دوهمه فائده: الله تعالی په آیت شریف کی دولد اضافت مور اوپلار دواړوته کړی چي فرمایی:(وَٰلِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا) اوبیا(مَوْلُودٌ لَّهُۥ بِوَلَدِهِۦ ) دادد‍ي لپاره چي ددوی شفقت اومهربانی یی په هکله وغواړی څکه ماشوم خوپر دی نه دی دایی مور اوهغه یي پلار دی نو دوی ته لازم ده چي ورباند‍ي شفقت وکړی اوددوی ترمینځ دښمنی ددی سبب نشی چي ماشوم ته ضرر ورسیږی.

دریمه فائده: حکمت دمتعت په وجوب کې دادی چې دطلاق وحشت جبیره کړي ابن عباس وایی که فقیر وو مطلقی ته دی دری جامې په متعت کی ورکړی اوکه چیری بډای وی خادم دی ورکړی.

څلورمه فائده: روایت کاوه شی چي حسن بن علی ﷺ خپلی طلاق شوی میرمنې ته لس زره درهمه متعه ورکړه نوښځی وویل: (متاع قلیل من حبیب مفارق) لیږ شی دی له جلاشوی حبیب څخه دهغې دطلاق سبب داوو کله چې حضرت علی کرم الله وجهه ولګیدو نوله حضرت حسن ﷺ سره دخلافت بیعت وشو هغی ورته وویل: ای امیرالمؤمنینه خلافت دی مبارکه شه! حسن ﷺ ورته وویل: چي علی شهید کیږی اوته شماتت څرګندوی ولاړه شه ته دی په دری طلاقه سره طلاقه یې! نوهغی ځان په خپل جلباب (پړونی) کی ونغښت اوکښینستله ترڅو چي عدت یې تیرشو اوبیا حضرت حسن لس زره متعه ورواستوله اونور هغه چي له مهر څخه یې پاتې شونی وو بیا هغې هغه یاده شوي خبره وکړه اوکله چي ریبار حضرت حسن ته ددې خبره ورواروله ویی ژړل اوویې ویل که می دری خله طلاقه کړی نه وای خامخا رجوع مي ورته کوله.(١)

## الله تعالی فرمایي:

﴿حَٰفِظُواْ عَلَى ٱلصَّلَوَٰتِ وَٱلصَّلَوٰةِ ٱلْوُسْطَىٰ وَقُومُواْ لِلَّهِ قَٰنِتِينَ ﴿٢٣٨﴾ فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا فَإِذَآ أَمِنتُمْ فَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمْ تَكُونُواْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٩﴾ وَٱلَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَٰجًا وَصِيَّةً لِّأَزْوَٰجِهِم مَّتَٰعًا إِلَى ٱلْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِى مَا فَعَلْنَ فِىٓ أَنفُسِهِنَّ مِن مَّعْرُوفٍ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٤٠﴾ وَلِلْمُطَلَّقَٰتِ مَتَٰعٌۢ بِٱلْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى ٱلْمُتَّقِينَ ﴿٢٤١﴾ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمْ ءَايَٰتِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٢٤٢﴾﴾ البقرة: ٢٣٨ - ٢٤٢

## مناسبت اوتړاو:

دلمانځه په هکله دا آیتونه دکورنی د احکامو اودطلاق اوبیلتون په وخت کی دمیره اوښځی په علاقاتو چې بایدڅه دول وی؟ راتلل دیو ستر حکمت له مخی شوی دی هغه داچي څرنګه الله پاک په عفو اوبښنه امر وفرمایه چي وروسته له طلاقه به یي تر سره کوئ نوبیایی په لمانځه امر وفرمایو: ځکه هغه خورا ستره وسیله ده چي ددنیا غمونه آوخفګانونه سری پکښی هیروی له دی کبله وو چي کله به رسول الله ته غم اوخفګان ور پیښ شو نو به لمانځه ته پورته شو اوڅرنګه چي طلاق بغض، عداوت اودښمنی راپاروی لمونځ بیا احسان اوبښنی ته سری رابولی اوله فحشاء اومنکر څخه یی راګرزوی اوداانسانی نفس دروزنی ترټولو ښه اوغوره لاره ده.

## لغتونه:

(حافظوا) وساتئ له محافظت څخه اخیستل شوی اومداومت ته وایی (الوسطیٰ) داوسط مؤنث اودشی وسط هغه غوره ته وایی.(قانتین) په اصل کی قنوت په یوشی باندی مداومت کولو ته وایی اوقرآنکریم دهغه

---

(١) القرطبی ٢٠٢/٣

طاعت په همیشه توب پسی خاص کړی دی چي له خشوع اوخضوع سره وی الله تعالی فرمایی :﴿يَٰمَرۡيَمُ ٱقۡنُتِي لِرَبِّكِ﴾ آل عمران ۴۳) (فرجالا ) دراجل جمع دی اوهغه پیاده تلونکی ته وایی راغب وایی چي له رجل څخه راجل مشتق اوپه پښو تلونکی ته وایی اوکله کله داسي ویل کیږی چي :(رجل راجل) یعنی هغه سړی چي په پیاده تګ غښتلی وی(١) (رکبانا )دراکب جمع او هغه چاته وایی چي سپور وی هغه که په آس وی یا اوښ یا بل څه.

## تفسیر:

﴿حَٰفِظُواْ عَلَى ٱلصَّلَوَٰتِ وَٱلصَّلَوٰةِ ٱلۡوُسۡطَىٰ﴾ ساتنه کوئ تاسي پر (ټولو ) لمنځونو باندی او(خصوصا) په لمانځه منځنی باندی (چي دمازیګر دی)څکه ملائکي ورته حاضریږی ﴿وَقُومُواْ لِلَّهِ قَٰنِتِينَ﴾ اوودریږی تاسی الله ته ویریدونکی په ادب سره یعنی همیشه توب کوی په طاعت اوعبادت کی له خشوع سره اوپه لمانځه کی په خشوع ودریږئ ﴿فَإِنۡ خِفۡتُمۡ فَرِجَالًا أَوۡ رُكۡبَانٗا﴾ نوکه وویریدی تاسی( له دښمنه یاله بل څه )نو(لمونځ کوی ) په پلی تګ یاپه سورلی سره ﴿فَإِذَآ أَمِنتُمۡ فَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمۡ تَكُونُواْ تَعۡلَمُونَ﴾ نوکله چي په امن شی تاسی نویادوی تاسی الله لکه چي ښودلی دی تاسی ته هغه څه چي نه وی چي پرې پوهیدلی اودالکه داقول دالله داسي ده (فَإِذَا ٱطۡمَأۡنَنتُمۡ فَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ )[النسا۱۰۳] اوکه مراد له ذکر څخه په آیت کی لمونځ وی یعنی الله په عبادت ذکر کړی لکه چي تاسوته یې شریعت درښودلی دی وروسته الله دعدت احکام داسي بیانوی ﴿وَٱلَّذِينَ يُتَوَفَّوۡنَ مِنكُمۡ وَيَذَرُونَ أَزۡوَٰجٗا وَصِيَّةٗ لِّأَزۡوَٰجِهِم مَّتَٰعًا إِلَى ٱلۡحَوۡلِ غَيۡرَ إِخۡرَاجٖ﴾ اوهغه کسان چي مړه شی له تاسی نه اوپریږدی دوی (خپلی )ښځی (لازم دی پردوی باندی ) وصیت دی وکړی لپاره دښځو خپلو دخرڅ ورکړلو تر یوه کاله پوری بی له ایستلو (له خپلو کورونو څخه ) دادا سلام په لومړی پیل کښی وو اوبیا دغه موده منسوخه اوپرځای یی څلور میاشتی اولس شپی ورځی ودریدی ﴿فَإِنۡ خَرَجۡنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ فِي مَا فَعَلۡنَ فِيٓ أَنفُسِهِنَّ مِن مَّعۡرُوفٖ﴾ (نوکه پخپله ووتلی (دا ښځې دخپلو کورونو څخه) نونسته هیڅ ګناه په تاسی باندی په هغه شی کی چي کوی یی دوی پخپلو ځانو له شریعت سره سم یعنی که کوم داسی کار وکړی چي پکی زینت اوخوشبویی لګول وی اوځان دواده کولو لپاره وراندی کړی ﴿وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٞ﴾ (اوالله ډیر غالب ښه حکمت والادی ) یعنی هغه په خپله پاچهی کی ډیر غالب اوپخپله صنع اوجوړښت کی ښه حکمت والادی ﴿وَلِلۡمُطَلَّقَٰتِ مَتَٰعُۢ بِٱلۡمَعۡرُوفِۖ حَقًّا عَلَى ٱلۡمُتَّقِينَ﴾ اوشته طلاقی کړی شوی ښځو ته خرڅ ورکول په معروفی (ښی طریقی ) سره چي لازم کړی شوی دی په پرهیزګارانو باندی یعنی داپه متقینو مؤمنانو لازم دی چي طلاق کړی شوی میرمنی ته دفراق دوحشت دجبرانی لپاره څه خرڅ له خپله توانه سره سم ورکړی ﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمۡ ءَايَٰتِهِۦ لَعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُونَ﴾ همداسي (لکه چي دا احکام یی ښه بیان کړل ) بیانوی الله تاسی ته آیتونه خپل لپاره ددی چي تاسی وپوهیږئ ) یعنی ددی بیان په شان هغه چي خلک

---

١مفردات الراغب مادة (رجل).

ددوستی اومرحمت لوری ته رابولی الله ﷻ خپل هغه آیتونه کوم چي په شرعی احکامو دلالت کوی بیانوی ترڅو تاسی وپوهیږئ اوورباندی عمل وکړئ.

## بلاغت:

۱: (وَٱلصَّلَوٰةِ ٱلْوُسْطَىٰ ) دلته عطف دخاص دی پر عام باندی څکه چي زیاته بهتري یې څرګندوی.

۲: پدې کلماتو کی چي فرمایی: (فَإِنْ خِفْتُمْ ) (فَإِذَآ أَمِنتُمْ ) دلته دطباق صنعت دی چي دبدیعی محسناتو څخه شمیرل کیږی ابو السعود وایی: چي یو ځلی یې (ان) شرطیه راوړه هغه چي ددې ښکارندوی دی چي خوف نه دی پیښ شوی او په دوهم ځل یې (اذا) راوړه هغه چی دامن دپیښیدلو څرګند ونه کوی سره له دی چي په لمړی خواب کی یې ایجاز اوپه دوهم ځواب کی یې اطناب صنعت راوړی په دې کی دهغه چا لپاره چي سترګوروی پندونه دی

## تنبیه:

(صلوة الوسطی) په ډیرو اقوالو کی دمازیګر لمونځ ګڼل شوی څکه هغه دسهار اوماسپښین اومابښام او ماسختن دلمونځونو په مینځ کی راځي اوددی خبری ملاتړ هغه دصحیحینو حدیث هم کوی چي فرمایی: (شغلونا عن الصلاة الوسطى صلاة العصر ملأ الله قلوبهم وبيوتهم نارا )یعنی موږیې دمازیګر له لمانځه (صلوة الوسطی) څخه وایستلو الله دی ددوي زړونه اوکورونه له اوره ډک کړی. اوپه یوبل حدیث کی راځي. (والذی تفوته العصر فكانما وتر أهله وماله ) یعنی له چا څخه چي دمازیګر لمونځ قضاشی لکه چي خپل اهل اومال یې ورک شو.
متفق علیه اونور احادیث

## الله تعالی فرمایي:

﴿ ۞ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ خَرَجُوا۟ مِن دِيَـٰرِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ ٱلْمَوْتِ فَقَالَ لَهُمُ ٱللَّهُ مُوتُوا۟ ثُمَّ أَحْيَـٰهُمْ ۚ
إِنَّ ٱللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلنَّاسِ وَلَـٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ﴿٢٤٣﴾ وَقَـٰتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ
ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٤﴾ مَّن ذَا ٱلَّذِى يُقْرِضُ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَـٰعِفَهُۥ لَهُۥٓ أَضْعَافًا كَثِيرَةً ۚ وَٱللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ
وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢٤٥﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلْمَلَإِ مِنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ مِنۢ بَعْدِ مُوسَىٰٓ إِذْ قَالُوا۟ لِنَبِىٍّ لَّهُمُ ٱبْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَـٰتِلْ
فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۖ قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ إِن كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلْقِتَالُ أَلَّا تُقَـٰتِلُوا۟ ۖ قَالُوا۟ وَمَا لَنَآ أَلَّا نُقَـٰتِلَ فِى سَبِيلِ
ٱللَّهِ وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِن دِيَـٰرِنَا وَأَبْنَآئِنَا ۖ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ ٱلْقِتَالُ تَوَلَّوْا۟ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ
بِٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿٢٤٦﴾ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ ٱللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا ۚ قَالُوٓا۟ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ ٱلْمُلْكُ
عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِٱلْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ ٱلْمَالِ ۚ قَالَ إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُۥ بَسْطَةً فِى
ٱلْعِلْمِ وَٱلْجِسْمِ ۖ وَٱللَّهُ يُؤْتِى مُلْكَهُۥ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٧﴾ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ ءَايَةَ

مُلْكِهِۦٓ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلتَّابُوتُ فِيهِ سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ ءَالُ مُوسَىٰ وَءَالُ هَٰرُونَ
تَحْمِلُهُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٤٨﴾ فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِٱلْجُنُودِ قَالَ إِنَّ
ٱللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ فَمَن شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّى وَمَن لَّمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُۥ مِنِّىٓ إِلَّا مَنِ ٱغْتَرَفَ غُرْفَةًۢ بِيَدِهِۦ ۚ فَشَرِبُوا۟
مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُۥ هُوَ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ قَالُوا۟ لَا طَاقَةَ لَنَا ٱلْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِۦ ۚ
قَالَ ٱلَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا۟ ٱللَّهِ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةًۢ بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ مَعَ
ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿٢٤٩﴾ وَلَمَّا بَرَزُوا۟ لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِۦ قَالُوا۟ رَبَّنَآ أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا
وَٱنصُرْنَا عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٢٥٠﴾ فَهَزَمُوهُم بِإِذْنِ ٱللَّهِ وَقَتَلَ دَاوُۥدُ جَالُوتَ وَءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ
ٱلْمُلْكَ وَٱلْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهُۥ مِمَّا يَشَآءُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ ٱلْأَرْضُ
وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٢٥١﴾ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِٱلْحَقِّ ۚ وَإِنَّكَ لَمِنَ
ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿٢٥٢﴾ ﴾ البقرة: ٢٤٣ - ٢٥٢

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله جل جلاله دکورنۍ احکام په تفصیل سره وښودل او هغه انتظامات او روابط یې چي دافراد وترمینځ وی دهغوی په اصلاح او سمولو کې لار ښوونې وکړې څکه داکورنۍ لومړنۍ زړی او هغه لومړنۍ خښته ده چي دیوی فاضلې او سرلوړی ټولنې مانۍ څنې جوړیږی له هغه وروسته یې دجهاد آیتونه ذکر کړل او دایې دعقیدې دساتنې او دمقدساتو دژغورنې لپاره څکه چي دیوې مسلمانې کورنۍ لپاره چي عزتمن ژوند غواړی دیوه صالح اوسم چاپیریال اړتیا ده او کورنۍ تر هغو اصلاح کیدای نشی چي ټولنه اصلاح نه وی دهغې تل پاتې کیدل او بقاء دحق او دهغه دپلویانو له بقاء سره تړلې ده څکه نو الله جل جلاله دقتال امر کړی او دپخوانیو امتونو مثالونه یې راوړی دی چي څرنګه یې دحق په لار کې جهاد کړی او سره له دې چي لږ او یو موټی به وو په ډیرو سرغړونکو کفارو بریالی شوی دی نو دباطل دپلویانو کثرت او ډیروالی ته اعتبار نشته بلکه دحق دپلویانو ټینګار عزم او دحق په لار کې جهاد ته اعتبار دی.

## لغتونه:

(الوف) دألف جمع کثرت ده او جمع قلت یې آلاف راځی او معنایې داده چي زښته زیات (کثرة کاثرة) (الوف مؤلفة) (حذر) ویری ته وایی (یقبض ویبسط) قبض دیوشی راټولولو او غونډولو ته وایی او بسط بیا غوړولو او ویړولو ته او مراد څنې فقر او بډایی ده. (الملاء) دخلکو مشران او اشراف څکه یې (ملأ) بولی چي په هیبت او سترتوب یې دخلکو سترګی ډکیږی (فصل) جلاشو (فصل) جلاوالی او تجاوزته ویل کیږی (مبتلیکم) ازمویی تاسی (یظنون) یقین کوی او پوهیږی (فئة) ټولۍ او جماعت ته وایې داهسی کلمه ده چي واحد نلری او لکه رهط. غوندی دی (افرغ) توی کړه فرغ تویولو او ښکته کولو ته وایې.

تفسیر: ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ خَرَجُوا۟ مِن دِيَٰرِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ ﴾ (ایا نه دی لیدلی تا (یعنی نه دی رسیدلی علم ستا کیسې د) دهغو کسانو ته چي وتلی وو له کورونو خپلو حال داچي په زرګونو وو) یعنی ایا تا نه دی

اوریدلی ای محمده ! یانه دی اوریدلی تا ای مخاطبه ! حال دهغه قوم چي وتلی وو له خپل وطنه اوپه زرګونو وو ﴿ حَذَرَ ٱلْمَوْتِ ﴾ (له ویری دمرګه ) دلته له استفهام څخه غرض تشویق اوتعجب دی چي ددوی کیسه واوری دوی اویازره کسان وو ﴿ فَقَالَ لَهُمُ ٱللَّهُ مُوتُوا۟ ثُمَّ أَحْيَـٰهُمْ ﴾ وویل الله دوی ته چي مړه شی (پس مړه شول بیایی ژوندی کړل دوی ) دوی دبنی اسرائیلو یو تېرو پاچایی دوی جهادته وبلل خودوی دمرګ له ویری وتښتیدل پس الله ﷻ هغوی مړه کړل اته ورځي مړه وو بیاددوی دنبی په دعا چي حزقیل ﷺ نومیده الله ژوندی کړل اوبیا یو، دهوژوندی واوسیدل چابیاویلی چي له طاعون څخه وتښتیدل بیا الله مړه کړل ابن کثیر وایی چي په دی قصه کی پند دی چي په ویره سره تقدیرنه ګرزی اوله الله ﷻ څخه څوک تښتیدلی نشی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلنَّاسِ ﴾ (بیشکه الله خامخا څښتن دمهربانی دی په خلکو باندی ) چي ورښکاروي څرګند دلائل اوښکاره معجزې چي هغې لارې ته یې رهبري کړی په کومه کې چي ددنیا اوآخرت نیکمرغی وی ﴿ وَلَـٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ﴾ (ولکن ډیر دخلکو شکرنه باسی) په نعمتونو دالله بلکه منکریږی ﴿ وَقَـٰتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ (اوجنګ کوئ (ای مؤمنانو ) په لاره دالله کی اوپوه شی تاسی چي بیشکه الله ښه اوریدونکی دی، ښه عالم دی ) یعنی له کفارو سره ددین دلوړ تیا لپاره جګړه وکړئ نه دنفسی خواهشاتو لپاره په دی پوه شی چي الله ستاسی اقوال اوری اوستاسی په نیتونو اواحوالو خبردی وریاندی به جزادرکړی اولکه چي ویره سړی له قدر څخه نه ژغوری همدارنګه له جهاد نه تیښته نه اجل لیرې کولی شی اونه نژدې کولای. ﴿ مَّن ذَا ٱلَّذِى يُقْرِضُ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَـٰعِفَهُۥ لَهُۥٓ أَضْعَافًا كَثِيرَةً ﴾ (څوک دی هغه سړی چي قرض ورکوی الله ته الله لره قرض نیک نوزیات به کړی الله قرض ده لره په زیاتوالي)په جهاد اونوردخیر ښیګڼي په لارکی نوجزابه یی داوی چي الله زیات کړی دغه قرض ډیر چنده (څوواری) څکه داهغه قرض دی چي (أغنی الاغنیاء) یعنی دبډایانو بډای ذات (الله)ته ورکول شوی دی اوپه حدیث کی راځي (من یقرض غیرعدیم ولاظلوم)؟ څوک هغه ذات ته قرض ورکوی چي هغه نه فقیراونه ظالم دی ؟[۱] ﴿ وَٱللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ ﴾ اوالله تنګوی (رزق ) اوفراخوی(رزق ) په هغه چاچي اراده یی شی دازموینښت لپاره ﴿ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ (اوهم (خاص) ده ته بیولی کیږی ) دقیامت په ورځ داعمالو دجزاء لپاره ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلْمَلَإِ مِنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ مِنۢ بَعْدِ مُوسَىٰٓ ﴾ آیانه دی لیدلی تا(یعنی نه دی رسیدلی علم ستا ای اوریدونکی (دکیسې )د ډلې ته له بنی اسرائیلو(اولادې دیعقوب څخه ) وروسته له موسی نه؟ پدی کی بیا دکیسي داوریدلو لپاره تعجیب اوتشویق دی ﴿ إِذْ قَالُوا۟ لِنَبِىٍّ لَّهُمُ ٱبْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَـٰتِلْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ کله چي وویل دوی یوه نبی ته (چي راغلی وو ) دوی ته مقررکړه زموږ لپاره یوباچا چي جنګ وکړو په لاره دالله کی ) یعنی چي کله دوی (شمعون ﷺ ) ته چي دهارون ﷺ له نسله څخه وو، وویل: موږ ته دجنګ امیر اوقائد وټاکه چي له هغه سره دالله په لارکی له دښمنانو سره وجنګیږو ﴿ قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ إِن كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلْقِتَالُ أَلَّا تُقَـٰتِلُوا۟ ﴾ نو وویل نبی ایانږدې ده (توقع شته ) که فرض کړی شی په به تاسی باندی جنګ چي

---

[۱] حدیث قدسی ده ابن کثیردی آیت سره ذکر کړی مختصرابن کثیر۱/۲۲۲

ونه کړئ جنګ) یعنی زه په دی ویریږم که په تاسی قتال فرض شی بیا به یی تاسی نکوئ اود دښمن له مخامخ کیدلو څخه به ویریږئ ﴿ قَالُوا۟ وَمَا لَنَآ أَلَّا نُقَـٰتِلَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِن دِيَـٰرِنَا وَأَبْنَآئِنَا ﴾ (وویل دوی څه (مانع) مونږ لره ده چي جنګ به ونکړو د الله په لارکی؟ حال داچي په تحقیق سره ایستلی شوی یو مونږ له کورونو خپلو اوله زامنو خپلو) یعنی له خپلو وطنونو څخه په زور اخیستل شوی یو او اولادونه مو په ظلم مړیان شوی ولی به جنګ نه کوو الله جل جلاله ددوی (بې زړه توب اوهلع حال داسي بیانوی: ﴿ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ ٱلْقِتَالُ تَوَلَّوْا۟ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ﴾ کله چي په دوی باندی قتال فرض شو نو وګرځیدل دوی (تول له جنګه) مګرونه ګرځیدل لږکسان له دوی نه) چي هغوی صبر وکړ ټینګ شول اوله طالوت سره له رود ه (نهره) تیرشول قرطبی وایی چي همدا حال دهغو ملتونو دی چي په نعمت کی لوبیږی دسوکالی لورته کاږه وی دغرور په وخت کی د جنګ هیله او تمنا کوی خوکله چي جنګ پیښ شی بیانو بی زړه شی اودخپل طبیعت غوښتنو ته غاړه کښیږدی (۱) ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ (اوالله ښه عالم دی په ظالمانو باندی) دا ددوی لپاره دجهاد په پریښودلو وعید دی چي ظالمان دی ﴿ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ ٱللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا ﴾ اوو ویل دوی ته نبی ددوی چي بیشکه الله په تحقیق سره مقرر کړ ی د ی طالوت تاسی ته باچا: هغه یی ددوی لپاره امیر تاکلی چي دهغه ترقوماند ی لاندی جهادوکړی ﴿ قَالُوٓا۟ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ ٱلْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِٱلْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ ٱلْمَالِ ﴾ وویل دوی (بنی اسرائیلو) چي څرنګه به وی ده لره پاچهی پر مونږ باندی حال داچي مونږ ډیر مستحق یو په باچهی له ده څخه اونه ده ورکړل شوی (ده ته) پراخی له ماله) یعنی دوی همدا اعتراض پخپل پیغمبر وکړ چي څرنګه طالوت زمونږ پاچا کیدای شی په مونږ کی دپاچهانو زامن شته او هغه سره له دی فقیر او بی وزله دی نو څرنګه به زمونږ په سرودریږی ﴿ قَالَ إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُۥ بَسْطَةً فِى ٱلْعِلْمِ وَٱلْجِسْمِ ﴾ وویل نبی چي بیشکه الله غوره کړی دی (طالوت) په تاسی باندی اوزیات کړی یی دی هغه له جهته دپراخی په علم اوجسم سره) یعنی ددوی نبی ددوی ددغه اعتراض په ځواب کی ورته وویل چي دی الله تر تاسی غوره کړی او هغه په مصلحتونو ډیر ښه پوهیږی اوپه غوره کولو کی دوه ځیزه داعتبار او اعتماد وړدی یو علم چي په سیاسی امورو کی معرفت لری دوهم دبدن قوت او طاقت چي په زړونو کی ورڅخه ویره لوېږی اود دښمنانو سره مقاومت کولای شی دسختیو اومشکلاتو په وخت کی عزم لری او الله جل جلاله دغه دواړه نعمتونه په لویه پیمانه هغه ته ورکړی دی ابن کثیروایی :له دی ځایه ده چي پاچا باید دعلم خاوند ښایسته بدن په وجود اوتن کی ښه غښتلی وی ﴿ وَٱللَّهُ يُؤْتِى مُلْكَهُۥ مَن يَشَآءُ ﴾ او الله ورکوی ملک خپل (سلطنت) خپل هرچاته چي اراده کړی (دورکولو یې) له بندګانو خپلو پرته له دی چي په میراث ورته رسیدلی وي اویایې مال ډیروي ﴿ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴾ او الله پراخ دی (احسان دده) ښه عالم دی (په استعداد او اهلیت دهرچا) اوکله چي دوی وغوښتل دهغه دسلطنت نور دلائل اوعلامی وروښیی داسي ځواب یی ورکړ ﴿ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ ءَايَةَ

---

(۱) القرطبی ۲۴۵/۳

مُلْكِهِۦٓ ﴾او وويل دوی ته نبی ددوی چي بیشکه علامه دپاچهی دده داده چي: ﴿ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلتَّابُوتُ ﴾ رابه شی تاسی ته یوصندوق) هغه چي له تاسی اخیستل شوی وو بیرته به درکړل شی او هغه لکه چي زمخشری وایی دتورات صندوق وو کله چي به موسی ﷺ جهادته تلو نو هغه به یی له مخه اووړاندی کړ نو به یی دبنی اسرائیلو زړونه آرام کړل او له جنګه به نه تښتیدل ﴿ فِيهِ سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ ءَالُ مُوسَىٰ وَءَالُ هَٰرُونَ تَحْمِلُهُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ﴾ (په هغه کی آرام دزړه له طرفه درب ستاسی او باقی پاتی شوی له هغه شیانو چي پریښی وو اولادی دموسی ﷺ او اولادی دهارون ﷺ حال داچي بارکړی به وی هغه (صندوق) پرښتو) یعنی پدی صندوق کی سکون ،اطمینان اووقاردی اوښینی هغه تختی دی چي تورات وربانده ی لیکل شوی وو او هغه پاتی شوی تبرکات دآل دموسی اوآل دهارون اوجامی دموسی او دهغه لکړه معجزه دده وه ملائکو دآسمان اومځکی ترمینځ لوړاخستی څو چي دطالوت په مخ کی یی کښیښود اوخلکو ورته کتل داخبره ابن عباس رضي الله عنهما کړی ده :﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ بیشکه چي په دی (راتلو دصندوق کی خاص علامه ده (په پاچهی دطالوت) تاسی ته که چیری یی تاسی مؤمنان )یقین لرونکی نوویی منی ﴿ فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِٱلْجُنُودِ ﴾ نو کله چي راووت طالوت سره له لښکرو یعنی کله چي طالوت له بیت المقدس نه راووت او بهر شو اتیازره کسان ورسره ملګری جنګیالیان وو سخته تودوخه (ګرمی) وه دوی یی په وچه شاړه مځکه کی لاندی کړل سخت تږی شول ﴿ قَالَ إِنَّ ٱللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ ﴾ وویل:(طالوت) چي بیشکه الله ازمویونکی دی ستاسی په یوه ویاله (نهر) سره ) چي هغه نهر شریعت اودفلسطین او اردن ترمینځ مشهور (رود ) دی ﴿ فَمَن شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّي ﴾ نو هرڅوک چي اوبه وڅښی له هغی ویالی نو نه دی له تابعانو زما ) غوښتل یی مځکښی له دی چي په جګړه اودهغی په سختو کی ورګډشی ددوی ارادې اواطاعت وازمویی ﴿ وَمَن لَّمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُۥ مِنِّيٓ ﴾ او هرڅوک چي اوبه ونه څکی دا اوبه نو بیشکه هغه له تابعانو زما دی) له ماسره به جګړی ته ځی ﴿ إِلَّا مَنِ ٱغْتَرَفَ غُرْفَةًۢ بِيَدِهِۦ ﴾ مګر خوله تابعانو زمادی هغه څوک چي اخلی یو ارغوی اوبه په لاس خپل سره ) یعنی هغه چي لږ اوبه دتندی دلیری کولو لپاره وڅکی پروایی نشته ﴿ فَشَرِبُوا۟ مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ﴾ (مګر نو وڅښلی دوی (اوبه) له هغې ویالې ټولو ، زیات له ارغوی ،نه لږوکسانو له دوی نه ) یعنی ټول لښکر اوبه وڅښلی اوڅلور زره کسان پاتی شول ﴿ فَلَمَّا جَاوَزَهُۥ هُوَ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ ﴾ نو کله چي تیرشو ل له هغې ویالې نه یعنی طالوت او هغه کسان چي ایمان لرونکی وو(تیرشول) له ده سره) یعنی دوی په تنده صبروکړو اوتکلیفونه یی وزغمل خوکله چي یی ددښمن ډیر والی ولیدی ویرې وربانده ی غلبه وکړه اویوې دلې داسي وویل ﴿ قَالُوا۟ لَا طَاقَةَ لَنَا ٱلْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِۦ ﴾ وویل دوی نشته طاقت مونږ لره نن ورځ له جالوت اودده له لښکرو سره (دجنګ کولو) څکه مونږ لږ یو اودوی خوراډیر دی ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا۟ ٱللَّهِ ﴾ وویل هغوکسانو چي یقین یی وو (په دی) چي بیشکه دوی ورتلونکی دی الله ته) اودا دطالوت په پیروانو کی هغه

غوره او چاڼ شوی خلک چې علماء او ابرار وو ﴿ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ ډیر کرته لږ ډلو (دمؤمنانو) غلبه کړی وه په ډلې ډیری (لویی دکفارو مشرکانو) په اذن دالله سره. بری په ډیروالی سره نه دی بلکه دالله ﷻ له لوري دی وما النصر الا من عندالله. ﴿ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴾ او الله سره له صابرانو دی (په نصرت او اثابت) او له چا سره چې الله ملګری وی هغه دالله په قوت سره بریالی دی. ﴿ وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ ﴾ او کله چې راووتل (مخامخ شول) دوی لپاره (دجنګ) دجالوت او دلښکرو دده) یعنی کله چې دوی په پراخه فضاکی له هغه لښکره سره مخامخ شول چې په جنګونو کی روزل شوی او زړه ورو وو ﴿ قَالُوا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا ﴾ (نو وویل دوی (مؤمنانو) ای زموږ ربه نازل کړی په مونږ صبر) الله ته یی په عاجزی دعاګانی کولی او هغه دری دعاوی چې دنصرت او مرستې اسباب جوړوی اول داچې: په مونږ صبر توی کړی چې موږ تولو ته شامل وی او په ځانګړی توګه زموږ په ځانونو چې ددښمنانو په جنګ کی مو غښتلی کړی ﴿ وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا ﴾ (او کلک کړی قدمونه زموږ) یعنی دجنګ په ډګرکی مو ټینګ کړی چې تیښته مو په زړه کی هم راونګرزی دادوهمه دعاده ﴿ وَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴾ (او مرسته وکړه له مونږ سره په قوم (کافرانو) یعنی موږ ته په هغه چابری راکړی چې په تااو ستا په نبی کافران دی او هغه جالوت او دهغه پلټنی او لښکر ی دی او دادریمه دعاده الله له دوی ځخه اخبار کوی ﴿ فَهَزَمُوهُم بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ مات کړل مؤمنانو دوی (کافران) په اذن، حکم دالله سره) یعنی دجالوت لښکر دالله په حکم مات شو دهغو ی (مومنانو) دعاګانی الله ومنلی او دښمن یی سره له ډیروالی نسکور شو ﴿ وَقَتَلَ دَاوُودُ جَالُوتَ ﴾ (او مړ کړ داود جالوت لره) او داود دطالوت په لښکر کی وو چې دطغیان لار ښود جالوت یې وواژه او دهغه لښکری یې تار په تار کړي ﴿ وَآتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهُ مِمَّا يَشَاءُ ﴾ او ورکړ ده (داؤدته) الله سلطنت او حکمت او وی ښودل ده ته له هغو شیانو چې اراده یی کوله) یعنی الله داؤد ته پاچهی، نبوت او علم ورکړ چې ګتور وو ابن کثیر وایی: طالوت داؤد ته ویلی وو که جالوت یی مړ کړ نو به خپله لور ورکوی او نازوی به یی په پاچهی کی به یی ګډوی هماغسی یی وکړل او بیا پاچهی داؤد ﷺ ته راولیږدیده چې الله ﷻ دنبوت په ستر نعمت هم و نازاوو.

﴿ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ ﴾ که چیری نه وای دفع (منع) کول دالله خلکو لره ځینو ددوی لره په ځینو نورو سره نو خامخا به خرابه شوی وه ځمکه (هیواد په ظلم سره) یعنی که چیری الله داشرارو شر دا خیارو په جهادنه منع کولای ژوند به خوساشوی وو ځکه چیرته چې شر غلبه و مومی هلاکت او خرابی رامنځته کیږی ﴿ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴾ ولکن الله ځښتن دفضل دی په خلکو باندې) چې اشرارو ته دلوړتیا امکانات نه ورکوی ﴿ تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ﴾ دا (چې تیرشول) آیتونه (دلائل دقدرت) دالله دی چې مونږ یی لولو پرتا باندی (ای محمده) په حقه سره) یعنی هغه عجیبه امور او حیرانونکی کیسې چې په بنی اسرائیلو کی پیښې شوی دالله ﷻ دقدرت دلائل دی او غیبی اخبار دی چې تاته یی دحضرت جبرئیل ﷺ په واسطه په حق سره وحی کوی ﴿ وَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴾ او بیشکه

ته چي يې (اى محمده ) هرومرو(زموږ) له مرسلانو څخه يې) هغه کسان چي الله عزوجل د دعوت اوبلنې لپاره رالېږلي دي.

**بلاغت:** ابوحيان وايي چي پدې آيتونو کې د بلاغت اوبيان ډير څه شته چي يويې استفهام دى چي د تعجب په ځاى کې راغلى او وايي:( أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ ) اوحذف دى په مينځ د(مُوتُوا ثُمَّ أَحْيَـٰهُمْ ) کې چي معنايې داده پس مړه شول بيا الله دوى ژوندي کړل بل طباق دى په مينځ د(موتوا ) او(احياهم ) او همدارنګه پدې کلماتو کې (يَقْبِضُ) او(وَيَبْصُطُ) د طباق صنعت دى بل تکرار دى لکه (إِنَّ ٱللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلنَّاسِ ) او(وَلَـٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ ) په کلماتو کې له دې وروسته د التفات صنعت دى لکه ( وَقَـٰتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ) کې بل له تشبيه دى بې له اداتو د تشبيه نه لکه (قَرْضًا حَسَنًا ) د لته الله تعالى د بنده انفاق منل پخپله لار کې له حقيقي قرض (پور)سره مشابه کړى اونوم يې د قرض ورباندى ايښى بل پکې مغاير تجنيس دى لکه(فَيُضَـٰعِفَهُۥ ) او(أَضْعَافًا كَثِيرَةً ).([1])

۲:پدې قول کې چي فرمايي:(أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا )تمثيلي استعاره ده د دوى حال يې داسي تشبيه کړى چي الله ورباندې صبرتويوى لکه چي اوبه په جسم توئيږى اوټول ظاهر اوباطن ځان لمبوى نو همداسي د غم صبر په زړه کې سوړوالى اوسلامتي او اطمينان راولي.

**فوائد او ګټې :** لومړى فائده :د استقراض نسبت الله ځان ته وکړ چي:(مَّن ذَا ٱلَّذِى يُقْرِضُ ٱللَّهَ) اوسره له دې چي هغه له ارتيا څخه پاک دى د دې لپاره چي په صدقه ورکولو کې ترغيب وشي لکه چي له مريض سره احسان اوياله وږي سره مرسته يې خانته نسبت کړى اوپه قدسي حديث کې راځي: اى بنياده مه زه ناروغ شوم زما پوښتنه دې ونکړه د وږى مى در څخه وغوښتله رادې نکړه تږى وم اوبه مې غوښتې هغه دې رانکړى.متفق عليه

دوهمه فائده :روايت کاوه شي کله چي دغه آيت شريف نازل شو نو ابوالدحداح انصارى رضى الله عنه رسول الله ﷺ ته راغى ورته وويل :ايا بيشکه الله له مونږ څخه پور(قرض) غواړي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو اي ابوالدحداح نو ابوالدحداح ورته وويل :لاس دى راځرګند کړه رسول الله ﷺ لاس په لاس ورکړ نو يې وويل :پس ما په تحقيق سره خپل باغ الله ته پور ورکړ (هغه چي پکې شپږسوه د خرماونې دى او ام الدحداح او اولادي يې هم هلته اوسيدل) ابوالدحداح باغ ته راغى ورناره يې کړه :اى د الدحداح مورى هغې وويل:ستا په خدمت کې يم ! نو ده ورته وويل راووزه د ا باغ ما خپل رب ته قرض ورکړ او په بل روايت کې چي هغې وويل:په دې بيعه کې دې ګټه وکړه او سره له خپل عياله راووتله([2])

دريمه فائده :بقاعى وايي ښايي د بني اسرائيلو پاى په دې کيسه باندې به د رسول الله ﷺ د رسالت په رښتنولي اوصحت باندې ځرګند دليل وى ځکه داهغه څه دى چي د بني اسرائيلو له يوخو تنه تکره علماوو پرته چاته ندى معلوم. ([3])

---

([1]) البحر المحيط ۲۵۳/۳

([2]) اخرجه البزار و الطبراني عن ابن مسعود

([3]) محاسن التاويل ۲۵۰/۳

## الله تعالى فرمايي:

﴿ تِلْكَ ٱلرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ مِّنْهُم مَّن كَلَّمَ ٱللَّهُ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجَٰتٍ وَءَاتَيْنَا عِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ ٱلْبَيِّنَٰتِ وَأَيَّدْنَٰهُ بِرُوحِ ٱلْقُدُسِ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا ٱقْتَتَلَ ٱلَّذِينَ مِنۢ بَعْدِهِم مِّنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ ٱلْبَيِّنَٰتُ وَلَٰكِنِ ٱخْتَلَفُوا۟ فَمِنْهُم مَّنْ ءَامَنَ وَمِنْهُم مَّن كَفَرَ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا ٱقْتَتَلُوا۟ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ ﴿٢٥٣﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَنفِقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِىَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَٰعَةٌ وَٱلْكَٰفِرُونَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٢٥٤﴾ ﴾ البقرة: ٢٥٣-٢٥٤

## مناسبت او تړاو:

په تيرو آيتونو کې الله تعالى په بني اسرائيلو د طالوت غوره کول ذکر کړل او بل دا چې داود ﷺ يې ددوى په پاچهۍ او نبوت بهتر وګانه ،وروسته يې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته داسې خطاب وفرمايو چې هغه له مرسلينو څخه دى او ظاهراً لفظ د مرسلانو داسې غوښتنه او تقاضا کوي چې رسولان به ټول سره برابر وي، نو پدې آيت شريف کې دا څرګنده شوه چې رسولان ټول په يوه پوړي کې نه دي ځيني يې تر نورو بهتر دي لکه چې د نور بشريت تر مينځ هم دغه بهتري موجوده ده.

## لغتونه:

(درجات) : منزلتونو ته وايي ، د(درجة )جمع دي او دلته يې معنى ستره او لويه مرتبه ده. (البينات) معجزي (وايدناه) له تائيد څخه اخستل شوى يعني موږ هغه قوي کړ. (روح القدس ) جبرئيل عليه السلام ته وايي لکه چې پخوا هم تير شو(خلة ) صداقت او دوستي ته وايي څکه ورته خلت وايي چې هغه داندامونو مينځ ته ګډيږي او سرايت کوي ، خليل هم له دي کلمي څخه اخستل شوى دى .(شفاعة) له شفع څخه اخستل شوى او يوځاى کيدو ته وايي، څکه نو په شفاعت کې دبل چاانضمام او ګډون وي چې مرسته ورسره وکړي او يايې شفاعت کوونکى دمرستې او معاونت غوښتنه کوي.

## تفسير:

﴿ تِلْكَ ٱلرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾: دا ټول رسولان چې له آدم تر محمده پورې ياد شول ،فضيلت ورکړى دى موږ ځيني ددوى ته په ځينو نورو باندې يعني اى محمده ! دغه رسولان چې موږ يې احوال درته بيان کړل،دالله رسولان او بيشکه موږ بهتر کړي ځيني ددوى په ځينو نورو باندې په لوړوالي او سترو مرتبو کې ﴿ مِّنْهُم مَّن كَلَّمَ ٱللَّهُ ﴾ ځينې له دوى څخه هغه دي چې کلام کړى دى الله له دوى سره ، يعني پرته له واسطې الله ورسره خبرې کړې ، لکه حضرت موسى عليه السلام ﴿ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجَٰتٍ ﴾ او پورته کړي دي ځينو ددوى ته درجې ،لکه محمد صلى الله عليه وسلم چې خاتم المرسلين الاولين والاخرين دى او لکه دانبياوو پلار حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام ﴿ وَءَاتَيْنَا عِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ ٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ او ورکړي دي موږ عيسى زوى دمريمې ته ښکاره معجزې ، لکه ژوندي کول دمړيو او روغول دمورزاده ړندو او ابرصو (برګو ) او له غيبو څخه اخبار کول او داسې نور. ﴿ وَأَيَّدْنَٰهُ بِرُوحِ ٱلْقُدُسِ ﴾ او

قوي کړي دی موږ هغه په روح القدس یعني جبریل علیه السلام سره چي دا حضرت عیسی علیه السلام دی ﴿ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا ٱقْتَتَلَ ٱلَّذِينَ مِنۢ بَعْدِهِم مِّنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ ٱلْبَيِّنَٰتُ وَلَٰكِنِ ٱخْتَلَفُوا۟ فَمِنْهُم مَّنْ ءَامَنَ وَمِنْهُم مَّن كَفَرَ ۚ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا ٱقْتَتَلُوا۟ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ ﴾ (او که اراده کړي وه الله (د ټولو خلکو دهدایت) نو نه به وو کړي جنګ هغو کسانو چي وروسته له دې رسولانو څخه وو وروسته له هغه چي راغلي دوی ته ښکاره معجزي و لکن دوی اختلاف او جګړي سره وکړي نو ځيني له دوی څخه هغه څوک دي چي ثابت پاتې شوي وي په ایمان او ځيني له دوی څخه هغه څوک دي چي کافران شول او که اراده کړي وي الله (ددوی دهدایت ) نو دوی به نه وو کړی جنګ (او مخالفت) لیکن الله هغه کار کوي چي اراده لري (دچا دهدایت او ضلالت) یعني که الله اراده کړي وي نو هغه امتونه چي له پیغمبرانو وروسته راغلي او څرګندي معجزي او براهين خپلو پیغمبرانو ورته وړاندي کړي وو نو دوی به پخپل منځ کې اختلاف، جګړي او نزاع نه کوله او دپیغمبرانو په پیروي کولو به متفق وو لکه څرنګه چي پیغمبران دحق په کلمه سره متفق او یو لاس دي. لیکن الله ددوی داختلافاتو په وجه چي په دین کې یې رامنځته کړي او یا یې ځانځاني مذهبونه جوړ کړي دخپل هوا او هوس یې منلي ددوی دهدایت اراده نه دي کړي څکه نو ځيني په ایمان ثابت پاتې شول او ځيني نور بیا وګرزیدل او کافران شول؛ او که اراده کړي وي الله نو به یې ټول بشر دپرښتو او ملائکو په طبعیت پیدا کړي وو چي نه به یې اختلاف کاوو او نه هم جنګ جګړي ، خو الله حکيم ذات دی هغه څه کوي چي پکې مصلحت وي او داټول دالله قضا او قدر ده ، الله پاک فعالٌ لما يريد ذات دی ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَنفِقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰكُم ﴾ ای هغو کسانو چي ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) صرف کړي ( په زکوة یا په جهاد یا په نورو واجبي صدقاتو کې) ځيني له هغو مالونو څخه چي درکړي دي موږ تاسي ته یعني زکات ورکړی او دنیکې خیر ښيګڼې په کارونو کې مال ولګوئ. ﴿ مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِىَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَٰعَةٌ ﴾ پخوا دراتلو دهغې ورځي چي نه پیرودل او نه پلورل پکې شته او نه دوستي او نه شفاعت. یعني تر پخوا له راتلو دهغې ترهونکي ورځي چي په هغې کې تاسي خپل ځانونه دمال په ورکولو له عذابه نه شي ژغورلئ چي مال ورکړئ ځانونه واخلي.او نه به کوم دوست وموميئ چي عذاب درڅخه دفع کړي اونه مو څوک شفاعت او سپارښتنه کولای شي چي ستاسي ګناهونه درڅخه لیري کړي مګر چې الله چاته اذن او حکم وکړي. ﴿ وَٱلْكَٰفِرُونَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾ . او کافران هم دوی دي ظالمان ، یعني تر هغه چا چې الله ته کافر ورشي بل څوک ستر ظالم نشته او کافر ظالم او تجاوز کونکي دعذاب مستحق دی.

بلاغت:

۱-(تلک الرسول) اشاره څکه په بعید (لیري) ورته شوی چي دمرتبې کمال یې لوړ او لیري دی.

۲-(منهم من کلم الله ) په آیت شریف کې دتفضیل او تفصیل صنعت دي او دي ته په بلاغت کې تقسیم وایي ، او همدا رنګه په دې قول کې (فمنهم من آمن ومنهم من کفر ) لکه څرنګه چي د (آمن) او (کفر) کلماتو ترمینځ دطباق صنعت دی.

۳- په دي قول کې چې فرمايي (ولوشاء الله ما اقتتلوا) داطناب صنعت دی ځکه چې د (ولوشاء الله) کلمه تکرار شوي ده.

۴- (والکافرون هم الظلمون) دلته قصر دصفت په موصوف پوري راغلی دی او په جمله اسميه او دفعل په ضمير سره يې تاکيد شوی دی

فائده:

له عطاء بن دينار څخه روايت شوې چې هغه وويل: الله لره دي حمد او ثنا وي چې ويې ويل: (والکافرون هم الظلمون) او داسې ونه ويل چې (والظلمون هم الکافرون) او که داسې يې ويلی وای نو به ټول ظالمان ،کافران وو او هيڅوک به ځينې خلاص نه وو ، الا من عصمه الله.

تنبيه:

احتمال لري چې په کفر سره حقيقي او يا مجازي معنا مراد شي نو به په کفر سره دزکات نه ورکونکي مراد وي لکه چې زمخشري ويلي دي: اراده يې ده چې دزکات نه ورکونکي ظالمان دي او غوره کول ددي لفظ دتهديد او تغليظ لپاره دی لکه چې دحج په آيت کې د (ومن لم يحج) په ځای (ومن کفر) راغلی هو دزکات نه ورکول دکفارو له صفاتو څخه ګڼل کيږي چې الله فرمائي: (وويل للمشرکين الذين لايؤتون الزکاة).

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلْحَىُّ ٱلْقَيُّومُ ۚ لَا تَأْخُذُهُۥ سِنَةٌ وَلَا نَوْمٌ ۚ لَّهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ۗ مَن ذَا ٱلَّذِى يَشْفَعُ عِندَهُۥٓ إِلَّا بِإِذْنِهِۦ ۚ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۖ وَلَا يُحِيطُونَ بِشَىْءٍ مِّنْ عِلْمِهِۦٓ إِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ۖ وَلَا يَـُٔودُهُۥ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ ٱلْعَلِىُّ ٱلْعَظِيمُ ﴿٢٥٥﴾ لَآ إِكْرَاهَ فِى ٱلدِّينِ ۖ قَد تَّبَيَّنَ ٱلرُّشْدُ مِنَ ٱلْغَىِّ ۚ فَمَن يَكْفُرْ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسْتَمْسَكَ بِٱلْعُرْوَةِ ٱلْوُثْقَىٰ لَا ٱنفِصَامَ لَهَا ۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٥٦﴾ ٱللَّهُ وَلِىُّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يُخْرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ ۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَوْلِيَآؤُهُمُ ٱلطَّٰغُوتُ يُخْرِجُونَهُم مِّنَ ٱلنُّورِ إِلَى ٱلظُّلُمَٰتِ ۗ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢٥٧﴾ ﴾ البقرة ۲۵۵ - ۲۵۷

مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله تعالی دځينو انبياوو فضيلت په ځينو نورو بيان کړ او دائې څرګنده کړه چې خلک له دوی وروسته سره مخالف شول يو له بله يې اختلافات او سره جنګونه وکړل او دا ټول ددي دين په سبب نو دايې يادونه وکړه چې دغه دانبياوو يو پر بل فضيلت ددي موجب نه ګرزي چې پيروان يو له بله سره اختلافات او دښمني وکړي،ځکه انبياء او استازي (رسولان) که څه هم په فضيلت کې سره متفاوت خو ګرده (ټول) په يوه بلنه (دعوت) پسې راغلي دي رسالت يې يو دی ، دين يې يو دی او په دين کې اکراه جبر (زور) نشته په تحقيق سره دحق او حقانيت ځلا او ورانګې خپرې شوي دي.

لغتونه:

(الحی) دکامل حیات څښتن چې معنی یې ده تل تر تله ژوندی، (دائم) چې هیڅکله فنا ورته لاره نه مومي (القیوم) دخلکو په تدبیر ولاړ (سنة) دسین په کسره سره (نعاس) هغه له خوب نه مخکښې فتور مراوي توب او پرکالی ته وایي. (یؤده) ستړي کوي او درنوي (العلي) مراد دمنزلت لوړتیا او دالله دشان او سلطان جلال دی (اکراه) یو څوک په زوره هغه کار ته اړ ایستل چې نه یې غواړي (الطاغوت) له طغیان څخه اخیستل شوی او هر هغه څه ته وایي چې انسان دحق له لارې څخه سرغړونې او ګمراهۍ ته بیایي.

(الوثقی) د(اوثق) مؤنث دی او محکم ټینګ ته ویل کیږي (انفصام) انکسار او پرانستلو ته وایي، فراء[1] وایي چې: الانفصام، او الانقصام دوه لغتونه دي او په فاء سره راوړل یې ښه فصیح دی. او ځینو ویلي دي چې (فصم) هغه ماتیدلو ته وایي چې سره جلا نشي او د (قصم) هغه ماتیدلو ته وایي چې جلا والی هم ورسره راشي.

دنزول سبب:

له انصارو څخه دیو سړي دوه زامن وو او د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر بعثت له مخه نصرانیان وو او په یوه تجارتي قافله کې یې مدینې منورې ته غوړي (تېل) دسوداګرۍ لپاره راوړي وو نو پلار یې ورپسې راغی او ورته یې وویل: زه تاسو نه پرېږدم چې مسلمانان شئ، نو بیا دا آیت نازل شو: (لا اکراه في الدین قد تبین الرشد من الغيّ).

تفسیر:

﴿ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴾ (الله چې دی نشته هیڅوک لائق دعبادت مګر هم دی دی چې تل ژوندی، په یو حال باقي، قایم، کامل، تدبیر والا دی) یعني الله پاک هغه ذات دی چې واحد، احد، فرد، صمد دبشپړ (کامل) ژوند خاوند باقي تل تر تله چې هیڅ نه مري او دخلکو دټولو امورو چلونکي په حفظ او تدبیر سره دی. ﴿ لَا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلَا نَوْمٌ ﴾ نه نیسي ده لره پرکالي (خوب) او نه پخپله خوب. دده لره لکه چې په حدیث شریف کې راغلي: ان الله لا ینام ولا ینبغي له ان ینام یخفض القسط ویرفعه.

بیشکه الله نه ویده کیږي او نه ورسره خوب ښایي. هغه دعدل ترازو ښکته او پورته کوي. ﴿ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ﴾ ده لره دي هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي، یعني ټول هغه څه چې په ځمکه او اسمان کې دي، دهغه ملک دی او دهغه مخلوق او بندګان دي دهغه تر قهر او سلطان لاندي دي. ﴿ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِندَهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ ﴾، څوک به وي هغه چې سپارښت وکړي په نزد دده (هیڅوک نشي کولای) مګر (څو کولای شي) په اذن (حکم) دده سره. یعني هیڅوک نشي کولای دیو بل چا ورته سپارښتنه وکړي مګر دده په حکم چې الله جل جلاله ورته اجازه ورکړي. ابن

[1] القرطبي ۳/۲۸۰.

کثیر وایې چې دا دالله تعالی دعظمت ، جلال ، او کبریا بیان دی چې هیڅوک دا جرئت نشي کولای ددغه دیو چا سپارښتنه وکړي ، مګر چې پخپله الله تعالی اجازه ورکړي ﴿ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ﴾عالم دی په هغو شیانو چې په مخ دمخلوقاتو کې دي (ددنیا له امورو) او په هغو شیانو چې وروسته له دوی دې (دعقبی له امورو) په تحقیق سره چې دده علم په ټولو کائناتو او عالمونو راګرزیدلی دی. ﴿ وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلَّا بِمَا شَاءَ ﴾او احاطه نه کوي دوی په هیڅ شي له معلوماتو دده مګر (احاطه کولای شي) په هغه شي چې اراده وکړي (الله دهغه شي دمعلومولو دوی لره) اود انبیاوو په ژبه. ﴿ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ ﴾ارته (محیطه) ده کرسي دده په ټولو آسمانونو او ځمکي باندې دپراخوالي له سببه او اوه آسمانونه او ځمکې دکرسي په نسبت داسي دي لکه یوه کړۍ چې په صحراکي وغورځولي شي او له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت شوی چې وایې: وسع کرسیه ، یعني علم دالله تعالی او ددې دلیل هغه دالله جل جلاله قول دی چې فرمائي: ربنا وسعت کل شئ رحمة وعلما . نو له دې معلومیږي چې علم یې پراخ او هر څه یې احاطه کړي دي.(١) او حسن بصري رضی الله عنه وائې چې عرش له کرسي نه پرته بل ده او عرش تر کرسي لوی دی لکه چې احادیث او اثار وربانذې دلالت کوي. ﴿ وَلَا يَئُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ ﴾ اونه ستومانه کوي ده لره ساتنه دآسمانونو او ځمکې او هم دی (الله) دی خو را پورته (په پادشاهي او غلبه خپله کې) خورا لوی (په کمالیه صفاتو کې ) یعني دآسمانونو او ځمکې ساتنه او هغه څه چې په دوی کې دي نه په الله درنده اونه الله څنې عاجز دی او الله لوړ دی په خپل مخلوق دعظمت او جلال خاوند دی لکه چې فرمایي: وهو الکبیر المتعال. الرعد -۹. ﴿ لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَد تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ﴾ نشته هیڅ زور په (منلو) ددین کې په تحقیق سره ښکاره شوې ده سمه لاره (دایمان) له ګمراهی (کفر) څنې .یعني په هیچا جبر او زور نشته چې اسلام ومني په تحقیق سره چې حق له باطل نه او هدایت له ګمراهی څخه څرګند شوی دی. ﴿ فَمَن يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ ﴾ پس هرڅوک چې کافر (منکر) شو له (عبادت دشیطان او ) بتانو او ایمان یې راوړ (یقین یې وکړ) په (وحدانیت) دالله باندې نو په تحقیق سره یې ټینګه نیولي ده کړۍ کلکه. یعني هر څوک چې له الله پرته په نورو معبودانو لکه شیطان او بتان کافر شو او په الله یې ایمان راوړ نو په زښته کلکه ددین په رسۍ یې منګولي ښخې کړي دي ﴿ لَا انفِصَامَ لَهَا ﴾ چې له سره نشته پرې کیدل هغې لره او نه زوال. ﴿ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ او الله ښه اوریدونکی دی (دګردو اقوالو) ښه عالم دی (پر ټولو احوالو) دبندګانو خپلو. ﴿ اللَّهُ وَلِيُّ الَّذِينَ آمَنُوا يُخْرِجُهُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ﴾ الله دوست مرستیال دی دهغو کسانو چې مؤمنان دي باسي دوی له تیارو دکفر او ګمراهی

(١)- ابن جریر وایې چې دابن عباس پدې قول دقرآن ظاهر هم دلالت کوي څکه کرسي په اصل کې علم ته وایې او علماوو ته هم له دې کبله کراسي وایې چې په دوی باندې تکیه کول شوې ده لکه چې (اوتاد الارض) دمځکې مراندي بولي. او صحیح هغه ده چې ابن کثیر وایې:

نه ، درښادايمان او هدايت لوري ته ، يعني الله دمؤمنانو ناصر ساتونكى او دامورو متولي دى دكفر او ګمراهى له تيارو څخه يې دايمان او هدايت لور ته راكاږي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ أَوْلِيَآؤُهُمُ ٱلطَّٰغُوتُ يُخْرِجُونَهُم مِّنَ ٱلنُّورِ إِلَى ٱلظُّلُمَٰتِ ﴾ او هغه كسان چې كافران (منكران) شوي دي دوستان ددوى شيطانان دي چې باسي دوى له رڼا (دفطري ايمان او هدايت نه) دتيارو (دكفر او ګمراهى) لوري ته﴿ أُوْلَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ دغه كسان صاحبان داور (ددوزخ) دي هم دوى په دي اور كې تل پاتې كيدونكى دي ، چې هيڅكله به ځني نه راوزي

**بلاغت:**

۱.په آيت الكرسى كى دفصاحت اوعلم بيان ډير څه خوندي دې چى له هغوى څخه يويې: حسن الافتتاح ده ځكه هغه دالله تبارك وتعالى په ډير لوړاسم پيل شوى څو څو ځله يې نوم په ظاهراو مضمر ډول ذكر شوى چى ټول يې اتلس ځله كيږي او د صفاتو په تكرار سره د اطناب صنعت او پكښې د طباق صنعت دي لكه چى د:( ما بين أيديهم وما خلفهم) په كلماتو كښى راغلى پورتنى دغه ټول څه د البحر المحيط مولف څرګند كړى دى.

۲.( استمسک بالعروة الوثقى ) دلته تمثيليه استعاره ده ځكه د اسلامى دين منونكې له هغه منونكې سره چى په يوى ټينګى او محكمى رسۍ يى منګولى ښخى كړى وى مشابه وګڼل اونه شليدونكى او نه پرى كيدونكى يى له ترشيحاتو څخه بلل كيږي.

۳.(من الظلمات الى النور) دلته تصريحى استعاره ده چى كفر يى له ظلماتو او تاريكيو سره او ايمان يى له نور سره مشابه كړ په تلخيص البيان كښى راوړى چى دا د تشبيهاتو تر ټولو ښه تشبيه ده ځكه كفر لكه تاريكى ده چى څښتنان يى ګمراهان او لار وركى وى او ايمان بيا لكه نور او خلا چى حيران خلک پكښى لاره مومى او د ايمان عاقبت او انجام په نعمتونو او ثوابونو روښانه ده لكه چى د كفر پايلي او انجام په دوزخ او عذابونو ككړ او لړلى دى (١)

**فائده او ګټه**

نور يى يوازى ذكر كړ او ظلمات يى د جمع په صيغې راوړ ځكه چى حق يو او ګمراهى او ضلالت لارې ډيرې او څانګې يې زياتې دى.

**تنبيه**

آيت الكرسى ډير فضيلت او ستر شان لرى لكه چى په حديث شريف كښى راغلى چى: دا په قرآن كريم كښى تر ټولو بهتر آيت دى او په هغه كښى اسم اعظم شريف هم دى لكه چې په دى حديث شريف كې وائي: دالله اعظم اسم هغه چي څوک يې په هغه نامه وبولي الله يې دعا مني په دريو ځايونو كې ، دالبقرة په سورت كې په آل عمران او يا سورت طه كې دي. هشام وايې په البقرة كې داقول دالله جل جلا له: الله لا

---

١.تلخيص البيان ص ۱۵

اله الاهو الحی القیوم . او په آل عمران کې دا : الله لا اله الاهو الحي القيوم . اوپه طه کې دا( وعنت الوجوه للحي القيوم ).(طه:١١١) .

ابن کثير وايې چې، دا آيت په لسو مستقلو جملو مشتمل دی کومې چې دالهي ذات متعلق او واحد ،الاحد تمجيد دي.[1]

***

## الله تعالی فرمايي:

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِى حَآجَّ إِبْرَٰهِـۧمَ فِى رَبِّهِۦٓ أَنْ ءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ ٱلْمُلْكَ إِذْ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ رَبِّىَ ٱلَّذِى يُحْىِۦ وَيُمِيتُ قَالَ
أَنَا۠ أُحْىِۦ وَأُمِيتُ ۖ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَأْتِى بِٱلشَّمْسِ مِنَ ٱلْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ ٱلْمَغْرِبِ فَبُهِتَ ٱلَّذِى كَفَرَ ۗ وَٱللَّهُ لَا
يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿٢٥٨﴾ أَوْ كَٱلَّذِى مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ وَهِىَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا قَالَ أَنَّىٰ يُحْىِۦ هَـٰذِهِ ٱللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا ۖ
فَأَمَاتَهُ ٱللَّهُ مِا۟ئَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُۥ ۖ قَالَ كَمْ لَبِثْتَ ۖ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ۖ قَالَ بَل لَّبِثْتَ مِا۟ئَةَ عَامٍ فَٱنظُرْ إِلَىٰ
طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ ۖ وَٱنظُرْ إِلَىٰ حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ ءَايَةً لِّلنَّاسِ ۖ وَٱنظُرْ إِلَى ٱلْعِظَامِ
كَيْفَ نُنشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُۥ قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٥٩﴾ وَإِذْ قَالَ
إِبْرَٰهِـۧمُ رَبِّ أَرِنِى كَيْفَ تُحْىِ ٱلْمَوْتَىٰ ۖ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن ۖ قَالَ بَلَىٰ وَلَـٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِى ۖ قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ ٱلطَّيْرِ
فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ثُمَّ ٱجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ٱدْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا ۚ وَٱعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦٠﴾ ﴾

البقرة: ٢٥٨ - ٢٦٠

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی په الله او دهغه په لوړو صفاتو دايمان ذکر وفرمايه او خپل ولايت يې دمؤمنانو لپاره او دطاغوت ولايت يې دکافرانو لپاره وښود دلته يې دنمونې په ډول دکفارو او معاندينو په زړونو کې دطاغوت داوامرو منل او هغه ته غاړه ايښودل څرګند کړل چې څرنګه دالله تعالی دوحدانيت په هکله مجادلې ته تياريږي نو دري کيسي يې دلته ذکر کړي ،.لومړی دالله دوجود اثبات کوي هغه چې خالق او دحکمت خاوند دی ، دوهمه او دريمه دحشر او بيرته راپاڅيدلو بيان دی.

## لغتونه:

(حاج) له محاجة څخه اخيستل شوی يو له بله دليل وړاندي کول چې په دليل کې مغالبه يې معنا ده (فبهت )انقطاع او هغه سکوت ته وايې چي حيرانتيا ورسره مل وي. (خاوية) نړيدلی. (عروشها) عرش دخونې بام او چت ته وايې او هر هغه څه چې د سيورې کولو او يا اوسيدلو لپاره تيار شي ورته (عريش) وايې (يتسنه) تغيير او تبديل ته وايې چې له (تسنت النخلة) څخه اخيستل شوی هغه چې کالونه ، کالونه ورباندې تير شوي او هغه يې تغيير کړي وي (ننشزها ) له نشز څخه اخيستل شوی او هغه يو په

---

[1] - تفسير ابن کثير ١/٢٣٠.

بل دپاسه خېژولو او پورته کولو ته وايې ، دمخکې لورې برخې ته نشز وايې او له دې څخه دنشځې نشوز هم دی ، ددي کلمې معنا داچې يو دبل له پاسه اوچتوو (فصرهن )در وې غواړه ځان ته ضم کول او بيا پرې کولو ته وايې له(صار شئ يصوره ) ، څخه اخيستل شوي کله چې يې غوڅ او پرې کړي

تفسير:

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِى حَآجَّ إِبْرَٰهِـۧمَ فِى رَبِّهِۦٓ ﴾ ايا تاندي ليدلي (يعنی ای محمده ! ستا علم ندی رسيدلی کيسي د ) هغه سړي (نمرود ) ته چې جګړه (حجت بازي) يې کړي وه ابراهيم سره په (حق) (درب دده کې) دلته دسامع (اوريدونکي) لپاره ددي جګړه مار کافر هغه چې دالله دقدرت په هکله مجادله کوي تعجب وربنکاره کول دي يعني ايا ستا علم ددغه سرغړونکي (نمرود بن کنعان) کيسې ته ندی رسيدلی چې له ابراهيم عليه السلام سره يې دالله دوجود په باب مجادله کوله ؟ ﴿ أَنْ ءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ ٱلْمُلْكَ ﴾ له دي جهته چې ورکړي وو ده ته الله ملک (سلطنت) چې دهمدې نعمت په سبب هغه دالله له شته والي څخه منکر شو ، دالله احسان او نعمت يې په کفر او طغيان استقبال کړ ) ﴿ إِذْ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ رَبِّىَ ٱلَّذِى يُحْىِۦ وَيُمِيتُ ﴾ (او کله چې وويل ابراهيم رب زما هغه ذات دی چې ژوندي کوي او مړه کوي ) يعني ابراهيم عليه السلام دالله دشته والي په هکله ورته داسې دليل وړاندي کړ چې زما پالونکی (رب) هغه ذات دی چې ژوند او مرګ يې دبدنونو لپاره پيدا کړی دی رب العالمين يوازې هغه دی. ﴿ قَالَ أَنَا۠ أُحْىِۦ وَأُمِيتُ ﴾ وويل (نمرود ) چې زه (هم) ژوندی کوم دواجب القتل په عفوې سره ، او مړ کوم دبيګناه په ظلم سره ، روايت کاوه شي چې هغه دوه تنه چې داعدام حکم وربانديې صادر شوی وو راوبلل او ديوه په وژلو يې امر وکړ او ويل يې: دامي ووژل او امر يې وکړ چې هغه بل دی آزاد شي او ويې ويل چې دامي ژوندی کړ کله چې حضرت خليل دده ناپوهي او حماقت وليد يو بل دليل ته يې رجوع وکړه چې هغه زيات ملامتونکی وو .

﴿ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَأْتِى بِٱلشَّمْسِ مِنَ ٱلْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ ٱلْمَغْرِبِ ﴾ وويل ابراهيم چې بيشکه الله لمر راولي (له لوري) د مشرق (ختيز) نه نو ته يې راوله (له لوري) دمغرب (لويديزه) يعني که چيري ته دالوهيت دعوي کړي او وايې چې درب العالمين په شان خلک ژوندي کوي او وژني ، نو همدا لمر دی چې دالله په حکم تل دختيز له لوري راخيژي نو ته يې دلويديز له لوري په خپل توان او سلطان سره که څه هم يو ځل وي را وخيژوه ! ﴿ فَبُهِتَ ٱلَّذِى كَفَرَ ﴾ نو حيران او شرمنده شو هغه چې کافر شوی وو (نمرود ) يعني هغه فاجر په همدې غوڅ دليل ګونګئ او هېښ (حيران) شو چې هيڅ ځواب يې نشو ويلای . ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ (او الله نه ښيي خير او سمه لاره ، قوم دظالمانو ته ) يعني الله دوی ته دبرهان او دليل لاربنوونه نکوي لکه څنګه چې يې خپلو اولياوو متقينو ته کوي. ﴿ أَوْ كَٱلَّذِى مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ وَهِىَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا ﴾ (ايا ستا علم ندی رسيدلی کيسي ) د هغه سړي (عزير) ته چې تير شو په يوې قريي او هغه (قريه) پريوتلي وه (ديوالونه يې ) پر بامو ددوی باندي ) دا دوهمه کيسه ده چې دهغه چا لپاره چې الله يې دلاربنوونې اراده کړي وي ، مثل دی او معنا داچې ايا ستا علم نه دی رسيدلي کيسي دهغه

چا ته چي په یو کلي تیر شو او هغه چې دیوالونه یې په بامونو راپریوتي وو او دا دبیت المقدس یو کلی وو چې (بخت نصر) وران کړی وو. ﴿ قَالَ أَنَّىٰ يُحْيِي هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا ﴾ (نو) ویې ویل څرنګه به بیا وداننه او ژوندي کړي الله دا قریه او یا یې خلک، وروسته له (ورانیدلو او) مړه کیدو (داهل) دهغې؟ یعني همدي نیک سړي چې په مشهوره رایه نوم یې (عزیر) دی وویل څنګه به الله داکلي وروسته له ورانتیا او مړ کېدلو راژوندی کړی ؟ او دایې دالله جل جلاله دستر قدرت په باب تعجب ښکاره کاوو چې څنګه ورانه ویجاړه کلي او قریه به بیا راژوندی کړي، هلته دې په خره سپور تیریدلو ﴿ فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ ﴾ (او مړیې کړ دی الله سل کاله بیا یې پورته (ژوندي) کړ دی ) یعني هغه یې سل کاله مړ کړ او هلته یې پریښود بیا یې ژوندی راپاڅاوو چې دالله دقدرت کمال ورووینې. ﴿ قَالَ كَمْ لَبِثْتَ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ﴾ وویل (الله عزیر ته) څومره ځنډ دی وکړتا (دلته ) وویل (عزیر) ځنډ مي کړی دی یوه ورځ یا یوه برخه دورځې ، یعني ما هغه ته دملکې په واسطه وویل چې پدغه حالت کې دې څومره وخت شویدی نو هغه وویل یوه ورځ او کله چې یې لمر ته وکتل چې هغه لا لویدلی نه وو نو یې وویل چې یو څه برخه دورځي بیا پروردګار ورته وفرمایل: ﴿ قَالَ بَل لَّبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ ﴾ وویل (الله داسې نه ده لکه چې ته وایې) بلکې ځنډ کړي دي تا دلته سل کاله ﴿ فَانظُرْ إِلَىٰ طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ ﴾ (نو وګوره خوړو خپلو ته او (شیانو ) دڅښلو ته چې هیڅ نه دي خراب شوي) یعني که دي پدي کې شک وي نو دخوړلو شیانو ته دي وګوره چې دوخت په تیریدلو ندي خوسا شوي چې انګور، انځر او عصیر (شربت) وو پخپل حال پاتې وو. ﴿ وَانظُرْ إِلَىٰ حِمَارِكَ ﴾ او وګوره خره ته دي، چې څرنګه یې هډوکي تیت او زاړه شوي چې یوازې هیکل یې پاتي دي. ﴿ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ ﴾ (او دپاره ددې چې موږ وګرځوو تا دلیل (دقدرت) لپاره دخلکو ) یعني دامو ددي لپاره وکړل چې ته دالله سبحانه وتعالی قدرت وپیژنې ﴿ وَانظُرْ إِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا ﴾ او وګوره طرف دهډوکو د (خره خپل ته ) چې څرنګه راخوځوو (موږ) هغه بیا ورواغوندو هغوی ته غوښه ، یعني دخره هډوکو ته دي وګوره چې څرنګه یې پخپل قدرت سره یو دبل له پاسه سپروو او بیا غوښه ورباندي را زرغونوو ﴿ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ نو کله چې ورښکاره شوه ده ته (داحال په مشاهده سره نو) وویل (عزیر چې اوس) پوهیږم چې بېشکه الله په هر شي باندي (چې اراده یې وفرمایي) ښه قادر دی، یعني وروسته له دې چې داځرګندي علامې یې ولیدي نو یې وویل پوهیږم ... ﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَىٰ ﴾ او یا دکړه (ای محمده!) هغه وخت چې وویل ابراهیم ای ربه! وښیه ماته چې څرنګه ژوندي کوي ته مړي ؟) دا دریمه قصه ده او پکې له فنا نه وروسته درا ژوندي کېدلو په باب هسې دلیل موجود دی په دې کې حضرت خلیل له خپله ټینګه ایمانه سره ، سره چې دالله په قدرت یې درلود.

داپوښتنه وکړه او غوښتل يې هغه څه چې په وجدان کې يې ورباندي باور درلود ، عيان ووينې ځکه نو الله ورته وفرمايل: ﴿ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن قَالَ بَلَىٰ وَلَٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي ﴾ (وويل (الله) ايا ستا لا باور نشته (په ژوندي کولو دمړو بيا ) وويل (ابراهيم ) هو (باور مې شته) وليکن (غواړم ) ددې لپاره چې مطمئن شي زړه زما ) يعني بصيرت مې زيات او دزړه سکون مې په دې ليدلو پرځاى شي ﴿ قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ﴾ (وويل (الله) نو ونيسه ، څلور له مرغانو نه پس رانژدې کړه دوى خپل ځان ته ) او بيا يې ټوټې او غوښ کړه وروسته يې سره ګډوډ کړه تر څو چې يوه بوټۍ غوښه وګرزي ﴿ ثُمَّ اجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا ﴾ بيا يې کښېږده په هريوه غره باندې له دې څنې يوه برخه ﴿ ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا ﴾ بيا راوبوله (اى ابراهيمه !) دوى نو رابه شي دوى تاته په منډو ) مجاهد وايي: چې دا څلور مرغان طاؤس ، کارغه ،کوتره او چرګ وو هغه يې حلال کړل او هغسې يې ټوټې کړل لکه چې ورته ويل شوي وو بيا يې دغرونو په څوکو وويشل او چې ورته نارې يې کړې په منډه ، منډه ورته راغلل ﴿ وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ پوه شه (اى ابراهيمه !) چې بېشکه الله ډير غالب دى ښه حکمت والا دى) پخپل تدبير او صنعت کې مفسرين کرام وايي: چې مرغان يې حلال کړل بيا يې ټوټې ، ټوټې کړل او سره يې وټوکول آن تر دې چې بڼې، وينې يې او غوښې يې سره ګډې شوې او دهغوى سرونه يې له ځانه سره وساتل او نور يې نو څلور ونډې دغرونو په سرونو کښېښودل ، وروسته يې دالله تعالى له فرمودې سره سم راوبلل او ورته کتل يې چې يوه بڼه به نورو بڼو ته وروالوته ، وينې به نورو وينو سره يوځاى کيدلې او غوښې به يې له نورو غوښو سره کوشير او پتليز اخيست تر څو چې به دپخوا په شان مرغه جوړ شو او بيا به په منډه ، منډه ورته راتو چې هغه يې سم ووينې لکه چې له الله څخه يې غوښتې وو ، همدا خبرې ابن کثير راوړې دي

بلاغت:

۱-(الم تر ) دلته قلبي رؤيت مراد او استفهام دتعجب لپاره دى.

۲-پدې کلام کې چې فرمايي:(ربي الذي يحي ويميت ) په مضارع سره تعبير دتجدد او استمرار افاده کوي او همدارنګه پدې کې مبتداء او خبر معرفه ذکر شوي او قصر څرګندوي معنا داچې يوازې الله سبحانه وتعالى هغه ذات دى چې ژوندى والى او مړ کول کوي او د (يحي ويميت ) په کلماتو کې دطباق صنعت دى چې دبديعي محسناتو څخه ګڼل کيږي لکه چې دمغرب او مشرق ترمينځ همدا صنعت دي.

۳-(فبهت الذي کفر ) پدې مبارک او لوړ تعبير کې داخوندې شوې ده چې دهغه دحيرانتيا سبب دهغه کفر وو که چيرې ويل شوي واى چې (فبهت الکافر) دغه باريکه معنا څنې نه څرګنديدله.

۴-(انى يحيى هذه الله بعد موتها) پدې آيت کې مرسل مجاز دى ځکه دمحل اطلاق شوي مراد څنې حال دى او دکلي مرګ خو د کلي دخلکو مرګ وي- پدې کلام کې چې فرمايي:(ثم نکسوها لحما) معنا پټ کړم او ونغاړم يې په غوښو لکه چې بدن په جامو پټيږي. ابوحيان وايي چې کسوت په اصل کې هغه

څه ته وايي چې په تن او بدن سربيره جامې وي او دلته يې مجازاً استعمال شوي دي چې خورا ښکلې باريکه استعاره ده.([1])

## نوائد او ټکي:

لومړۍ فائده: مجاهد وايي چې په ټوله نړۍ له ختيزه تر لويديزه څلورو تنو پاچهي کړې چې دوه يې مسلمانان او دوه يې کافران وو مؤمنان (سليمان بن داود) او (ذوالقرنين) وو او کافران يې (نمرود) او (بخت نصر) هغه چې بيت المقدس يې وران کړی وو.([2])

دوهمه فائده: کله چې ابراهيم خليل عليه السلام د سرغړونکي (نمرود) هغه دژوند او مرګ په هکله تجاهل وليد او داچې د خپل رعيت په سترګو کې يې په داسې دليل چې هر چاته يې بطلان څرګند وو (خاوري شيندلي) پردې غوړولي، نو بل ډول ته يې رجوع وکړه چې هلته د مغالطې امکان نه وي او دغه بدمرغه ونشي کولای چې په مکابره او تجاهل خلک تير باسي نو يې ورته وويل: (ان الله يأتي بالشمس من المشرق فأت بها من المغرب) نو ابراهيم عليه السلام يې ورمېږ ورتاو کړ او هغه يې له ځواب ويلو عاجز کړ او ژبه يې ګونګۍ شوه.

دريمه فائده: دابراهيم عليه السلام دغه پوښتنه چې: (كيف تحي الموتى) دالله په قدرت کې دشک له کبله نه وه بلکې دژوندي کولو دځرنګوالي په باب وه چې (کيف) کلمه ورباندې دلالت کوي، او موضوع يې پوښتنه دحال دي او ددې تائيد درسول الله صلى الله عليه وسلم پدې وينا کيږي چې فرمايي: (نحن احق بالشک من ابراهيم) معنا يې داده چې موږ شک نه لرو نو ابراهيم عليه السلام خو په طريقه اولى سره شک او شبهه نه کوي.

***

## الله تعالى فرمايي:

﴿ مَّثَلُ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنۢبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِى كُلِّ سُنۢبُلَةٍ مِّاْئَةُ حَبَّةٍ ۗ وَٱللَّهُ
يُضَٰعِفُ لِمَن يَشَآءُ ۗ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٦١﴾ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُونَ مَآ أَنفَقُوا۟ مَنًّا وَلَآ أَذًى
لَّهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٦٢﴾ ۞ قَوْلٌ مَّعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّن صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَآ
أَذًى ۗ وَٱللَّهُ غَنِىٌّ حَلِيمٌ ﴿٢٦٣﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُبْطِلُوا۟ صَدَقَٰتِكُم بِٱلْمَنِّ وَٱلْأَذَىٰ كَٱلَّذِى يُنفِقُ مَالَهُۥ رِئَآءَ ٱلنَّاسِ وَلَا
يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ ۖ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُۥ وَابِلٌ فَتَرَكَهُۥ صَلْدًا ۖ لَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَىْءٍ
مِّمَّا كَسَبُوا۟ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٢٦٤﴾ وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمُ ٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِ ٱللَّهِ وَتَثْبِيتًا
مِّنْ أَنفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍۭ بِرَبْوَةٍ أَصَابَهَا وَابِلٌ فَـَٔاتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ فَإِن لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا

[1] - البحر المحيط ۲/۲۹۴

[2] - مختصر ابن کثير ۱/۲۲۴

تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿۲۶۵﴾ أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ أَن تَكُونَ لَهُۥ جَنَّةٌ مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَابٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ لَهُۥ فِيهَا مِن
كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ وَأَصَابَهُ ٱلْكِبَرُ وَلَهُۥ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَآءُ فَأَصَابَهَآ إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَٱحْتَرَقَتْ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ
ٱلْءَايَٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴿۲۶۶﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ
ٱلْأَرْضِ وَلَا تَيَمَّمُواْ ٱلْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِـَٔاخِذِيهِ إِلَّآ أَن تُغْمِضُواْ فِيهِ وَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿۲۶۷﴾
ٱلشَّيْطَٰنُ يَعِدُكُمُ ٱلْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُم بِٱلْفَحْشَآءِ وَٱللَّهُ يَعِدُكُم مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿۲۶۸﴾ يُؤْتِي
ٱلْحِكْمَةَ مَن يَشَآءُ وَمَن يُؤْتَ ٱلْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُوْلُواْ ٱلْأَلْبَٰبِ ﴿۲۶۹﴾

البقرة: ۲۶۱ - ۲۶۹

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله تعالی مخکې یادونه وکړه چې خلک په دوه ټولی وویشل شول ، یوه یې اولیاء الله چې مؤمنان او بله ډله یې اولیاء الشیطان او یا اولیاء الطاغوت دي چې هغوی کافران دي ، بیایې دایمان او طغیان نمونې ذکر کړې، نو دلته یې دالله په لار کې دمصرف کولو روا انفاق امر وفرمایو او په ځانګړې توګه د في سبیل الله جهاد په هکله څکه دالله په لار کې جهاد دري ډګرونه لري

لومړی: په ژبه جهاد او په برهان او حجت ، دښمن ته قناعت ورکول او دوهم: په خپل نفس او ځان جهاد کول ، او دریم: په مال جهاد کول نو څرنګه چې پخوا یې ددعوت او بلنې جهاد ذکر کړ او بیایې جهاد بالنفس یاد کړ اوس یې په مال سره جهاد کول راوړل.

## لغتونه:

(المن) چاته وروسته له احسان ورکولو ضرر رسول او یا ورته دخپل نعمت څو ،څو ځله یادونه چې خپله مهترې وربانديې څرګنده کړي ، شاعر وایې:

افسدت بالمن ما اسدیت من حسن    لیس الکریم اذا اسدی بمنان

په احسان اچولو او منت اېښودلو دې هغه خپله نیکي برباد کړه سخې خو داسې نه وي چې خپله سخا په احسان اچولو برباد وي.

(رئاء الناس) هغه چې په خپله صدقه او انفاق دالله خوښې نه غواړي بلکې مطلب یې داوي چې خلکو ته ځان ښکاره کړي او هغوی بیا دده ثنا ووایې.(صفوان) سترې ښوی ډبرې ته وایې ، اخفش وایې چې داجمع دی او واحد یې (صفوانة) راځي او چا بیا وېلي چې همدا اسم جنس او لکه (حجر) غوندي دی. (وابل) سخت باران ته وایې (صلدا) هغه ښوی ډبرې ته چې څه نه را زرغونوي ویل کیږي (جبین اصلد) یعنې ښوی وچولی( بربوة) په لوړې مځکې ،غوندۍ چې اصل یې له ربا څخه اخیستل شوی دزیاتوالي او لوړوالي په معنی ده (طل) سپک باران ته وایې هغه چې واړه څاڅکې لري څینو بیا ویلي دي چې مجاهد هم پکې دی چې (طل) شبنم او پرخې یا رطوبت ته وایې (اعصار) هغه سخت باد ته وایې

چې له مخکې را الوزي او آسمان ته دستنې په شکل پورته کيږي او (زوبعة) يې بولي. (تيمموا) قصد کوئ (تغمضوا) سترګې پټوئ کله چې په يو کار کې تساهل وکړل شي لکه چې په ناخوښه کار کې (اغماض) ويل کيږي

**دنزول سبب:**

دا آيتونه دعثمان بن عفان او عبد الرحمن بن عوف رضوان الله عليهم په هکله نازل شوي چې حضرت عثمان رضی الله عنه يو زر او ښان سره له ټولو لوازمو دالله په لار کې جهاد ته ورکړل او يو زر ديناره يې درسول الله صلى الله عليه وسلم په وړاندې کښيښودل، رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه اړول را اړول ويې فرمايل: (ماضر عثمان ما فعل بعد اليوم) او حضر عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه څلور زره درهمه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راوړل او ويې ويل: يارسول الله ! اته زره درهمه مې درلودل څلور زره مې دخپل اهل او عيال لپاره وساتل او څلور زره مې الله تعالى ته قرض ورکړل رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل: "بارک الله لک فيما امسکت وفيما اعطيت" نو دا آيت شريف نازل شو: (مثل الذين ينفقون اموالهم في سبيل الله..)([1])

**تفسير:**

﴿ مَّثَلُ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنۢبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِى كُلِّ سُنۢبُلَةٍ مِّاْئَةُ حَبَّةٍ ﴾ (مثال دهغو کسانو چې صرفوي مالونه خپل په لاره دالله کې په مثل ديوې دانې (تخم) دي چې زرغونه کړي دا اوه وږي په هر وږي کې سل (سل) دانې وي) دا هغه مثال دی چې الله دهغه چا په هکله چې دالله په لار کې مال لګوي فرمايلي او داچې نيکي په لس چنده تر اووسوو پورې الله زياتوي لکه چې يوه دانه اوه وږي راوړي او هر وږي په سل، سل دانو مشتمل وي اوداد هغه چا دصدقې مثال دي چې اخلاص درلودونکي وي څکه الله فرمايي: ﴿ وَٱللَّهُ يُضَٰعِفُ لِمَن يَشَآءُ ﴾ (او الله زياتوي اجر دپاره دهغه چاچې اراده وکړي د (داجر دزياتولو) يعني دنفقه ورکونکي دحال او اخلاص سره سم الله اجر زياتوي ﴿ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴾ (او الله پراخ دی (احسان، فضل او رحمت دده) ښه عالم دی (په ټولو احوالو) ﴿ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُونَ مَآ أَنفَقُوا۟ مَنًّا وَلَآ أَذًى ﴾ (هغه کسان چې صرفوي مالونه خپل په لاره دالله (دجهاد او دنورو عبادتونو) کې بيا نه ورپسې کوي (دوی) هغه شی پسې چې خيرات يې کړي دي (بارول د) احسان او نه (رسونه د) ضرر) يعني دوي پخپل انفاق کې دالله له رضا پرته بل مقصد او هدف نه لري څکه نو بيا په احسان پسې وروسته هغه سړی ته چې نفقه يې ورکړي داسې نه وايي چې ما خو درسره احسان کړی ستا غم مې خوړلی او نه هم بل چاته وايي چې ماله فلانې سره، دومره، دومره کومکونه او مرستې کړي چې هغه بيوزله له يادولو څخه خوريږي او ورته ضرر رسيږي ﴿ لَّهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ (شته) لپاره ددوی اجر (دنفقې ثواب) ددوی په نزد رب ددوی. ﴿ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ

---

([1]) - اسباب النزول للواحدي ص ۴۷.

يَحْزَنُونَ ﴾ او نه به هيڅ ويره پرد وي او نه به دوی (هيڅکله) غمجن کيږي) يعنې دوی به د قيامت په ورځ هيڅ نه ويريږي او نه به ددنيا په پاتې کيدلو غمجن وي ﴿ قَوْلٌ مَّعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّن صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَآ أَذًى ﴾ نيکه (خوږه پسته) خبره و فقير ته او عفوه وده ته که الحاح يا شور جنجال ، وکړي ) ښه دی له خيراته چې په هغه پسې وي ضرر (رسونه په منت يا په پيغور د سوال سره ) په نزد د الله ﴿ وَٱللَّهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ ﴾ او الله غنى ، (بې پروا دی له هرچا او هر څه) نهايت تحمل والا دی (د عذاب په وروسته والي د پښيمانتيا لپاره ) يعنى هغه چاته چې له امر ځنه يې سرغړونه وکړي ژر تر ژره عذاب نه ورکوي ... بيا الله هغه څه بيانوي چې د صدقې ثواب ته زيان رسوي او صدقه باطلوي ، فرمايي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُبْطِلُواْ صَدَقَٰتِكُم بِٱلْمَنِّ وَٱلْأَذَىٰ ﴾ (اى هغو کسانو ! چې ايمان يې راوړی دی (اى مؤمنانو !) مه باطلوئ تاسې خيراتونه خپل ( مه ضائع کوئ ثوابونه يې) په احسان بارولو او ضرر رسولو سره ) ﴿ كَٱلَّذِى يُنفِقُ مَالَهُۥ رِئَآءَ ٱلنَّاسِ ﴾ په شان (د هغه سړی) چې صرفوي مال خپل د پاره د ښودنې (د خلکو ) ﴿ وَلَا يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ ﴾ او ايمان نلري په الله او په ورځې د اخرت باندې (چې قيامت دی) يعنې داچې نه خو د ثواب هيله لري او نه هم له عذابه ويريږي ﴿ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ ﴾ نو مثال د دی (رياکارى) په شان د صفت د هغې ښوئې تيږې دی چې پرتې وي په هغې باندې څه خاورې ، چې سړي ګومان کوي دا ښه د زراعت او کرهنې وړ خاوره ده. ﴿ فَأَصَابَهُۥ وَابِلٌ فَتَرَكَهُۥ صَلْدًا ﴾ پس ورسيږي هغې ته زورور باران ، نو پريږدي دغه تيږه پاکه ستره له ګرده همدارنګه دغه منافق ګومان کوي چې عملونه يې ښه صالح دي خو کله چې قيامت شي نو هغه به هيڅ هم نه وي ځکه نو الله فرمايي: ﴿ لَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَىْءٍ مِّمَّا كَسَبُواْ ﴾ نه به قادريږي (د رياکاران) په هيڅ شي باندې (له ثوابه د هغه شي) چې کسب کړي دي دوی ، يعنې هيڅ ثواب به نشي ميندلای چې ورباندې ګټه واخلي. ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ (او الله نه ښيي سمه لار قوم د کافرانو ته ) بيا الله تعالى يو بل مثال د هغه مؤمن لپاره چې خاص د الله د رضا لپاره مال صرفوي ، داسې بيانوي: ﴿ وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمُ ٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِ ٱللَّهِ وَتَثْبِيتًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ ﴾ او مثال د هغو کسانو چې صرفوي مالونه خپل لپاره د طلب د رضاء (د الله او لپاره د ثبات (د زړه او صدق چې پيدا دی) له نفسونو د دوی ځنې ) يعنې يوازې د الله د خوښې او د ثواب د ګټلو لپاره چې دوی د الله په لقا باور لري خپل مالونه لګوي ﴿ كَمَثَلِ جَنَّةٍۭ بِرَبْوَةٍ ﴾ په شان د يوه باغ دی په لوړه ځمکه ) د لوړې ځمکې يادونه يې پدې وکړه چې ميوه يې خوړا ښه او ونې يې ښائسته وي. ﴿ أَصَابَهَا وَابِلٌ فَـَٔاتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ﴾ ، (چې ورسيږي دې باغ ته زورور باران نو ورکړي ميوه خپله دوچنده ) تر

نورو ونو چې بل چیرته وي ﴿ فَإِن لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ﴾ نو که ونه رسیږي (دي باغ) ته (زور ور باران نو بیا پرخه (نری باران) هم کافي دی) څکه هوایې سوتره پاکه ، مځکه یې مستعده مأمونه او په هر حال کې میوه ورکوي. ﴿ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ . (او الله په هغو شیانو چې تاسي کوئ ښه لیدونکی دی.) یعني دبندګانو اعمال ورڅخه پټ نه دي. ﴿ أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ أَن تَكُونَ لَهُ جَنَّةٌ مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَابٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ﴾ آیا خوښوي یو دتاسو داچې وي ده لره باغ له خرماوو او له انګورو څخه چې بهیږي لاندي تر (ونو) دهغه ویالي ﴿ لَهُ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ ﴾ چې وي ده لره په دغه باغ کې له هر ډول میوو څخه ﴿ وَأَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهُ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ ﴾ ، او ورسیږي ده ته زوړ والې او وي ده لره اولاد ضعیفان (چې کسب او کار نشي کولای) . ﴿ فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ﴾ (پس ورسیږي هغه باغ ته سخت باد چې وي په هغه کې اور نو وسوځئ داباغ ) ونې او میوې یې پداسي حال کې وسوځوي چې انسان ورته سخت محتاج او اړ وي. ﴿ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴾ ، (همداسې بیانوي الله تاسې ته دلائل (دخپل قدرت) لپاره ددې چې تاسې فکر وکړئ !) یعني ددغه څرګند بیان او دغه روښانه مثال په ډول الله په خپل کتاب حکیم کې دلائل درته بیانوي تر څو تاسي څنې عبرت او پند واخلئ

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ ﴾ (ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو !) لګوئ له حلالو دهغو مالونو چې په کسب سره تاسي ګټلي. ﴿ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ ﴾ ، او له هغوشیانو چې ایستلي دي موږ تاسي لره له مځکي نه له میوو دانو څخه ) ﴿ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ ﴾ او قصد مه کوئ تاسې (دورکولو) دخبیثو (نابودوشیانو) له هغه ماله چې لګوئ یې تاسي ﴿ وَلَسْتُم بِآخِذِيهِ إِلَّا أَن تُغْمِضُوا فِيهِ ﴾ حال داچې نه یې تاسي اخیستونکي دهغه (ناکاره شي) په خپل حق کې مګر خو یې داسي اخلئ) چې سترګي پټي کړي په (اخیستو) دهغه کې یعني که تاسو ته یې څوک درکوي تاسې یې نه اخلئ مګر که وربانديې سترګې پټې کړئ نو چې تاسو یې نه اخلي دالله جل جلاله حق ولي له داسې مال څخه ورکوئ؟ ﴿ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴾ او پوه شئ چې بیشکه الله غني دی. (او تل ورته ښه ستاینه) ثنا ویلي شوي) یعني الله ستاسو له نفقاتو څخه بې پروا او غني دی احسان کونکي ته ښه جزا ورکوي بیا الله تعالی دشیطان له وسوسو څخه داسې تحذیر فرمایي: ﴿ الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُم بِالْفَحْشَاءِ ﴾ ، شیطان وعده درکوي تاسې ته دخوارئ (ویروي مو چې خوار به شئ) او حکم کوي تاسې ته (دکولو ) ناوړه (غلطو) کارونو (لکه بخل) . ﴿ وَاللَّهُ يَعِدُكُم مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا ﴾ ، او الله وعده کوي له تاسې سره دمغفرت دګناهونو له خپله (لوري) او دفضل (دانفاق په بدل کې) یعني الله تاسې ته په انفاق باندې دګناهونو دمغفرت او دانفاق په بدل کې دزیاتوالي دمال وعده

درکوي. ﴿ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴾او الله پراخ دی (رحمت ،فضل او احسان دده) ښه عالم دی پر ټولو احوالو یعني دالله فضل او ورکړه پراخه او لویه ده په هغه چاچې دښتا ور دی. ﴿ يُؤْتِي ٱلْحِكْمَةَ مَن يَشَآءُ ﴾ ، ورکوي حکمت (نافع علم سره له عمله) هر چاته چې اراده وکړي ، له خپلو بندګانو څخه ) ﴿ وَمَن يُؤْتَ ٱلْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ﴾ (او هر چاته چې ورکړ شو حکمت (نافع علم سره له عمله ) نو په تحقیق سره ورکړ شو (ده ته ) خیر ډیر) څکه چې خاوند به یې ابدي نیکمرغي تر لاسه کوي ﴿ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُوْلُواْ ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ ( او نه اخلي پند مګر خاوندان دعقلونو ) یعني دقرآن کریم په متلونو اوحکمتونو پند نه اخلي مګرخاوندان دروښانه عقلونو پنداخلي هغه چې دهوا او هوس پلویان نه وي.

## بلاغت:

۱-(کمثل حبة ) الله پاک هغه صدقه چې دده په لار کې ورکول شوي له یوې دانې سره تشبیه کوي چې کرل شوي او الله پکې برکت اچولی وي اوه سوه دانې ځنې پیدا شوي وي پدې کلمه کې (مرسله مجمله ) تشبیه دی څکه دتشبیه ادات ذکر شوي او دمشابهت وجه حذف شوي ده،ابوحیان وایې: چې همدا مثال څوچنده داسې دی لکه چې دسترګو په وړاندې یې را څوړند وي[1]

۲- پدې قول کې چې فرمایې : (انبتت سبع سنابل) ، دلته (عقلي مجاز) راغلی څکه دزرغونیدلو نسبت یې دانې ته کړی دی او په حقیقت کې زرغونونکی الله تبارک وتعالی دی.

۳-( منا ولا اذی) پدې کلمه کې ذکر دعام وروسته له خاص نه راغلی دی تر څو شمول افاده کړي څکه احسان بارول هم په ضرر کې شامل دی

۴-(کمثل صفوان علیه تراب) ، (پدې کمله کې راوړل شوي تشبیه ته تمثیلي تشبیه وایې څکه له متعدد څخه دشبه وجه ایستل شوي ده او همدارنګه دغه تمثیلي تشبیه پدې کلمه کې هم راغلي چې فرمایې: (کمثل جنة بربوة) .

۵- پدې کلام کې چې الله تبارک وتعالی فرمایې : (ایود احدکم ان تکون له جنة) ، په آیت کې شبه ندي ذکر او نه هم دتشبیه ادات راوړل شوي چې دبلاغت علما دي ته تمثیلي استعاره وایې ، څکه پدې کې دیو حال له بل سره تشبیه شوي دي خو له مشبه به پرته بل څه نه دي ذکر شوي او داسې قرائن موجود دي چې دتشبیه په اراده کولو دلالت وکړي دلته همزه داستفهام لپاره دی او معنی په تبعید او نفي بنا ده یعني هیڅوک دانه خوښوي

۶-(تغمضوا فیه) پدې کلمه کې مراد تجاهل او مساهله ده ، کله چې انسان ناخوښه څیز وویني نو ورباندي سترګې پټوي ، نو په کلام کې (مرسل مجاز) یا (استعاره) دی.[2]

---

[1] - البحر المحیط.

[2] - الفتوحات الالهیة۱/۲۲۳.

## فوائد او ګټې:

لومړۍ فائده: زمخشري وايي (من) هغه څه ته وايي چې له چا سره احسان وشي او دهغه احسان په ويادولو وخورول شي او په نوابغ الکلم کې راځي: (صنوان من منح سائله ومن ٠ومن منع نائله وضن) يعني سيالان او ساري دي هغه دوه يو چې چاته څه ورکړي او بيا ورباندي احسان بار کړي او بل هغه چې چاته هيڅ نه ورکوي او بخل کوي. بله نابغه کلمه داچې :(طعم الآلاء احلى من المن وهي أمرّ من الآلاء مع المن ) يعني دنعمتونو خوند تر (من) لا خوږ دی (هغه من او سلوی ترې مراد دی ) لاکن دغه (من ) بيا تر آلا هم خورا تريخ دی کله چې له احسان بارولو سره يوځای وي.(١)

دوهمه فائده :دباران لومړی پيل ته (رش) وروسته (طش) بيا (طل ) وروسته (نضح) وروسته (هطل) بيا (وبل) او هغه باران ته چې په شيبو، شيبو اوري (وابل) وايي.

دريمه فائده :يوه ورځ عمر بن الخطاب رضی الله عنه درسول الله صلی الله عليه وسلم اصحابو رضوان الله عليهم ته وويل: تاسو څه فکر کوئ چې دا آيت دچا په شان کې نازل شوی دی (ايود أحدكم ان تكون له جنة ) نو دوی وويل :الله جل جلاله ښه عالم دی. عمر رضی الله عنه ته قهر ورغی او ورته ويې ويل: وواياست چې پوهيږو يا نه پوهيږو ! ابن عباس رضی الله عنهما وويل :ای اميرالمؤمنينه ! زما په زړه کې يوڅه شته ، نو عمر رضی الله عنه ورته وويل: ووايه وراره ځان خوار او کوچنی مه ګڼه! نو ابن عباس رضی الله عنهما وويل : دادهغه چا لپاره مثال ويل شوی چې ښه عملونه او دالله طاعت عبادت کوي بيا ای وي ته بيا شيطان ورته راشي او ګناهونه يې دومره زيات کړي چې ښه عملونه او طاعات يې له مينځه يوسي او ډوب يې کړي. دبخاري روايت.

څلورمه فائده: حسن بصري رضی الله عنه وايي: داهسي مثال دی چې ډير خلک ورباندي والله که پوهيږي ، دسپين ږيري بوډا چې خورا ضعيف بدن لري او ماشومان يې زيات وي خپل بڼ او باغ ته خورا اړ وي خو طوفاني لمبه راشي او باغ يې وروسوځوي او هر يو ستاسې په والله چې کله له دنيا ولېږدي او عمل يې منقطع شي خپل عمل ته همداسې اړ دی.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن نَّفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُم مِّن نَّذْرٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُهُۥ ۗ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴿٢٧٠﴾ إِن تُبْدُوا۟ ٱلصَّدَقَٰتِ فَنِعِمَّا هِىَ ۖ وَإِن تُخْفُوهَا وَتُؤْتُوهَا ٱلْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّـَٔاتِكُمْ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٧١﴾ ۞ لَّيْسَ عَلَيْكَ هُدَىٰهُمْ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَهْدِى مَن يَشَآءُ ۗ وَمَا تُنفِقُوا۟ مِنْ خَيْرٍ فَلِأَنفُسِكُمْ ۚ وَمَا تُنفِقُونَ إِلَّا ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ ٱللَّهِ ۚ وَمَا تُنفِقُوا۟ مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ

١ - الکشاف ٢٣٨/١ –(آلاء) هغه دښکلي منظرونې ته وايي چې خوند يې خورا تريخ وي، همداسې صحاح راوړي دي

وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ﴿٢٧٢﴾ لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا فِي
الْأَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ تَعْرِفُهُم بِسِيمَاهُمْ لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا ۗ وَمَا
تُنفِقُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ ﴿٢٧٣﴾ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُم بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَعَلَانِيَةً فَلَهُمْ
أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٤﴾ ﴾ البقرة: ٢٧٠ - ٢٧٤

## مناسبت او تړاو:

تر اوسه لا آيتونه دخير ښيګڼې په کارونو کې دمال لګولو ماربينه کوي چې تر تولو زيات دخير کار في سبيل الله جهاد او دکلمې داعلاء لپاره نفقه ورکول دي بل داچې صدقه بايد پټه ورکول شي چې له ريا او سمعت څخه پاکه وي نو دمناسبت وجه څرګنده ده.

## لغتونه:

(فنعما) اصل يې (نعم ما) دى يو ميم په بل کې مدغم شوى نعما راغلى زجاج وايي چې معنايې داده: ښه دي هغه شئ. (احصروا) حصر بندولو ته وايي يعني هغه کسان چې خانونه يې دجهاد لپاره حصر کړي وي (التعفف) له عفت څخه اخيستل شوى معنايې ده ځان ساتنه او پاکونه دلته مراد ځان له سوال څخه ساتل او پاکول دي.
(بسيماهم) سيما هغه علامت ته وايي چې څوک ورباندي پيژندل کيږي څوک بيا وايي چې هغه سيما لکه کيميا داسي ده، الله تعالى وايي: (سيما هم في وجوههم من اثر السجود) (الحافا)، الحاف الحاح ته وايي معنا يې ده په ټينګار سره څه غوښتل او په سوال کې سختي او کوښښ کول.

## دنزول سبب:

سعيد بن جبير رضى الله عنه وايي چې مسلمانانو به دذميانو په مسکينانو خيراتونه ويشل کله چې دمسلمانانو مساکين زيات شول نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې د خپل دين له خلکو نه پرته بل چاته صدقه مه ورکوئ! نو دا آيت نازل شو چې: (ليس عليكم هداهم ...) او داهغه چاته چې داسلام په دين که څه هم مشرف شوي نه وي دصدقې ورکولو جواز ښيي.[1]

## تفسير:

﴿ وَمَا أَنفَقْتُم مِّن نَّفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُم مِّن نَّذْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُهُ ﴾ (او هغه شئ چې صرف کړي تاسې له نفقي (لکه زکات خيرات لږ يا ډير) يا يې لازم کړى (پخپل ځان) له کوم نذر څخه نو بېشکه الله ته معلوم ده هغه) او په هغه باندي جزا درکوي. ﴿ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴾ (او نشته لپاره دظالمانو هيڅ

[1] - القرطبي ٣/ ٢٣٧.

مدد کونکی ) یعني هغه کسان چې زکات نه ورکوي او یا دالله جل جلاله په معصیت کې مال لګوي دالله له عذاب څخه دهغوی دژغورلو هیڅ مرستندوی نشته. ﴿ إِن تُبْدُوا۟ ٱلصَّدَقَـٰتِ فَنِعِمَّا هِىَ ﴾ (که ښکاره کوئ خیراتونه پس ښه کار دی (ښکارول دهغه ) چې تاسې يې کوئ) ﴿ وَإِن تُخْفُوهَا ﴾ ( او که پټوئ يې تاسي) ﴿ وَتُؤْتُوهَا ٱلْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ (او ورکوئ يې فقیرانو ته نو دا (پټ ورکول بهتر او ) خیر دی تاسې ته ) وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّـَٔاتِكُمْ ﴾ (او لیري به کړي (الله) له تاسې څیني ګناهونه ستاسي) یعني ستاسې په ښو اعمالو به بد اعمال دروبښي ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ (او الله په هغو کارونو چې کوئ يې تاسي ښه خبر دار دی ) یعني له الله جل جلاله څخه هیڅ پټ نه دي ، آیت شریف دصدقي دپټي ورکولو ترغیب ورکوي ) ﴿ لَّيْسَ عَلَيْكَ هُدَىٰهُمْ وَلَـٰكِنَّ ٱللَّهَ يَهْدِى مَن يَشَآءُ ﴾ (نشته پر تاباندي (پرسمه لاره) برابرول ددوی ولیکن الله (په سمه صافه لاره )برابروي هغه څوک چې اراده وکړي (دبرابروالي يې) یعنی ای محمد صلی الله علیه وسلم ! پر تا دانشته چې خلکو ته هدایت وکړي (ددوی په ایمان نه راوړلو په تا وبال نشته ) یوازې ستا دتبلیغ او رسولو دنده په غاړه ده او الله جل جلاله چې دچا اراده وکړي هغه سمې لارې ته راولي. ﴿ وَمَا تُنفِقُوا۟ مِنْ خَيْرٍ فَلِأَنفُسِكُمْ ﴾ (او هر هغه شئ چې صرفوئ (يې) تاسې (له ماله) پس لپاره دنفسونو ستاسو دی ) یعني بل څوک ورباندي ګټه نه اخلي څکه چې ثواب يې ستاسې لپاره دی) ﴿ وَمَا تُنفِقُونَ إِلَّا ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ ٱللَّهِ ﴾ (او نه صرفوئ تاسې (ای مؤمنانو !) مګر صرفوئ يې خاص لپاره دالله درضا ) او دلته خبره دنهي په معنا دی یعنی ای مؤمنانو ! تاسې انفاق ددنیوي اغراضو لپاره مکوئ یوازې دالله جل جلاله رضا مو باید موخه, هدف او مرام وي. ﴿ وَمَا تُنفِقُوا۟ مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ﴾ (او هر هغه شئ چې صرفوئ يې تاسې له خیره پوره به درکړ شي تاسې ته (ثواب دهغه) او په تاسې به ظلم ونکړای شي) یعني دهغه به څو چنده اجر او ثواب مومئ او ستاسې له نیکي او ثواب څخه به هیڅ هم نه کمیږي ﴿ لِلْفُقَرَآءِ ٱلَّذِينَ أُحْصِرُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ (خیراتونه ستاسې) لپاره دهغو فقیرانو دي چې بند کړل شوي دي په لاره دالله کې ) یعني هغه کسان چې دجهاد او غزا لپاره يې خانونه بند کړي دي ﴿ لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (چې توان نه لري دوی دګرځیدلو په ځمکه کې ) یعني دسوداګرۍ او تجارت لپاره دجهاد په سبب په ځمکه کې سفر نشي کولای. ﴿ يَحْسَبُهُمُ ٱلْجَاهِلُ أَغْنِيَآءَ مِنَ ٱلتَّعَفُّفِ ﴾ ګومان کوئ په دوی باندي ناپوه دغنیانو (دا په دي) چې سوال نه کوي ) ﴿ تَعْرِفُهُم بِسِيمَـٰهُمْ لَا يَسْـَٔلُونَ ٱلنَّاسَ إِلْحَافًا ﴾ (نه به يې پیژ نې (ای مخاطبه !) په خیرو دعلائمو دتواضع او خور ) ددوی سره , نه کوي دوی سوال له خلکو څنې په سختې (الحاح او کوښښ) سره ) یعني له دي سره ،سره دوی هیڅکله سوال په الحاح سره له خلکو څخه نکوي او چا بیا ویلي معنا يې داده چې دوی که چیري سوال هم کوي هغه په لطف او نرمي

سره كوي ﴿وَمَا تُنفِقُواْ مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٌ﴾ او هر شی چې تاسي صرفوئ له خيره (مال نه) پس الله په هغه باندې هم ښه عالم او پوه دی) او تاسو ته به ښه جزاء باندي درکوي ﴿ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُم بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ (هغه کسان چې صرفوي مالونه خپل (د الله په لاره کې) په شپه او په ورځ کې په پټ او ښکاره) يعني هغوی چې د الله په لار کې د هغه د خوښې لپاره په ټولو وختونو کې که شپه وي او که ورځ او په ټولو حالاتو کې که پټ وي او که ښکاره خپل مالونه لګوي. ﴿فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾ (پس شته دوی ته اجر (ثواب) د دوی په نزد د رب د دوی او نشته هيڅ ډول ويره په دوی باندي او نه به دوی هيڅکله غمجن کيږي) يعنی دوی ته به د خپل انفاق ثواب ورکول کيږي د قيامت په ورځ به ورباندي ويره نه وي او نه به د دنيا په پاتې کيدلو غمجن شي.

## بلاغت:

۱-(وما انفقتم من نفقة) دلته د (انفقتم) او (نفقة) ترمينځ د جناس صنعت دی او همدا راز د (نذرتم) او (نذر) ترمينځ.

۲- پدي جمله کې چې فرمايي: (ان تبدوا الصدقات) په (ابداء) او (اخفاء) کې لفظي طباق دی او همدا رنګه د (ليل) او (نهار) او (سر) او (علانية) ترمينځ نوموړی صنعت راغلی دی.

۳-(وانتم لاتظلمون) دلته اطناب راغلی ځکه چې له دي کلمي چې (يوف اليكم) څخه وروسته راغلي او د غه معنی د هغه په ضمن کې پرته ده.

## فائدې او ګټې:

ځينو د حکمت خاوندانو ويلي چي: که چا درسره ښه وکړل هغه خپاره او څرګند کړه او که تا له چا سره ښه وکړل هغه پټ کړه او داسې راغلي دي:

يخفي صنائعه والله يظهرها ان الجميل اذا اخفيته ظهر

هغه چې نيکي کوي پټوي يې خو الله يې څرګندوي بيشکه ښائسته اعمال چې پټ هم کړي هغه څرګنديږي

## الله تعالی فرمايي:

﴿ٱلَّذِينَ يَأْكُلُونَ ٱلرِّبَوٰاْ لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ ٱلَّذِى يَتَخَبَّطُهُ ٱلشَّيْطَٰنُ مِنَ ٱلْمَسِّ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوٓاْ إِنَّمَا ٱلْبَيْعُ مِثْلُ ٱلرِّبَوٰاْ وَأَحَلَّ ٱللَّهُ ٱلْبَيْعَ وَحَرَّمَ ٱلرِّبَوٰاْ فَمَن جَآءَهُۥ مَوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ فَٱنتَهَىٰ فَلَهُۥ مَا سَلَفَ وَأَمْرُهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِ وَمَنْ عَادَ فَأُوْلَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢٧٥﴾ يَمْحَقُ ٱللَّهُ ٱلرِّبَوٰاْ وَيُرْبِى ٱلصَّدَقَٰتِ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ

كَفَّارٍ أَثِيمٍ ﴿٢٧٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا الزَّكَوٰةَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ
رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٧﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَوٰا إِن كُنتُم
مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٧٨﴾ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا
تُظْلَمُونَ ﴿٢٧٩﴾ وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ وَأَن تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ
﴿٢٨٠﴾ وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٨١﴾

البقرة: ٢٧٥-٢٨١

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله تبارک وتعالی دپاکیزه مالونو څخه دصدقې او انفاق کولو امر وفرمایه او دالله په لار کې دمال صرفولو هڅونه یې وکړه نو دلته یې دهغه مقابل ذکر کړچې هغه ناپاکه مال او ربوا(سود) دی هغه پلیت کسب چې بخل او ناپاکې پکې دي په داسي حال کې چې صدقه ورکول ،سخا او پاکیزه توب دی او سمدستي وروسته یې له پاکیزه مال څخه ددغه پلیت مال ذکر وفرمایل څکه چې وایي: وبضدها تتميز الاشياء ، او شیان د یو بل په ضد سره پیژندل کیږي.

## لغتونه:

(الرباء ) په لغت کې زیاتوالي ته وایي او له دي څخه دي (ربوة) او (رابية) په شرعي اصطلاح کې هغه زیاتوالی دی چې پور ورکوونکی یې له پوروړي څخه دمودې په بدل کي تر اصلي مال پورته تر لاسه کوي. (يتخبطه) تخبط هغه وهلو ته وایي چې ناسم وي لکه چې اوښ په خپله څپر مخکه وهي او هغه چاته ویل کیږي چې کار کوي خو لاره نه مومي او دشیطان تخبط د هغه له لاسه لیونتوب او بیهوښي ته ویل کیږي (المس) لیونتوب او جنون په اصل کې مس لاس وروړلو ته وایي او لکه چې شیطان لاس وروړي بیا تري لیونتوب پیدا شي. (سلف) تیر شوی وخت لکه چې وایي (سالف الدهر) یعني تیره شوې زمانه (يمحق) محق دیو څیز نقصان او کمبود ته وایي لکه چې دمیاشتې کموالي ته (محاق) ویل کیږي داسې راغلي چې الله کمول او هغه کم شول. (اثيم) ډیر ګهنګار ته وایي هغه چې په ګناهونو کې غوپه وي

## دنزول سبب:

دثقیف د قبیلې دبني عمرو خلکو په بني المغيرة توکم باندي پورونه باندي وو کله چې یې وخت پوره شو نو خپل پور او په هغه دپاسه ګټه یې هم تري غوښتنه نو بیا دا آیت نازل شو: (يا ايها الذين آمنوا اتقوا الله وذروا مابقى من الربوا ان كنتم مؤمنين فان لم تفعلوا فاذنوا بحرب من الله ورسوله ...) نو دثقیف قبیلې وویل زموږ توان نشته چې له الله سره وجنګیږو توبه یې وایستله اویوازي خپل پور یې څني واخیست.[1]

---

[1] - البحر المیحط ٢٣٧/٢.

تفسير:

﴿ اَلَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِيْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ﴾ (هغه کسان چې خوري سود (له خلکو) نه پاڅيږي دوی (دقيامت په ورځ) مګر (پاڅيږي داسې) لکه چې پاڅيږي هغه څوک چې شيطان يې حواس خراب کړې وي له خپله اثره ) يعني هغه کسان چې سود خوري او دخلکو وينې څبيښي نو دقيامت په ورځ به له خپلو قبرونو داسې پاڅي لکه چې پيرياني ليوني پورته کيږي او لوېږي به، سم به نشي تلای په يوه بله خوا به رنګيږي ، دوی به پداسې فضاحت او شرمندګۍ کې دمحشر خلک ويني. ﴿ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا اِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا ﴾ (دا په سبب ددې چې دوی ويل چې بيشکه داخبره ده چې تجارت خو هم داسې دی (په جواز کې) لکه سود ) يعني ددوی دغه شان پاڅيدنه ددې په سبب دی چې دوی دالله جل جلاله حرام ته حلال ويل او هغه داچې دوی سود او سوداګري دواړه يو ډول بللي نو ولې حرام شي؟ الله ددوی په رد کې فرمايي: ﴿ وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ﴾ (حال داچې حلال کړی دی الله تجارت او حرام کړی يې دی سود ) يعني الله سوداګري روا کړي چې په هغه کې دمنافعو تبادله دی او سود يې ځکه ناروا کړی چې په هغه کې دفرد او ټولنې ضرر دی ځکه دپور وړي له زيار او غوښنو څخه راپرې کيږي او پور ورکونکی يې وړي ﴿ فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا سَلَفَ ﴾ (پس هرڅوک چې راشي ده ته پندله (طرفه ) درب دده پس بيا منع شو (له سوده ) پس ده لري دي هغه شی چې پخوا يې اخيستي دی. ﴿ وَاَمْرُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ ﴾ (او معامله يې الله ته سپارلي ده ) که يې اراده شوه وبه يې بښي او که يې وغوښتل عذاب به ورکړي ﴿ وَمَنْ عَادَ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴾ (او هرڅوک چې بيرته وګرځيد (سود ته او حلال يې وګڼه ) نو دغه کسان څښتنان ددوزخ دي چې دوی به پدې اور کې تل وي، يعني هغه څوک چې بيايې دسود کاروبار ته مخه کړه اود الله جل جلاله له تحريم نه وروسته يې بيا حلال وګڼل دوی به تل تر تله ددوزخ په اور کې وي. ﴿ يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ ﴾ (ورک کوي الله (برکت) دسود او زياتوي (ثواب) دخيراتونو ) يعني الله تعالی دسود خير او ښيګڼه بيا يې که څه هم په ظاهر کې ډير څرګنديږي او دصدقاتو او خيراتونو مال زياتوي او وده ورکوي که څه هم په ښکاره توګه هغه نقصان معلوميږي. ﴿ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ ﴾ (او الله دوستي نه کوي له هر سخت کافر ګنهګار سره ) يعني الله جل جلاله هغه دکفور زړه خاوند چې ناشکره او دحرامو حلالونکی وي) نه خوښوي چې قول او فعل (کړه ، وړه ) يې له ګناه نه ډک وي په آيت شريف کې دربا (سود ) په هکله تغليظ دي او ددې خبرتيا ورکوي چې داعمل دکفارو دی. بيا الله (جل جلاله ) دفرمان منونکو مؤمنانو مدح کوي کوم چې لمنځونه دروي او زکاتونه ورکوي. فرمايي: ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ ﴾ (بيشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کوي دوی ښه عملونه او قائموي دوی (سم اداء کوي سره له ټولو حقوقو په ترتيب) لمونځ او ورکوي دوی زکات، ﴿ لَهُمْ اَجْرُهُمْ

عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ (شته دوی لره ثواب ددوی په نزد درب ددوی او نشته هیڅ (ډول) ویره په دوی او نه به دوی (هیڅکله) غمجن کیږي (دثواب په نقصان سره) یعني دوی لره په جنت کې بشپړ ثواب دی دقیامت په ورځ به هیڅ ویره وربانديې نه وي او نه به هم ددنیا په پاتې کیدلو خواشیني کیږي. ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَذَرُواْ مَا بَقِيَ مِنَ ٱلرِّبَوٰٓاْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ (ای هغو کسانو! چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو!) ووېرېږئ له الله نه او پرېږدئ هغه دسود پاتې شوني که تاسې مؤمنان یاست) یعني له الله څخه ووېرېږئ او دهغه څارنه په خپلو ټولو عملونو کې په یاد ولرئ او هغه دسود پاتی چې په خلکو لرئ، پرېږدئ که رښتوني او په حق مؤمنان یاست. ﴿ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُواْ فَأْذَنُواْ بِحَرْبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ (پس که ونکړ تاسې (داکار) نو اګاه شئ (ځان تیار کړئ) تاسې په جنګ له (طرفه د) الله او رسول دده، یعني که تاسو دسود کاروبار نه پرېښود نو دالله او دهغه درسول په جنګ باور ولرئ. ابن عباس رضی الله عنهم وایې چې سود خور ته به دقیامت په ورځ وویل شي: وسله دي دجنګ لپاره را واخلي ﴿ وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَٰلِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ ﴾ (او که توبه ګاره شوئ تاسې (له اخیستلو دسود څخه) نو شته تاسو لره اصل دمالونو ستاسې مه کوئ تاسې ظلم (چې سود به هم غواړئ) او نه دی ظلم کاوه شي پر تاسې (چې له راس المال څخه مو څه ستون او کم کړی شي) یعني که چیري مو له سود خوړلو توبه وایستله او سود مو پرېښود نو تاسې ته به خپل مال درکول کیږي نه به پکې څه زیاتوالی او نه تاوان وي. ﴿ وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ ﴾ (او که چیري پوروړی ناداره وو پر تاسې ده انتظار کول پوروړي ته تر وخته دپراخې د پوروړي) یعني که چیري قرض وړونکی بېوزله او ناداره وو نو تاسې به وخت ورکوئ تر څو چې یو څه ومومي هسې به نکوئ لکه دجاهلیت دوخت خلک پوروړي ته به یې ویل چې پور مي راکړه او که نه وي بیا یې سود او ګټه هم غواړم ﴿ وَأَن تَصَدَّقُواْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ (او داچې ببښنه وکړئ تاسې (پوروړي ته) خیر (ډیر بهتره) ده تاسې ته که یې تاسې چې پوهیږي (په هغه خیر) یعني که مو هغه پور یو مخ ایزه پوروړي ته وروبښل دا ډېر بهتر او دسخا کار دی که تاسې پوهیږي چې داکار خیر او ذکر جمیل دی او زیات اجر پکې شته وروسته بیا الله تعالی خپل بندګان دهغې ورځې له هیبت څخه ویروي چې هلته پرته له نیک عمل څخه هیڅ هم سري ته ګټه نه رسوي فرمایې: ﴿ وَٱتَّقُواْ يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى ٱللَّهِ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ (او ووېرېږئ (له عذابه) دهغې ورځې چې بیرته بیول کیږي تاسې په هغې کې طرف دالله ته بیا پوره ورکول شي هر نفس ته (جزا) دهغه عمل دده (چې ده خیر یا شر) کړي وي او په دوی به ظلم ونکړي شي، یعني دهغې ورځې څخه چې تاسو الله ته رجوع کوئ ووېرېږئ هلته چې هر چاته دخپلو اعمالو بشپړ حساب ورکول کیږي او په تاسو به هیڅ ظلم نه کاوه شي دغه آیتونه پدې مبارک جامع او مانع آیت شریف سره پای ته ورسیدل هغه چې دهغه له نزول سره سم وحې هم پای ته ورسیدله او داد قرآنکریم دنزول تر ټولو وروستنی آیت دی پدې کې بندګانو ته دقیامت دسختې ورځې څخه دویرې

یادونه شوي ده ، ابن کثیر وايي چي ددي آيت له نزول څخه نهه ورځي وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات او رحلت يې وفرمایه.

بلاغت:

۱- (انما البيع مثل الربوا) ، دلته هغه ډول تشبیه ده چي ورته (مقلوبه تشبیه) وايي او دا تر ټولو تشبيهاتو د تشبيه لوړ ډول دی ځکه چي مشبه يې د مشبه به پر ځای راوړي. او اصل په آيت کې داده چي وويل شي (الربا مثل البيع ) خو ددوی عقيده د ربوا او سود په حلال والي کې دومره پخه وه چي سود يې اصل ګرځولی او له هغه سره يې د بيعي (تجارت) تشبیه کړي ده.

۲- پدې کلام کې چي فرمايي: (احل الله البيع وحرم الربوا) د (احل ) او (حرم) ترمينځ د طباق صنعت دی او همدارنګه د (يمحق ) او (يربي) لفظونو ترمينځ.

۳- (فاذنوا بحرب ... ) پدې کلام کې تنکیر د تهويل لپاره دی يعني هسي ستر جنګ چي د هغه د ستر توب اندازه هيڅوک نشي لګولای دغه افاده ابو السعود کړي ده.

۴- (لاتظلمون ولاتظلمون) دلته د بديعي محسناتو څخه د (جناس ناقص) صنعت راغلی دی ځکه يوازې شکلي اختلاف موجود دی.

۵- پدې کلام کې چې فرمايي: (واتقوا يوما) ، تنکير د تضخيم او تهويل لپاره دی.

فوائد او ګټې:

لومړی ګټه: پدې کلام کې چي فرمايي :(ياكلون الربوا) له نفع اخيستلو څخه يې په خوړلو تعبير وفرمايل ځکه په منافعو کې غالباً خوراک وي او پدې کې ورکونکی اخيستونکی دواړه راځي ،حضرت جابر رضی الله عنه په يو حديث کې فرمايي: ( لعن رسول الله صلی الله عليه وسلم اكل الربوا، مؤكله وكاتبه وشاهديه ، وقال: هم سواء) يعني رسول الله صلی الله وسلم د سود په خوړونکي او وکيل نيونکي ،ليکونکي او دواړو شاهدانو لعنت ويلی او ويلي يې دي چي دوئ برابر دي.

دوهمه فائده: الله پاک سود خوړونکي له هغه چا سره تشبيه کړي چي پيريانو (شيطان) نيولي وي ځکه الله ددوی په نسونو کې سود پړسولی او دوی درانه شوي چي پورته کيږي بيرته ځملي او غورځي او سعيد بن جبير وايي چې دغه د سود خوړونکي دقيامت په ورځ نښه او علامه ده.

دريمه فائده: داسلام شهيد سيدقطب رحمة الله عليه په خپل تفسير کې ددي آيت سره چې: (لايقومون الا كما يقوم الذي يتخبطه الشيطان من المس ) داسې ليکي: "دايوه ترهونکي حمله او يو ويرونکی انځور دی او هيڅ معنوي تهديد به دومره اغيزناک نه وي لکه چي دغه ژوندۍ مجسم تصوير هغه چې د شيطان لاس وروړي ليوني پورته کيدل دي زياتره تفسيرونه دغه پاڅيدل د قيامت دورځې په هکله بولي خو موږ همدغه حال ددغه لار ورکي (ګمراه) بشريت د مځکې په مخ وينو چې دا د(ربوي نظام) پايلي دي هغه عالم چي اوس موږ پکې اوسو داضطراب ، لالهاندتوب ، ويري او عصبي ،نفسياتي ناروغيو څخه ډک دي سره له دي چې مادي مدنيت خپل اوج ته رسيدلي دی او ټولي مادي

آسانتیاوي او سوکالي شته خو بیا هم نړۍ په جنګ او جګړو اخته ده او هره شیبه دیوې ورانونکي ستري جګړې شونتیا لیدل کیږي داعصابو شخړي او اضطراباتو هغه دناورین جګړې دلته او هلته رواني دي چې هیڅ پریکړون نلري "(۱) او دا ښه رایه ده.

**ځلورمه فائده:** بخاري له ابي هريرة رضی الله عنه څخه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (کان رجل یداین الناس فکان یقول لفتاه اذا اتیت معسراً فتجاوز عنه لعل الله ان یتجاوز عنا فلقی الله فتجاوز عنه(۲) )پخوا یو سړی وو چې خلکو ته به یې پور وکاوو او نوکرته یې ویل که چیري ناداره پوروړی وو هغه ته ښننه کوه ښایي الله موږ ته ښننه وکړي او کله چې وفات شو، الله ورته ښننه وکړه.

***

الله تعالی فرمایي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيۡنٍ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمّٗى فَٱكۡتُبُوهُۚ وَلۡيَكۡتُب بَّيۡنَكُمۡ كَاتِبُۢ بِٱلۡعَدۡلِۚ وَلَا يَأۡبَ كَاتِبٌ أَن يَكۡتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ ٱللَّهُۚ فَلۡيَكۡتُبۡ وَلۡيُمۡلِلِ ٱلَّذِي عَلَيۡهِ ٱلۡحَقُّ وَلۡيَتَّقِ ٱللَّهَ رَبَّهُۥ وَلَا يَبۡخَسۡ مِنۡهُ شَيۡـٔٗاۚ فَإِن كَانَ ٱلَّذِي عَلَيۡهِ ٱلۡحَقُّ سَفِيهًا أَوۡ ضَعِيفًا أَوۡ لَا يَسۡتَطِيعُ أَن يُمِلَّ هُوَ فَلۡيُمۡلِلۡ وَلِيُّهُۥ بِٱلۡعَدۡلِۚ وَٱسۡتَشۡهِدُواْ شَهِيدَيۡنِ مِن رِّجَالِكُمۡۖ فَإِن لَّمۡ يَكُونَا رَجُلَيۡنِ فَرَجُلٞ وَٱمۡرَأَتَانِ مِمَّن تَرۡضَوۡنَ مِنَ ٱلشُّهَدَآءِ أَن تَضِلَّ إِحۡدَىٰهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحۡدَىٰهُمَا ٱلۡأُخۡرَىٰۚ وَلَا يَأۡبَ ٱلشُّهَدَآءُ إِذَا مَا دُعُواْۚ وَلَا تَسۡـَٔمُوٓاْ أَن تَكۡتُبُوهُ صَغِيرًا أَوۡ كَبِيرًا إِلَىٰٓ أَجَلِهِۦۚ ذَٰلِكُمۡ أَقۡسَطُ عِندَ ٱللَّهِ وَأَقۡوَمُ لِلشَّهَٰدَةِ وَأَدۡنَىٰٓ أَلَّا تَرۡتَابُوٓاْ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً حَاضِرَةٗ تُدِيرُونَهَا بَيۡنَكُمۡ فَلَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ أَلَّا تَكۡتُبُوهَاۗ وَأَشۡهِدُوٓاْ إِذَا تَبَايَعۡتُمۡۚ وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٞ وَلَا شَهِيدٞۚ وَإِن تَفۡعَلُواْ فَإِنَّهُۥ فُسُوقُۢ بِكُمۡۗ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۖ وَيُعَلِّمُكُمُ ٱللَّهُۗ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٞ (۲۸۲) ۞ وَإِن كُنتُمۡ عَلَىٰ سَفَرٖ وَلَمۡ تَجِدُواْ كَاتِبٗا فَرِهَٰنٞ مَّقۡبُوضَةٞۖ فَإِنۡ أَمِنَ بَعۡضُكُم بَعۡضٗا فَلۡيُؤَدِّ ٱلَّذِي ٱؤۡتُمِنَ أَمَٰنَتَهُۥ وَلۡيَتَّقِ ٱللَّهَ رَبَّهُۥۗ وَلَا تَكۡتُمُواْ ٱلشَّهَٰدَةَۚ وَمَن يَكۡتُمۡهَا فَإِنَّهُۥٓ ءَاثِمٞ قَلۡبُهُۥۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ عَلِيمٞ (۲۸۳) ﴾ البقرة: ۲۸۲ - ۲۸۳

مناسبت او تړاو:

کله چې الله سود او د هغه بدوالي ذکر کړ چې سود د پوروړي له غوښو او وینو څخه غوڅول دي او دا یو پلیت کسب دی چې اسلام څني کرکه کوي او حرام یې ګڼي ورپسې یې قرض حسن رااووړ هغه چې

---

۱ - فی ظلال القرآن ۸۲/۳.

۲ - وګوره زموږ کتاب روائع البیان ۳۸۹/۱ هغه بحث چې د سود په تحریم کې راغلی دی او د شریعت حکمت بیانوي

کېږه او سود پکې نه وي او په ځانګړې توګه بې د پور سوداګري ، ګروي احکام بې په ترڅ کې راوړي چې داتولې لاري چارې د مال دزياتوالي لپاره ګټوري او له شرافت څخه ډکې دي .په دوی کې دفرد او ټولنې (صلاح مصلحت ) او ښيګڼې خوندي دي. دغه دمداينت آيت شريف دقرآن کريم تر ټولو آيتونو ستر آيت دی چې دغه ګواکې د اسلام مقدس دين هغه پاملرنه ښيې چې د اقتصادي نظام په هکله يې لري.

## لغتونه:

(وليملل) له املاء څخه اخيستل شوی او ليکونکې ته دويلو په معنی ده . (يبخس) له بخس څخه اخيستل شوی او نقص ته وايي. (تسئموا) سآم خفګان ته وايي. (اقسط)عادلانه تر (قسط) دقاف په کسره سره عدل ته وايي لکه چې (اقسط الرجل) ووايې هلته چې عدل وکړي او دقاف په فتحه سره بيا ظلم ته وايي څکه الله جل جلاله فرمايي:(واما القاسطون فكانوا لجهنم حطبا) (تضل) ابوعبيد وايي چې د (تضل) معنی نسيان او هيره دی چې دلته دشهادت ديو څه جزء دهيرولو په معنی دی.( ادنی ) ډير نژدی.(ترتابوا) له ريب څخه اخيستل شوی شک کولو ته وايي( فرهان )له رهن څخه اخيستل شوی او هغه څيز ته ويل کيږي چې پور وړي ئې پور ورکونکي ته دپور دکره کولو (توثيق) لپاره ګرو ورکوي

## تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيۡنٍ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَٱكۡتُبُوهُۚ ﴾ (ای هغو کسانو چې ايمان مو راوړی (ای مؤمنانو !) کله چې له يو بل سره په پور معامله کوئ تاسي تر ټاکلې مودې پوري، نو وليکئ تاسي هغه (پور- قرض) او دغه دالله جل جلاله له لوري خپلو بندګانو ته ارشاد دی تر څو هغه معاملات چې وخت او موده پکې وي ، وليکي څکه دغه بيا ښه په ياد او ټينګ معلوم وي وخت او اندازه دپور به څرګنده وي ﴿ وَلۡيَكۡتُب بَّيۡنَكُمۡ كَاتِبُۢ بِٱلۡعَدۡلِۚ ﴾ (او ودي ليکي (کاغذ دپور) په مينځ ستاسي کې يو کاتب په عدل (انصاف سره نه کم او نه زيات) يعني هسې ليکونکی چې هغه عادل او مامون وي ديو لوري هم نکوی دغه ستاسو معامله دي وليکي. ﴿ وَلَا يَأۡبَ كَاتِبٌ أَن يَكۡتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ ٱللَّهُۚ فَلۡيَكۡتُبۡ ﴾ (او منع دي نه راوړي هيڅ يو کاتب (ددې کاغذ ) له ليکلو څخه هغسې چې الله ده ته ښوونه کړي نو ودي ليکي. ﴿ وَلۡيُمۡلِلِ ٱلَّذِي عَلَيۡهِ ٱلۡحَقُّ ﴾ (يعني پوروړی دی ليکونکي ته دليکلو لپاره بيان وکړي چې پر ده باندي حق دی ) ﴿ وَلۡيَتَّقِ ٱللَّهَ رَبَّهُۥ وَلَا يَبۡخَسۡ مِنۡهُ شَيۡـٔٗاۚ ﴾ ( او ودي ويريږي (کاتب) له الله نه چې رب دده دی او نه دي کموي له هغه حقه هيڅ شي ) ﴿ فَإِن كَانَ ٱلَّذِي عَلَيۡهِ ٱلۡحَقُّ سَفِيهًا أَوۡ ضَعِيفًا ﴾ (پس که هغه څوک چې پرده باندي حق دی (کم عقل ) (مبذر) او يا ضعيف لکه ووړ (کوچنی) يا ډير زوړ (بوډا) وی. ﴿ أَوۡ لَا يَسۡتَطِيعُ أَن يُمِلَّ هُوَ فَلۡيُمۡلِلۡ وَلِيُّهُۥ بِٱلۡعَدۡلِۚ ﴾ (يايې توان نه وي چې بيان وکړي (چې ګونګ وي يا دليکونکي په ژبه نه پوهيږي) نو بيان دي وکړي ولي (واکدار) دده په عدل (انصاف ) سره چې سمه خبره

ووايي نه كمه نه زياته . ﴿ وَٱسْتَشْهِدُواْ شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ ﴾ (اوشاهد ونيسئ تاسي په خپلو معاملاتو كې دوه شاهدان له سړيو ستاسي څخه (چې مسلمانان ، عاقلان ، بالغان او اصيلان وي) ترڅو دا په توثيق كې لازياتوالى راوړي ﴿ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَٱمْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ ٱلشُّهَدَآءِ ﴾ (پس كه نه وو دوه نارينه (شاهدان) نو يوسړى دي وي او دوې ښځې له هغو كسانو چې تاسي ترې راضي ياست د (عدالت له كبله) له شاهدانو. ﴿ أَن تَضِلَّ إِحْدَىٰهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَىٰهُمَا ٱلْأُخْرَىٰ ﴾ (د ښځو دا تعدد ددي لپاره دى كه هيره كړي (داشاهدي) يو ه له دوى دواړو نه نو ورپه ياد به كړي هغه يوه له دي دواړو (چې ورپه ياد وي) هغې بلې ته او همدا دوه والي دوجوب علت دى څكه په دوى كې هيره زياته وي.

﴿ وَلَا يَأْبَ ٱلشُّهَدَآءُ إِذَا مَا دُعُواْ ﴾ (او نه دي منع راوړي شاهدان كله چې وبلل شي دوى شاهدي ته ) يعني شاهدان دي دشاهدې له وركولو او يا له منلو او تحمل څخه منع نكوي. ﴿ وَلَا تَسْـَٔمُوٓاْ أَن تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰٓ أَجَلِهِۦ ﴾ (او مه خوابدي كيږئ (اى معامله دارانو ) له دي چې وليكئ دا حق كه ) لږ وي كه ډيروي تر نيتې دهغې پورې ﴿ ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ عِندَ ٱللَّهِ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَٰدَةِ وَأَدْنَىٰٓ أَلَّا تَرْتَابُوٓاْ ﴾ دا (ليكل ) ستاسې پوره عدل دى په نزد دالله او ښه مرسته كونكى او ډيرمحكم دى دپاره (داداء د شاهدي) او ډير نژدې دى دي ته چې شكمن نه شي تاسي (ددې معاملې په نيته او مقدار كې ) ﴿ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ ﴾ (مګر كه وي (دامعامله ستاسې ) تجارت په حضور (لاس په لاس) چې چلوئ يې تاسي (په راكړه ، وركړه سره ، پخپلو منځونو كې ) يعني كله چې بيعه لاس په لاس او ثمن يې اخيستل شوى وي. ﴿ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَلَّا تَكْتُبُوهَا ﴾ (پس نشته پر تاسې هيڅ ګناه چې ونه ليكئ تاسي (دامعامله) څكه محذور نشته ﴿ وَأَشْهِدُوٓاْ إِذَا تَبَايَعْتُمْ ﴾ (او شاهدان ونيسي تاسي كله چې يو له بل سره پلورل يا پيرودل كوي تاسي ) يعني تاسي هر وخت كه بيع جايزه وي او كه په پور ، شاهدان نيسي څكه دا له اختلاف څخه ژغورندوئ وي ﴿ وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَلَا شَهِيدٌ ﴾ او ضرر دي نه رسوي ،كاتب او يا شاهد ته ). ﴿ وَإِن تَفْعَلُواْ فَإِنَّهُۥ فُسُوقٌۢ بِكُمْ ﴾ ( او كه وكړ تاسي (داكار د ضرر رسولو ) نو بيشكه داګناه ده په تاسي پورې (ترلې) يعني كه تاسو هغه څه وكړل چې څنې منع شوى ياست نو دالله له طاعت څخه مو سرغړونه وكړه . ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَيُعَلِّمُكُمُ ٱللَّهُ ﴾ (او وويريږئ له الله نه او ښوونه د (احكامو ) كوئ تاسي ته الله ) يعني له الله نه وويريږئ او خارنه يې وكړي تر څو داسي علم دركړي چې د دنيا او آخرت نيكمرغي پكې وي. ﴿ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴾ (او الله په هرشي باندي ښه عالم دى دخلكو مصالح او عواقب دهر څيز ورته ښه معلوم دي. ﴿ وَإِن كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُواْ كَاتِبًا فَرِهَٰنٌ

مَّقْبُوضَةٌ ﴾ (او که وي تاسي په سفر باندي او پيدا مو نکړ کوم کاتب نو (واخلئ) ګروي قبض کړي شوي يعني دحق خاوند دي تر لاسه کړي ترڅو يې دپور لپاره توثيق وي. ﴿ فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُم بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ ٱلَّذِى ٱؤْتُمِنَ أَمَٰنَتَهُۥ وَلْيَتَّقِ ٱللَّهَ رَبَّهُۥ ﴾ (پس که امين وګڼل ځينو ستاسي ځيني نور (چي ګروي يې وانه خيستله) نو اداء دي کړي هغه څوک چې امين ګرځولي شوی وي امانت دده (دپور ورکونکي) او ودي ويريږي له الله څخه چې رب دده ده. يعني که پور ورکونکی له پوروړي څخه ګروي وانه اخستله چي امين يې وباله نو پوروړي دي هم دپور دخاوند حق پوره ادا کړي او له خپل پروردګار څخه دي وويريږي دامانت حقوق دي پرځاى کړي ﴿ وَلَا تَكْتُمُوا۟ ٱلشَّهَٰدَةَ ۚ وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُۥٓ ءَاثِمٌ قَلْبُهُۥ ﴾ (او مه پټوئ شهادت او هر څا چي پټه کړه داشاهدي نو بيشکه دی ګنهکار دی زړه دده) چي دزړه خاوند فاجر او زړه يې څکه ځانګړی کړ چې هغه دنورو اندامونو باچا دی کله چي زړه سم وي ټول اندامونه او غړي سم وي او چي فاسد شي ټول بدن ورسره فاسديږي. ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ﴾ (او الله په هغو کارونو چې تاسي يې کوئ ښه عالم دی) يعني دبندګانو هيڅ عمل او فعل ځنې پټ نه دی.

## بلاغت:

۱- پدي آيت شريف دفصاحت ډير ډولونه شته چي يو يې (جناس مغاير) دی او هغه پدي کلماتو کې (تداينتم بدين) او (استشهدوا شهيدين) بل په (اوتمن امانته) او په (يعلمکم ... او عليم) کې راغلي دي.

۲- دطباق صنعت چې پدې کلام کې: (صغيرا او کبيراً) او په (ان تضل ...او تذکر) کښې راغلی څکه دلته ضلال دنسيان او هيري په معنا دی.

۳- همدارنګه په آيت شريف کې داطناب صنعت راغلی چې فرمايي: (فاکتبوه وليکتب بينکم کاتب بالعدل ولاياب کاتب) او همدا راز (فيملل الذي عليه الحق ....فان کان الذي عليه الحق) او دغسي په (ان تضل احداهما فتذکر احداهما الاخرى) کلام کښې اطناب دی

۴-(ايجاز بالحذف) چې دا ډير ځله راغلي او مثالونه يې (البحر المحيط) مؤلف راوړي دي.

۵- دالله جل جلاله لفظ په دريو جملو کې مکرر راغلی دی چي (واتقوا الله) او (ويعلمکم الله) او (والله بکل شئ عليم) چې دلته په زړونو کې دروعت او هيبت اچولو لپاره دي

۶- پدې کلام کې چې فرمايي: (وليتق الله ربه) دلته جمع راغلي په مينځ داسم جليل او نعت جميل کې او فائده يې دتحذير په هکله مبالغه دی.

فائده:

علم په دوه ډوله ده: کسبي او وهبي. لومړی ډول هغه علم دی چې زده کول یې په زیار، تحصیل او مذاکره پورې اړه لري او دوهم ډول یې هغه دی چې دتقوی او صالح اعمالو دکولو په نتیجه کې ترلاسه کیږي لکه چې الله تعالی فرمایي: (واتقوا الله ويعلمكم الله ) او دغه راز علم ته (لدني) علم هم وایي چې الله فرمايي: (وآتيناه من لدنا علما ) او دغه نافع علم دی چې الله جل جلاله یې هغو بندګانو ته وربښي چې متقین او پرهیزګاران وي، امام شافعي رحمه الله وایي:

شكوت الى وكيع سوء حفظي　　فارشدني الى ترك المعاصي

واخبرني بان العلم نور　　ونور الله لايهدى لعاصي

حضرت وکیع ته چې (سترعالم دی ) ما دهیري او نسیان شکایت وکړ، هغه د ګناهونو دپرېښودلو لاربښوونه راته وکړه.راته ویل یې چې علم نور او ځلا ده دالله پاک نور ګنهګارانو ته لاره نه مومي.

***

الله تعالی فرمایي:

﴿ لِّلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ۗ وَإِن تُبْدُوا۟ مَا فِىٓ أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُم بِهِ ٱللَّهُ ۖ فَيَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ ۗ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٨٤﴾ ءَامَنَ ٱلرَّسُولُ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِۦ وَٱلْمُؤْمِنُونَ ۚ كُلٌّ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَكُتُبِهِۦ وَرُسُلِهِۦ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِۦ ۚ وَقَالُوا۟ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۖ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ ٱلْمَصِيرُ ﴿٢٨٥﴾ لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا ٱكْتَسَبَتْ ۗ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ إِن نَّسِينَآ أَوْ أَخْطَأْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِۦ ۖ وَٱعْفُ عَنَّا وَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَآ ۚ أَنتَ مَوْلَىٰنَا فَٱنصُرْنَا عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٢٨٦﴾ ﴾ البقرة: ۲۸۴ - ۲۸۶

مناسبت او تړاو:

ددې سورت پای په دې آیتونو وشو ځکه چې په سورت کې د ډیرو تکالیفو لکه: لمونځ، زکات، قصاص، روژه، حج، جهاد، طلاق، عدت، دسوداګرۍ او سود، قرض او پور یادونه شوې ده نو له دې سره مناسب وو چې ددغو اوامرو درالیږونکي ذکر وشي، هغه چې دځمکې او آسمانونو خاوند دی او

هغه چې وغواړي هر څه په هر چا باندي لازمولای شي او داعمالو جزاء به په آخرت کې ورکول کيږي.نو دغه سورت پدې آيتونو سره پای ته رسول دوعيد او تهديد په توګه دي

## لغتونه:

(اصرا) اصر په لغت کې درونډ والي او شدت ته وايې ، نابغه داسي راوړی:سخت تکليفو ته ځکه اصر وويل شو چې هغه هم دخاوند اوږي درنوي، لکه چې څرنګه چې عهد ته اصر وايې ، ځکه هغه هم درونډ وي (طاقة) په يو څه باندي توان او قدرت ته وايې ، هسي ډول مصدر دی چې فعل يې ندی راغلی .(اعف عنا) عفو ،بخشش او له ګناه څخه تيريدلو ته وايې. (واغفرلنا) غفران دګناه پټولو او ورک کولو ته وايې.

## دنزول سبب:

کله چې دا آيت نازل شو چې : (وان تبدوا مافي انفسکم او تخفوه يحاسبکم به الله ) درسول الله صلی الله عليه وسلم په اصحابانو سخته شوه او درسول الله صلی عليه وسلم په خدمت کښي يې داسي عرض وکړ: کله چې الله تعالی موږ په اعمالو مکلف کړو چي هغه لمونځ ، روژه، زکات ، جهاد او صدقه ده موږ يې طاقت او توان درلود خو دا آيت زموږ په توان کې نه راځي ، رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل :ايا غواړئ لکه دپخوانيو اهل کتابو غوندي وواياست چي : (سمعنا وعصينا) داسې واياست چې (وامو اوريدل منو يې) يعنی (سمعنا واطعنا) کله چي دوی همدا وويل او ژبې يې ورباندي وڅرخيدي ، الله تعالی داسي آيت نازل کړ:(آمن الرسول بما انزل اليه من ربه والمؤمنون) او پخواني آيت الله تعالی منسوخ کړ ، داسي حکم نازل شو چې :( لايکلف الله نفساً الا وسعها لها ماکسبت وعليها ماالکتسبت ...)[1]

## تفسير:

﴿ لِّلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (خاص الله لره دی هرهغه څه چې په آسمانونو کې دی او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي ) يعني الله سبحانه دځمکي او آسمان دموجوداتو مالک او په هغوی خبردار دی ﴿ وَإِن تُبْدُوا۟ مَا فِىٓ أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُم بِهِ ٱللَّهُ ﴾ او که ښکاره کړي تاسي هغه (ارادې او بدنيتونه ) چې په زړونو ستاسې کې دي پټ کړي تاسي هغه حساب به وکړي له تاسي سره په هغه باندي الله ﴿ فَيَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ ۗ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ پس مغفرت کوي هغه چاته چې اراده يې شي او په عذابوي هغه خوک چې اراده وکړي (الله دعذابولويې) او الله په هر شي باندي ښه قادر

[1] - اخرجه مسلم وانظر اسباب النزول للواحدي ص ٥١

دی. هسې الله چې دهغه په کولو شوال نه کیږي او هغه له خلکو څخه دکولو پوښتنه کوي ﴿ ءَامَنَ الرَّسُولُ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِۦ وَالْمُؤْمِنُونَ ﴾ (تصدیق کړي دي رسول په هغه څخه چې نازل کړي شوي ده ته له (طرفه ) درب دده او مؤمنانو هم تصدیق او باور کړی دی) یعني محمد صلی الله علیه وسلم سره له مؤمنانو په نازل شوي قرآن اووحي تصدیق کړي دی. ﴿ كُلٌّ ءَامَنَ بِاللَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَكُتُبِهِۦ وَرُسُلِهِۦ ﴾ ټولو ددوي تصدیق (باور) کړی دی په الله باندي او په پرښتو دده او په کتابونو دده او په رسولانو دده) یعني نبي او دهغه پلویانو دالله په وحدانیت، پرښتو، کتابونو او رسولانو تصدیق کړي دی. ﴿ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِۦ ﴾ (پداسې حال کې چي وایې دوی ) فرق نه کوو په مینځ کې دهیڅ یو رسول له رسولانو دالله نه) یعني هسي نه کوو چي په یو چا ایمان راوړو او په ځینو کافران کیږو ، لکه چي یهودو او نصاراوو به کول بلکې په ټولو رسولانو ایمان راوړو ، تفریق یې نه کوو. ﴿ وَقَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ﴾ (او وایې دوی (مؤمنان ) چې واورېده موږ (پیغام ستا ) او قبول کړ موږ (حکم ستا ) ای ربه زموږ! تاته درتلل دي (دهرچا) یعنی الله موږ ستا بلنه ومنله ستا امر ته مو غاړه کښېښودله له تاڅخه دبښنې غوښتنه کوو چي زموږ ګناوې راوبښې او خاص تاته بیرته ستنیدل او رجوع شته. ﴿ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ نه کوي الله تکلیف پر هیچا مګر په اندازې دطاقت دده ﴿ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ﴾ (دی نفس لره (ثواب) دهغه عمل چي کړی یې دی او شته په ده باندي (وبال) دهغه عمل چي کړی یې ده) یعني هر چاچې دخیر عمل کړي ثواب ورکول کیږئ او چې دشر عمل یې کړی سزا به ورکولی شي. ﴿ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ إِن نَّسِينَآ أَوْ أَخْطَأْنَا ﴾ (ای ربه زموږ! مه نیسه موږ که هیر کړو (حکم ستا ) یا په خطا سره وکړو (ګناه) یعني تاسو په دعاکې داسي وایاست چې ای الله ! موږ ته عذاب مه راکوه په سبب دهغو ګناهونو چې په خطا او نسیان راڅخه څرګند شوي وي ﴿ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُۥ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِنَا ﴾ (ای ربه زموږ! او مه باروه په موږ دروند بار لکه چي بار کړی وو ، تادغه (بار) پر هغو کسانو باندي چي وو پخوا له موږ) یعنی ای ربه! موږ ته داسي شاقه تکالیف مه راکوه چې له کولو څخه یې عاجز یو او هغه شان چې په پخوانیو امتونو دي لورولي وو لکه دتوبې لپاره دځان وژل او یا دناپاکه جامې دپلیت ځای پریکول غوڅول ﴿ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِۦ ﴾ (ای ربه زموږ! او مه باوره په موږ باندي هغه (تکلیف) چې نه شته هیڅ طاقت موږ ته په هغه سره) یعني هسې تکالیف اوابتلاوې مه راکوه. ﴿ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَآ ﴾ (اومحوه کړه ګناهونه له موږ او مغفرت وکړه موږ ته او رحم وکړه په موږ باندي) یعني زموږ ګناهونه محوه او بدې هم پټې کړه او په محشر کې مو مه شرموه په موږ باندي رحمت ولوروه چې ستا رحمت هرڅه ته رسیدلی دی.

﴿أَنتَ مَوْلَىٰنَا فَٱنصُرْنَا عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ﴾ (هم ته يې مولا (پروردګار) زموږ نو مدد وکړي له موږ سره په قوم دکافرانو (باندي) يعني اى الله ! ته زموږ مرستندوى او داموږو متولى يې موږ مه ښويوي ، په کافرانو باندي هغوى چې ستا له وحدانيت څخه منکر ستا دين نه منونکى او ستا د پيغمبر تکذيب کوي برى را په برخه کړي ، روايت کاوه شي چې کله رسول الله صلى الله عليه وسلم داد عاګانې ولوستلي له هري يوې څخه وروسته ورته وويل شول چې وکول شول يعني ومنل شول

بلاغت:

١- په آيت شريف کې دبلاغت او فصاحت ډير خه شته چې له هغوى څخه يو (طباق) دى او هغه پدې قول دالله تعالى کې :(وان تبدوا ... او تخفوه) او همدارنګه و (يغفر) او (يعذب) ترمينځ لکه څرنګه چې معنوى (طباق) هم پکې راغلى او هغه د (کسبت) او (اکتسبت) دکلماتو ترمينځ څکه کسب په خير کې او اکتساب په شر کې استعماليږي.

٢- پدې آيت کې دجناس صنعت راغلى چې د (آمن) او (مؤمنون) ترمينځ واقع دى او دي ته جناس اشتقاق وايې.

٣- پدې قول دالله تعالى کې چې فرمايې: (لانفرق بين احد من رسله) اطناب دى.

٤- لکه څرنګه چې پدې کلام کې: (والمؤمنون) ايجاز بالحذف دى چې اصل يې داسې راځي: (والمؤمنون آمنوا بالله ورسله) او داسې په نورو ځايونو کې

فائدې او ګټې:

عبدالله بن مسعود رضى الله عنه وايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: څوک چې دشپې دوه دبقرې دسورت وروستنې آيتونه ولولي دهغه لپاره کفايت کوي دبخاري روايت ، او دمسلم په روايت کې راځي چې له آسمانه يوه پرښته راکوزه شوه ، رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغله ، ورته يې وويل:

زيرى په دوو (نورينو) سره چې له تا پرته هيڅ نبي ته پخوا ندي ورکول شوي يو فاتحه الکتاب او بل دبقرې سورت وروستنې آيتونه ،هيڅکله به ته کوم توری له دوي دواړو ،ونه لولي مګر تاته به درکول شي

دالله جل جلاله په مرسته دالبقرې دسورت تفسير بشپړ شو.

***

# دآل عمران سورت مدني او دوه سوه آيتونه لري

## دسورت په وړاندي:

دآل عمران سورت دمدني سورتونو له اوږدو ښخه يو دی او دغه مبارک سورت ددين په دوو مهمو رکنونو مشتمل دی ، اول يې عقيده او دالله جل جلاله په وحدانيت باندي د دلائلو او براهينو راوړل ، دوهم يې تشريع اوپه ځانګړې توګه هغه چي په جهاد في سبيل الله او غزاګانو پوري اړه لري . دلومړي رکن په هکله دالله دوحدانيت دثابتولو لپاره دنبوت دتصديق په باب دقرآن دکريم دريښتنولي په باره کې او همدارنګه په هغو شبهاتو او شکونو چي اهل کتابو داسلام ، قرآن او محمد صلی الله عليه وسلم په رسالت درلودل ، ردونه شوي دي. که دبقرې سورت داهل کتابو دلومړۍ ډلي (يهودو) په هکله خبرې کولې ددوی حقيقت يې ښکاره کاوو نيتونه او پټ اسرار يې راسپړل، دهغوی هغه پليتې او دوکې يې بيانولي نو آل عمران سورت بيا ددوهمې ډلي (نصاراوو) څخه غږيږي هغوی چي دحضرت مسيح په هکله يې شخړي کولي ، پرهغه يې دمعبودګومان کاوو . درسول الله صلی الله عليه وسلم استازي توب يې نه مانو ، له قرآن کريم څخه يې انکار کاوو ، تقريباً نيمايې سورت دهمدوی څخه خبرې کوي او پدې آيتونو کې په دوی باندي رد شوی چي څرنګه په ښکاره دلائلو او څرګندو براهينوشبهې او شکونه کوي په خاصه توګه بيا دحضرت مريمې او عيسی عليه السلام په باب او پدې ترڅ کې ځيني اشاري شوي او په يهودو تکونه هم شوي او مسلمانان ويرول شوي چي داهل کتابو له دوکو او دسيسو څخه باخبر واوسي او دوهم رکن بيا له شرعي احکامو لکه دحج فرضيت ، دجهاد فرضيت او يا لکه دسود تحريم او يا دزکات دنه ورکولو حکمونه بيانوي. همدا راز له غزاګانو څخه په تفصيل خبر راوړی لکه دبدر او احد غزا؛ او هغه سبقونه چي مسلمانانو له دې دوو غزاګانو څخه ترلاسه کړي دي ، په بدر کې بريالي شول او په احد کې يې ماتې وخوړه. ځکه درسول الله صلی الله عليه وسلم له امر څخه يې سرغړونه کړې وه او بيا وروسته له ماتې يې ددښمنانو کفارو او منافقينو له خوا ډيري دخواشينې او سپيتانې خبري واوريدې، نو الله تبارک وتعالی دوی ته دهمدې درس حکمت ته لارښوونه وکړه هغه داچي الله جل جلاله غوارې دمسلمانانو صفونه دپليتو زړونو له خاوندانو څخه پاک کړي خبيث او طيب سره بيل کړي لکه څرنګه چي آيتونه په تفصيل سره له نفاق او منافقينو غږيږي او دهغوی دريغ دمسلمانانو دهمت ماتولو په باب ښيې. بيا وروسته سورت دسوچ او فکر کولو په ارشاد پای ته رسيږي چي بايد دآسمانونو او ځمکې په ملکوت او په هغو شتو کې چي په خورا ښکلا او ابداع په عجيبه له اسرارو ډکو شيانو چي دحکمت خاوند خالق په وجود دلالت کوي ، فکر او تدبر وشي چي وروستنې آيت دجهاد او مجاهدينو په يادولو او هغوی ته ددغه ښائسته او شامل وصيت په کولو هغه چي خير او بريالیتوب پکې نغښتی دی ، پای ته رسيږي فرمايې: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱصۡبِرُواْ وَصَابِرُواْ وَرَابِطُواْ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ٢٠٠ ﴾

## دسورت فضیلت:

نواس بن سمعان وایي: ماله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واوریدل چي ویل یې: دقیامت په ورځ به قرآن او دهغه اهل هغه کسان چي وربانديې عمل یې کاوو راوستل شي چي ترمخ به یې سورة البقرة او آل عمران وي([1])

## دسورت نومول:

آل عمران یې ځکه بولي چي دهغې نیکمرغې کورنۍ چي (آل عمران) دمریمې پلار او هغه مریمه چي دعیسی علیه السلام مور وه کیسه پکې راغلې ده، هغه چي دالهي قدرت د مظاهرو تجلی پکې شته، کومه چي دمریم بتول او دهغې زوی حضرت عیسی الله علیه السلام دزیږیدلو په باب ده.

***

## الله تعالی فرمایي:

﴿ الٓمٓ ۝١ اللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلۡحَيُّ ٱلۡقَيُّومُ ۝٢ نَزَّلَ عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ بِٱلۡحَقِّ مُصَدِّقٗا لِّمَا بَيۡنَ يَدَيۡهِ وَأَنزَلَ ٱلتَّوۡرَىٰةَ وَٱلۡإِنجِيلَ
۝٣ مِن قَبۡلُ هُدٗى لِّلنَّاسِ وَأَنزَلَ ٱلۡفُرۡقَانَۗ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ لَهُمۡ عَذَابٞ شَدِيدٞۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٞ ذُو ٱنتِقَامٍ ۝٤ إِنَّ ٱللَّهَ لَا
يَخۡفَىٰ عَلَيۡهِ شَيۡءٞ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَا فِي ٱلسَّمَآءِ ۝٥ هُوَ ٱلَّذِي يُصَوِّرُكُمۡ فِي ٱلۡأَرۡحَامِ كَيۡفَ يَشَآءُۚ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلۡعَزِيزُ
ٱلۡحَكِيمُ ۝٦ هُوَ ٱلَّذِيٓ أَنزَلَ عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ مِنۡهُ ءَايَٰتٞ مُّحۡكَمَٰتٌ هُنَّ أُمُّ ٱلۡكِتَٰبِ وَأُخَرُ مُتَشَٰبِهَٰتٞۖ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمۡ زَيۡغٞ
فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَٰبَهَ مِنۡهُ ٱبۡتِغَآءَ ٱلۡفِتۡنَةِ وَٱبۡتِغَآءَ تَأۡوِيلِهِۦۖ وَمَا يَعۡلَمُ تَأۡوِيلَهُۥٓ إِلَّا ٱللَّهُۗ وَٱلرَّٰسِخُونَ فِي ٱلۡعِلۡمِ يَقُولُونَ ءَامَنَّا بِهِۦ كُلّٞ مِّنۡ
عِندِ رَبِّنَاۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُوْلُواْ ٱلۡأَلۡبَٰبِ ۝٧ رَبَّنَا لَا تُزِغۡ قُلُوبَنَا بَعۡدَ إِذۡ هَدَيۡتَنَا وَهَبۡ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحۡمَةًۚ إِنَّكَ أَنتَ ٱلۡوَهَّابُ ۝٨
رَبَّنَآ إِنَّكَ جَامِعُ ٱلنَّاسِ لِيَوۡمٖ لَّا رَيۡبَ فِيهِۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُخۡلِفُ ٱلۡمِيعَادَ ۝٩ ﴾ آل عمران۱-۹

## لغتونه:

(الحی) هغه تلپاتې ژوندي چي فنا او مرګ نلري (القیوم) دخلکو دامورو چلونکی. (یصورکم) له تصویر نه اخیستل شوی یعنې جوړوي صورتونه ستاسي یعنې څنګه چي غواړي هغسي مو پیدا کوي او پنځوي. (الارحام) درحم جمع ده او دجنین دپیدا کیدلو او جوړیدلو ځای ته وایي. (محکمات) محکم هغه ته وایي چي معنا یې ښرګنده وي قرطبي وایې چې: (محکم هغه ته وایې چي تأویل یې پیژندل شوی او تفسیر معنایې ښرګنده وي او متشابه هغه ته وایې چي هیڅا ته یې هم پرته له الله تعالی علم او پوهه نه وي لکه (مقطعات) چي دسورتونو په اوائلو کې راغلي دي او دا ترتولو ښه خبره ده چي پدې هکله شوي ده).([2]) (ام الکتاب) دکتاب اصل، اساس او دملاتیر. (زیغ) له حق څخه میلان ته وایې لکه زاغ، زیغا، یعني کوږ شو په کږیدلو سره. (تاویله) تاویل تفسیر ته او همدارنګه په اصل کې مرجع او مصیر ته وایې

---

[1] - اخرجه مسلم
[2] - القرطبي ۴/۱۹

لکه چي وايي: (آل الامر الی کذا) يعني وګرزيدو کار ودي ته. (والراسخون) رسوخ ديوشي ثبوت او په هغه کې تمکن ته وايي.

دنزول سبب يې:

دغه آيتونه دنجران دوفد په هکله چي هغوی شپيته کسان وو، نازل شوي دي. څوارلس يې مشران کسان او دري تنه يې لوړ رتبه اکابر چي ددوی امير (عبدالمسيح) او دهغه مشاور (ايهم) او بل (حارثه بن علقمة) ددوی عالم وو. رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلل او دغو دريو کسانو ورسره خبري وکړي کله به يې ويل چي: عيسی پخپله (الله) دی ځکه هغه به مړي راژوندي کول، کله به يې ويل چي: هغه دالله زوی (نعوذبالله من ذلک) دی ځکه هغه پلار نه درلود، کله به يې ويل چي هغه ددريو دريم (ثالث ثلاثة) دی، ځکه الله دجمع صيغه فرمايي: (فعلنا وقلنا) که چيري الله يو وای ويل به يې چي (فعلت و قلت) نو رسول الله صلی الله عليه وسلم دوی ته وويل: ايا تاسي نه پوهيږئ چي الله زموږ رب ژوندی او نه مري او عيسی مري دوی وويل: هو همداسې ده، بيا يې ورته وويل: ايا تاسو نه پوهيږئ چي زوی اورمرو خپل پلار ته مشابه وي، دوي وويل هو! رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: ايا تاسو نه پوهيږئ چي الله پروردګار يو شی محفوظ ساتي، څاري او رزق ورکوي، ايا عيسی هم داسې کولای شي؟ دوی وويل نه، رسول الله وويل: چي ايا تاسو نه پوهيږئ چي له الله جل جلاله څخه نه په ځمکه او نه په آسمانونو کې څه پټ شته؟ ايا عيسی له دي څخه خبر دی پرته له هغه چي الله علم ورکړي؟ دوی ويل نه! خبر ندی، بيايې وويل چي: ايا تاسو نه پوهيږئ چي زموږ رب نه څه خوري او نه څښي او نه انساني حاجت لري او عيسې به خوراک کاوو، څښاک به يې کاوو او انسانې حاجت يې درلود، دوی وويل هو! نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل څرنګه هسي کيدای شې چي لکه تاسو يې ګومان کړی دی، نو دوی پټه خوله شول، پرته له انکار څخه اعتراف يې نه کاوو بيا الله جل جلاله دسورت له پيل څخه ترڅو اتيا آيتونه پوري رانازل کړل[1]

تفسير:

﴿ الٓمٓ ﴾ دقرآن کريم اعجاز ته اشاره ده چي قرآنکريم له همدې تورو څخه جوړ شوی او دالبقرې سورت په پيل کې مو ذکر کړل. ﴿ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ (الله) چي دی نشته هيڅوک لائق دعبادت مګر هم دی دی) يعني نه له ده پرته بل رب (پروردګار) شته او نه هم معبود برحق ﴿ ٱلْحَىُّ ٱلْقَيُّومُ ﴾ (چي تل ژوندی په يو حال باقي قايم کامل تدبير والا دی) ﴿ نَزَّلَ عَلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ ﴾ (نازل کړي يې دی په تا باندي کتاب (قرآن) په حقه) په ربښتينو اخبارونو او واضحو دلائلو) ﴿ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ (حال داچي تصديق کونکي دي دهغو (کتابونو) چي پخوا له ده نه دي) ﴿ وَأَنزَلَ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ مِن قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ ﴾ (او نازل کړي دي تورات او انجيل پخوا له دي (قرآنه) لپاره دهدايت (دخلقو) يعني تر دي قرآن له مخه

[1] - الفخر الرازي ۱۷۵/۷ – ابن کثير ۲۸۸/۱.

يې دوه ستر کتابونه تورات او انجيل دبني اسرائيلو دهدايت او لارښوونې لپاره رالېږلي دي ﴿ وَأَنزَلَ ٱلْفُرْقَانَ ﴾ (او نازل کړي يې دی فرقان ) يعني هسې کتابونه چې دحق او باطل بېلونکي دي او چا بيا ويلي چې مراد له فرقان څخه قرآن کريم دی او دتعظيم دشان لپاره يې مکرر ذکر کړ.(١) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ ﴾ (بېشکه هغه کسان چې کافران شوي په آيتونو دالله سره) يعني انکاريې تري کړی او په باطل سره يې رد کړي دي. ﴿ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ﴾ (شته دوی لره عذاب سخت (په آخرت کې). ﴿ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ ذُو ٱنتِقَامٍ ﴾ (او الله ډير غالب (پخپل امر کې) او څښتن دانتقام (کسات ) دی (له هغو څخه چې څنې سرغړونه کوي ) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَخْفَىٰ عَلَيْهِ شَىْءٌ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فِى ٱلسَّمَآءِ ﴾ (بېشکه له الله پټ نه دي هيڅ شي په مځکه او نه په آسمان کې) يعني دهغه له علمه هيڅ هم پټ نه دي ، الله په ټول هغه چې په (کائناتو ) کې دي خبردار دی هيڅ هم څنې پټ نشته. ﴿ هُوَ ٱلَّذِى يُصَوِّرُكُمْ فِى ٱلْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَآءُ ﴾ (الله هغه ذات دی چې جوړوي صورتونه ستاسو په رحمو (دميندو ) کې په هر ډول چې اراده وکړي (دجوړولو يې ) يعنې نر يا ښځه ، ښکلی او بدرنګه ) ﴿ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ (نشته بل هيڅ لائق دعبادت مګر هم دی دی ډير غالب ښه تدبيروالا (څښتن دحکمت ) دی پخپل صنعت کې) يعنې پرته له هغه بل رب نشته هغه په وحدانيت او الوهيت کې منفرد دی پخپله پادشاهي کې غالب دی پخپل جوړښت او صنعت کې دحکمت خاوند دی.په آيت شريف کې په نصاراووباندي رد راغلی څکه دوی (دحضرت عيسی عليه السلام) دالوهيت دعوي کړي وه ، نو الله دوی ته تنبيه ورکړه چې الله په رحمونو کې صورتونه جوړوي او بل داچې حضرت عيسی عليه السلام په غيبو علم نه لري هغه لکه نور بندګان غوندي بنده دی. ﴿ هُوَ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ عَلَيْكَ ٱلْكِتَـٰبَ ﴾ (الله هغه ذات دی چې نازل کړي يې دی په تا (ای محمده ! ) کتاب (قرآن عظيم) ﴿ مِنْهُ ءَايَـٰتٌ مُّحْكَمَـٰتٌ هُنَّ أُمُّ ٱلْكِتَـٰبِ ﴾ (چې ځيني له ده څخه ايات محکمات دي (چې معناوي يې ښکاره وي) لکه آياتونه دحلال او حرامو (دامحکم آيات ) اصل او ام الکتاب دی څکه چې بنسټ دي ﴿ وَأُخَرُ مُتَشَـٰبِهَـٰتٌ ﴾ او نور (ځيني ايات) متشابهات دي (چې معنی يې معلومه نه وي) او ډيرو کسانو ته يې په دلالت کې اشتباه وي که څوک همدا متشابه هغه واضح او محکم ته رد کړي نولاره يې ومونده او که يې عکس وکړ ګمراه شو ، څکه الله فرمايي: ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَـٰبَهَ مِنْهُ ﴾ (نو هغه کسان چې په زړونو ددوی کې کوږوالي دی پس پيروي کوي دوی دهغو (کلماتو ) چې متشابه وي له دي

---

١- دغه قول دقتاده او ربيع ده ، ابن جرير داغوره بولي چې فرقان په معنی دبېلونکي دحق او باطل يعني ګمراهي او هدايت دی څکه دقرآن ذکر پخوا لا وشو.

(قرآنه) يعنې پخپله هوا او هوس يې تفسير کوي ﴿ ٱبْتِغَآءَ ٱلْفِتْنَةِ وَٱبْتِغَآءَ تَأْوِيلِهِۦ ﴾ (لپاره دطلب دفتنې (او ګمراهې) او لپاره دطلب دمعنا دهغو ) يعنې دي خلکو ته په دين کې فتنه غوارې او دخپلو خواهشاتو سره سم دکلام الله تفسير کوي لکه چي ګمراه نصرانيانو دعيسى عليه السلام په باب دالله تعالى پدې قول دليل نيولى چي فرمايي :(وكلمة القاها الى مريم وروح منه) (دوى وايي (نعوذبالله) چي عيسى دالله زوى او يايې جزء دی نو ئې دالوهيت دعوى کوي او هغه محکم قول چي الله فرمايي:(ان هو الا عبد انعمنا عليه ) (چي پدې ښرګند دلالت کوي چي حضرت عيسى دالله بنده او له پيغمبرانو څخه يو پيغمبر دی پرېږدي ) ﴿ وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُۥٓ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ (حال دا چي نه پوهيږي په حقيقي معنا او مطلب دهغه مګر الله جل جلاله). ﴿ وَٱلرَّٰسِخُونَ فِى ٱلْعِلْمِ يَقُولُونَ ءَامَنَّا بِهِۦ ﴾ (او هغه په علم کې پاخه کسان وايي چي موږ ايمان راوړی دی پدې چي په معنا يې نه پوهيږو په مثل (دايمان زموږ په محکم باندي) ﴿ كُلٌّ مِّنْ عِندِ رَبِّنَا ﴾ (داټول(محکم او متشابه) له طرفه درب زموږ دي ) ﴿ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ (او پند نه اخلي (په دي خو (پند اخلي ) خاوندان د عقلونو (روغو او ځلاندو). ﴿ رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا ﴾ وايي (دغه راسخون) اى ربه زموږ مه کږوه زړونه زموږ). ﴿ بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا ﴾ (وروسته له دي نه چي په سمه صافه لار دي برابر کړي يو، ستا دشريعت او ددين سمه سيخه لاره ) ﴿ وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً ﴾ او وبښه او عنايت وکړه موږ ته له نزده خپله رحمت، چي موږ ستا په حق دين باندي ټينګ کړي. ﴿ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْوَهَّابُ ﴾ (بيشکه دا ته هم ډير ښونکى يې (دعطاء او احسان ) . ﴿ رَبَّنَآ إِنَّكَ جَامِعُ ٱلنَّاسِ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ ﴾ (اى ربه ! زموږ بيشکه ته يوځاى کوونکى يې دمخلوقاتو (په محشر کې) چي دحساب په ورځ او هيڅ شک پکې نشته. ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُخْلِفُ ٱلْمِيعَادَ ﴾ (بيشکه چي الله نکوي مخالفت له وعدې خپلې نه ) يعنې ستا وعده حق دی او ته څنې نه اوړي لکه داقول دالله تعالى: ﴿ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ ۗ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ ٱللَّهِ حَدِيثًا ﴾ النساء: ۸۷

**بلاغت:**

۱- له قرآن کريم څخه يې په کتاب تعبير وفرمايل چي (نزل عليک الكتب) ، چي کتاب اسم جنس ترڅو دقرآنکريم په دې نورو آسماني کتابونو دکمال او لوړتيا ګواهې ورکړي نو دقرآن سره دابنايي چي په کتاب ونومول شي.

۲- پدې قول کې چي فرمايي:(لما بين يديه ) دلته له پخوانيو کتابونو څخه کنايه ده نو هغه چي پخوا تير شوي (بين يديه) يې وبلل څکه قرآنکريم خورا ښرګند او مشهور دی.

۳-وانزل الفرقان ، دلته عطف دعام په خاص باندی دی ځکه یو ځل یې دري سره کتابونه ځانګړي یاد کړل او وروسته یې ټول کتابونه چي شمول افاده کړي او خاصه پاملرنه یې وشي.

۴-پدې کلام کې چي فرمایي: (هن لم الکتاب ) شریف رضي وایي چي دغه استعاره ده او مراد ځنې داده چي دغه آیتونه دکتاب بنسټ او لکه دمور په مرتبه چي وي او لکه چي ټول قرآن ددي پلوي کوي او یا ورته پناه راوړي لکه چي اولاد مورته پناه راوړي. (۱)

۵-(والراسخون في العلم ) دغه استعاره ده او مراد ځنې هغه ټینګ عالمان دي رسوخ هغه ته وایي لکه چي یو دروند شي ښکته په مځکه کي دننه شي او داتردي چي ویلي یي واې (الثابتون في العلم ) خو را ابلغ ده.(۲)

## فوائد او ګټې:

لومړۍ فائده : امام مسلم له حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روایت کوي چي حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم داایت ولوست چي: (هو الذي انزل علیک الکتاب منه ایا ت محکمات هن لم الکتاب ولخر متشابهات) ... د آیت تر پایه او بیا یې وفرمایل : (اذا رایتم الذین یتبعون ماتشابه منه فاولئک الذین اسماهم الله فاحذروهم ).

یعني چي هغه کسان وویني چي پیروي کوي دمتشابهاتو (پخپله هوا اوهوس سره یي تفسیر کوي ) نو داهغه کسان دي چي الله نومولي دي پس تاسي ځنې وویریږئ.

دوهمه فائده : تر ټولو ښه معنا چي دمتشابه او محکم شوي داده چي محکم هغه ته وایې چي تاویل یې ځرګند معنا یې مفهومه ، او تفسیر یې واضح وي او متشابه بیا هغه دي چي علم یي الله دځان لپاره غوره کړي او بندګان وربانديِ نه پوهیږي او ځینو علماوو ویلي چي دالکه دقیامت دورځي علم ، یاجوج او ماجوج راوتل ، ددجال راتلل ، دعیسی علیه السلام راکوزیدل او دارنګه دسورتونو په پیل کي مقطعات توري. (۳)

دریمه فائده : پوښتنه کیږي قرآني آیتونه دوه ډوله دي، محکمات او متشابهات لکه چي دلته او هغه چي دهود په سورت کې راغلي او فرمایي: (کتلب احکمت آیاته ) ، ګواکې ټول قرآن کریم محکم دی او یا هغه چي څرنګه دزمر په سورت کې راځي (نزل احسن الحدیث کتاباً متشابهاً ) ګواکې چي قرآن ټول متشابه دی څرنګه ددي ترمینځ موافقت راځي؟ ځواب دا چي ددي آیتونو ترمنځ هیڅ تعارض نشته ،ځکه هر آیت خپله ځانګړې معنی لري، هلته چي فرمایي (احکمت ایاته ) معنا یې داده چي دا قرآن عبث نه دی، عیب پکې نشته. الفاظ یې فصیح او معنا یې صحیح ده او هلته چي فرمایي (کتاباً متشابهاً ) یعنې داچي ځینې یې له ځینو نورو سره په حسن او ښکلا کې مشابهت لري ځینې یې دځینو نورو آیتونو تصدیق کوي نو کوم تعارض نه راځي.

۱- تلخیص البیان ص ۱۷.
۲- تلخیص البیان ص ۱۷.
۳- القرطبي ۹/۴.

څلورمه فائده: امام بخاري له سعيد بن جبير رضی الله عنه څخه روايت کوي چي يو تن ابن عباس رضی الله عنهما ته وويل چي په قرآنکريم کې داسي څه لولم چي راته پکښې اختلاف ښکاري، ابن عباس رضی الله عنه ورته وويل هغه کوم دي؟ نو بيې ورته وويل چي دا قول دالله تعالی چي فرمايي (فلا انساب بينهم ولايتسالون )او داچي (واقبل بعضهم على بعض يتسالون ) بل دا قول دالله جل جلاله (ولا يكتمون الله حديثا) او داچي فرمايي (والله ربنا ما كنا مشركين ) څکه دوی دلته خپل حال له الله څخه پټ کړی. او همدارنګه په سورة (النازعات) کې الله تعالی دآسمانونو خلقت ترمځکې پخوا ذکر کوي او (فصلت) په سورت کې بيا دمځکې خلقت تر آسمانونو دمخه يادوي. او الله جل جلاله فرمايي:(وكان الله غفوراً رحيما) (وكان الله عزيزاً حكيما) (وكان الله سمعياً بصيرا) او دالکه چي پخوا وو او تير شوي وي، نو ابن عباس رضی الله عنهما په ځواب کې ورته وويل چي: (فلا انساب بينهم ) دادلومړۍ شپيلي په وخت کې (فصعق من في السموات ومن في الارض الا من شاء الله ) نو پدې وخت کې (فلا انساب بينهم ولايتسالون) وروسته بيا ددوهمې شپيلۍ په وخت کې (اقبل بعضهم على بعض يتسالون) او داقول چي فرمايي: (ماكنامشركين ) (ولايكتمون الله حديثا) څکه الله جل جلاله داخلاص دخاوندانو ګناهونه وربښي نو مشرکان وايي: راشئ چي موږ وواپو چي موږ مشرکان نه يو ، نو الله جل جلاله به يې په خوله مهر ووهي او اندامونه به ددوی اعمال ورته ووايي نو دلته معلومه شوه چي الله جل جلاله څخه خبر نه پټيږي او پدې وخت کې به کافران داسې هيله کوي ، کاشکې دوی مؤمنان وای. او الله جل جلاله مځکه په دوي ورځي کې پيدا کړي ، بيايې آسمان پيدا کړی اوه آسمانونه يې په دوي ورځي کې برابر کړي وروسته بيا الله جل جلاله مځکه ويره کړي او غوړولي ده. اوبه او وابنه يې څنې را ايستلي دي او غرونه ونې او شيلي يې په دوي ورځي کې تيار کړي لکه چي فرمايي: (والارض بعد ذلک دحاها) نو مځکه او ټولې هغه چي په مځکه کې دي په څلورو ورځي کې او آسمانونه په دوې ورځې پنځولې او داچي الله فرمايي: (وكان الله غفوراً رحيما) نو الله خپل ځان همداسې ستايي، معنا يې داده چي تل ترتله او هميشه به هم داسې وي ، افسوس ستا په حال ،په قرآن کې دي اختلاف درته ونه ايسي داټول دالله کلام او هغه دالله جل جلاله له لوري راغلی دی ، هيڅ اختلاف پکې نشته.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ ﴿١٠﴾ كَدَأْبِ
آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ ۗ وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿١١﴾ قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا سَتُغْلَبُونَ
وَتُحْشَرُونَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ ۚ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿١٢﴾ قَدْ كَانَ لَكُمْ آيَةٌ فِي فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا ۖ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ
وَأُخْرَىٰ كَافِرَةٌ يَرَوْنَهُم مِّثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ ۚ وَاللَّهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهِ مَن يَشَاءُ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّأُولِي
الْأَبْصَارِ ﴿١٣﴾ زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ

وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ذَٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاللَّهُ عِندَهُ حُسْنُ الْمَآبِ ﴿١٤﴾ قُلْ أَؤُنَبِّئُكُم
بِخَيْرٍ مِّن ذَٰلِكُمْ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَأَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَرِضْوَانٌ
مِّنَ اللَّهِ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿١٥﴾ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿١٦﴾
الصَّابِرِينَ وَالصَّادِقِينَ وَالْقَانِتِينَ وَالْمُنفِقِينَ وَالْمُسْتَغْفِرِينَ بِالْأَسْحَارِ ﴿١٧﴾ ﴾

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی دمسلمانانو ددعا او تضرع یادونه وکړه چي دوی له الله څخه غواړي چي په ایمان ثبات او ټینګار ورکړي نو بیا یې دکافرانو یاد راووړ چي ددوی بیا دخپل کفر لامل (سبب) دادی چي په وینا مغروره شوي دمالونو او لادونو کثرت غواړي خو دابه لکه چي په دنیا کې له دوی څخه څه نشي شړلای په هیڅ ډول هم دالله جل جلاله له عذابه څخه ددوی ژغورنه ونکړي او پدې باندي یې دبدر دغزا مثال راوړی کله چي درحمن لښکرې دشیطان له لښکرو سره مخامخ شوي، خو پایله (نتیجه) دکفارو ماتې او دمسلمانانو بری وو، سره له دې چي مسلمانان ډېر لږ وو او کفار خورا زیات؛ خو ددوی مالونو اولادونو ورته څه ګټه ونه رسوله بیا وروسته الله تعالی ددنیا شهوتونه او خوندونه هغه څه چي انسانان یې له بله دهغوی سیالي کوي ، بیانوي خو په پای کې یې پدې بشپړ وي چي هغه څه چي دالله په نزد موجود دي ، هغه دنیکانو لپاره غوره دي

## لغتونه:

(تغني) له اغنا څخه او دغه دفع کولو او یا نفع رسولو ته وایې. (وقود النار) وقود دوا وپه زیر ازوغي ته وایې چي وریاندي اور بلیږي یعنې دسوند مواد اوپه ضمه ( پیښ )سره اوربلولو ته وایې. (داب): عادت او شان ته وایې څکه که یو څوک په یو شان ډېره موده واوسي هغه یې عادت جوړ شي. (آية)علامي ته وایې. (فئة) ټولۍ او جماعت ته وایې خکه یې (فئة) بولي چي دشدت او ستونزو په وخت کې ورته رجوع کیږي (عبرة) پند اخستلو ته وایې له عبور څخه یې اشتقاق شوی او هغه تجاوز ته وایې نو اعتبار هم دجهل او ناپوهی له حالت څخه دعلم حالت ته تجاوز او تیرول دي( زين) : له تزيين څخه راغلی او تحسين ، تجميل یې معنی ده چي انسان ته څرګندیږي (الشهوات ) شهوت هغه څه ته وایې چي دانسان نفس یې غوښتنه کوي ، فعل یې (اشتهى ) او جمع یې (شهوات) راځي. (القناطير ) دقنطار جمع او هغه دمال لویې غوټې او یا ډېر مال ته وایې چي شمیرل یې ګران وي (المقنطرة) څوګونې دتاکید لپاره راغلي، لکه چي ووایې : (الوف مؤلفة) او یا (اضعاف مضاعفة) طبري وایی چي له فراء څخه روایت شوي چي هغه وایې :(قناطير ) دقنطار جمع ده او (مقنطرة ) دجمعې جمع ده ګواکې نه قنطاره یوه مقنطره ده([1]) (المسومة). علامه داره چي ښکلي منظر لري او نظرو راوړي او چا بیا ویلي چي (مسومه ) یعني ایل او تابع مجاهد او عکرمة وایې چي (مسومة ) هغه ښکلې (مطهمه) آسان دی یعني غټ سره توربخون

---

([1]) القرطبي ۴ /۱۳.

آسان به وی .(۱)(الماب): مرجع ته وایه شي لکه چي الله تعالی فرمایي: (ان الینا ایابهم) . (الاسحار) له سپیده چاوده یو څه دمخه وخت ته سحر وایي.

دنزول سبب:

کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم قریشو ته په بدر کي ماتي ورکړه او مدیني منوري ته راستون شو یهودان یي راټول کړل او ورته یي داسي وویل:

ای دیهودانو ټولګی ! پخوا تر دي ایمان راوړئ چي الله مو دقریشو په شان په ماتي محکوم کړي ،بیشکه تاسو پوهیږي زه رښتونی استازی یم ، دوی وویل: ای محمده ! ته پدي مغرور کیږه مه، چي یو څو تنه ناپوه قریش دي وژلي، هغوی چي دجنګ جګړي په چلونو نه پوهیدل په خدای قسم که ته له موږ سره وجنګیدي په دي به پوه شي چي موږ نارینه او ته زموږ په شان له خلکو سره مخامخ شوی نه یي، نو الله وفرمایل: قل للذي کفروا ستغلبون.(۲)

تفسیر:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَن تُغْنِىَ عَنْهُمْ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُهُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا ﴾ بیشکه هغه کسان چي کافران شوي دي له سره به دفع نکړي له دوی څني مالونه ددوی او نه اولادونه ددی (له عذابه) دالله نه هیڅ شي. ﴿ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمْ وَقُودُ ٱلنَّارِ ﴾ (او دا کسان هم دوی دي خس داور د دوزخ ) هغه چي وربانديِ اور بلیږي. ﴿ كَدَأْبِ ءَالِ فِرْعَوْنَ ﴾ (حال ددوی داسي دی ، لکه حال (عادت) دتابعانو دفرعون) یعني د کفارو کړه وړه او عادت دفرعونیانو د تابعانو په شان دی. ﴿ وَٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ ( او کله دهغو کسانو چي پخوا له دوی څني وو ) لکه قوم د هود ، صالح او شعیب علی نبینا وعلیهم الصلوة والسلام. ﴿ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا ﴾ (چي نسبت ددروغو به یي کاوو آیتونو زموږ ته ) هغه چي درسولانو په رسالت یي دلالت کاوو. ﴿ فَأَخَذَهُمُ ٱللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ ﴾ (ونیول دوی لره الله (په عذاب مهلک سره ) په سبب سره دګناهونو د دوی (له کفره ددوی) ﴿ وَٱللَّهُ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴾ ( او الله سخت دی عذاب دده ) او له آیت څخه غرض چي دقریشو کفار لکه پخواني کافران غوندي چي دفرعون تابعان او یا تر هغه دمخه وو داسي دي نو لکه چي هغوی ته خپلو مالونو او اولادونو ګټه ونه رسوله ، دوی ته یي هم نه رسوي ﴿ قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ (ووایه (ای محمده !) هغو کسانو ته چي کافران شوي دي ) یعني ووایه یهودانو او ټولو کافرانو ته ﴿ سَتُغْلَبُونَ ﴾ (ژر به مغلوب کړي شي تاسي (په دنیا کي ) ﴿ وَتُحْشَرُونَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ ﴾ (او جمع به کړی شي تاسي (ترلي به

(۱) تفسیر الرازي ۲۱۱/۷.

(۲) مختصر ابن کثیر ۲۲۸/۱ اسباب النزول.

شي په عقباکي ) دوزخ ته . ﴿ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴾ ( او بد ځای دهستوګنې دی دغه (دوزخ) چې تاسي به پکې هستوګنه کوئ) . ﴿ قَدْ كَانَ لَكُمْ ءَايَةٌ ﴾ (او په تحقيق سره دی تاسې ته لوی عبرت) يعنی ای يهودانو ! تاسو ته پند او موعظت دی . ﴿ فِي فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا ﴾ (په هغو دوو ډوليو کې چې سره مخامخ شوي دجنګ لپاره په بدر کې) ﴿ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ يوه فرقه ده چې جنګ يې کاوو په لاره دالله کې (دمؤمنانو ډولۍ) ، ﴿ وَأُخْرَىٰ كَافِرَةٌ ﴾ (او بله فرقه ده چې کافره وه ) دشيطان په لار کې جنګېدل او دا دقريشو کافران وو. ﴿ يَرَوْنَهُم مِّثْلَيْهِمْ ﴾ (ليدل به دوی هغو لره دوه چنده دهغوی) يعني کافرانو به مسلمانان داسي ليدل لکه چي دوی دوه چنده وي ﴿ رَأْيَ الْعَيْنِ ﴾ (په ليدلو دسترګو سره ) يعني په ظاهري کتلو او په سپينو سترګو نه داچي وهم او خيال به يې کاوو او چا بيا ويلي چي کافران وينې مسلمانان دوه چنده په عدد او شمير کې ځکه چي الله مؤمنان دکافرانو په سترګو کې زيات کړي چي خنې وويرېږي او له جنګ کولو څخه يې ږه شي خو لومړی قول دابن جرير غوره دی او هغه خورا ځرګند دی ځکه چي الله (رأی العين) فرمايلی يعني حقيقي رؤيت نه داچي خيال وي ﴿ وَاللَّهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهِ مَن يَشَاءُ ﴾ (او الله قوت ورکوي په نصرت خپل سره هرچا ته چي اراده وکړي . ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً ﴾ (بيشکه پدې (زيات او کم ليدلو کې ) خامخا عبرت دی ) ﴿ لِّأُولِي الْأَبْصَارِ ﴾ (لپاره دخاوندانو دبصيرت ) هغوی چي سالم عقلونه اومستقيم افکار لري (د آيت مغز داده چي په مادي قوت هيڅکله هم بری نه ترلاسه کيږي او نه هم په ډيرو سړو او ډيرو وسلو بلکې دالله جل جلاله په مرسته او تائيد بريالیتوب راځي ، لکه چي الله جل جلاله فرمايې: (ان ينصركم الله فلا غالب لكم) (آل عمران-۱۲۰ ) بيا الله تعالی دخلکو هغوی چي دفاني دنيا په شهوتونو غوليږي حال بيانوي ، فرمايې : ﴿ زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ ﴾ (ښائسته کړي شوي دي خلکو ته محبت دمرغوبو خوندورو شيانو چي ښځي دي) او پيل يې په ښځو وکړ ځکه چي فتنه سخته په دوی کې ده او په دوی باندي خوند اخيستل زيات دي په حديث شريف کې راځي (ماتركت فتنة اضر علی الرجال من النساء)(۱) مانه ده پريښي وروسته له خپله ځانه يوه فتنه چي زيات ضرر رسونکی وي نارينه وو ته له ښځو څخه ) او بيايې دهغه څه ذکر وفرمايل چي له دوی څخه زيږي ويې ويل : ﴿ وَالْبَنِينَ ﴾ او چي دوهم ځل يې راوړي ځکه اولادونه دزړه ميوه او دسترګو نور او يخوالی وي . چي ترمال ئې دمخه ذکر کړل ځکه دانسان مينه له اولاد سره تر مال زياته ده . ﴿ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ ﴾ ( او ډير مالونه چي راټول کړي شوي دي له سرو او سپينو زرو ) مال ځکه محبوب دی چي ډير شهوتونه په ده تر لاسه کيږي او سړی دمال په

(۱) اخرجه البخاري

راتولولو کې خطرونو ته هم لاس ورغزوي (وتحبون المال حبا جما ) او څرنګه چي سره او سپين زر په معاملاتو کي اړول را اړول کيږي څکه يې ځانګړي کړي. ﴿ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ ﴾ ( او ښائسته آسان) ﴿ وَالْأَنْعَامِ ﴾ (او نور چارپايان ) يعنې اوښ ،غوايي ،پسه څرنګه چي له هغوی څخه دسورلي،خوراک او زينت کار اخيستل کيږي . ﴿ وَالْحَرْثِ ﴾(او کښت چي په هغه کې دخوراکونو انواع راځي ) ﴿ ذَٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ﴾ (دغه فائده اخيستل دژوندون ددنيا دی) او هغه فاني او زائل زينت دی ﴿ وَاللَّهُ عِندَهُ حُسْنُ الْمَآبِ ﴾ ( او خاص دالله په نزد شته ښه ځای دورتلو چي جنت دی) ﴿ قُلْ أَؤُنَبِّئُكُم بِخَيْرٍ مِّن ذَٰلِكُمْ ﴾ (ووايه ای (محمده) دوی ته ايا خبر درکړم تاسي ته په بهتر له دغو نه ) يعني ايا زه تر دغو چي خلکو ته ښائسته شوي زائل شيان دي دښه شي خبر درکړم استفهام دتعزير لپاره دی. ﴿ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ﴾ (شته لپاره دهغو کسانو چي متقيان دي په نزد درب ددوی جنتونه چي بهيږي (لاندي له ونو او مانيو ) دهغوی ويالې) ﴿ خَالِدِينَ فِيهَا ﴾ (تل به وي په دې جنتو کې) ﴿ وَأَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ﴾ (او ښځې به وي ښې پاکې ) يعنې له حسي او معنوي ناپاکي او پليدي څخه به پاکي وي نه به حيض او نفاس او نه به هم وري او غتې متيازي لري او نه به هغه ستونزي لري کومې چي ددنيا ميرمنې يې لري ﴿ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ ﴾ او (رضامندي له جانبه دالله ) يعني دوی لره به لدي نعمتونو سره ،سره دالله جل جلاله رضوان وي څه ډول رضوان (؟) ! په حديث شريف کي راغلي : (احل عليكم رضواني فلا اسخط عليكم بعده ابدا ) داسې لويه رضامندي به درکړم چي له هغه وروسته به هيڅکله هم درته په قهر نشم. ﴿ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴾(او الله ښه ليدونکی دی دبندګانو) يعني پوه دی دبندګانو په حالاتو هر چاته له خپل استحقاق سره سم څه ورکوي بيا الله دهغو متقيانو صفات بيانوي هغه چي تل تر تله يې دنعمتونو په ځای ورکولو نازولي دي. وايې: ﴿ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا ﴾ (هغه (متقيان) چي وايې ای ربه زموږ! بيشکه موږ ايمان راوړی دی ) په تا او ستا په رسولانو. ﴿ فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴾ ( نو مغفرت وکړه موږ ته دګناهونو زموږ او وساته موږ له عذابه داور د دوزخ) يعني موږ ته پخپل فضل او مرحمت مغفرت وکړه او له اوره مو وژغوره. ﴿ الصَّابِرِينَ وَالصَّادِقِينَ وَالْقَانِتِينَ ﴾ (هسې (متقيان) چي صبر کونکی وي او صادقان دي او حکم منونکي دي (دحکم دالله ) يعني دوی په تکاليفو او بيوزليو کې صبر کوي او رينښتنې دي پخپل ايمان کې او په وخت د لقاء، او حکم په ځای راوړونکي دي په وخت دستونزو او خوښيو کې ﴿ وَالْمُنفِقِينَ ﴾

(او خيرات وركونكي دي) هغوى چي خپل مالونه د خير ښېګڼو په كارونو كې لګوي ﴿وَالْمُسْتَغْفِرِينَ بِالْأَسْحَارِ﴾ او مغفرت غوښتونكي دي د سهار په وخت كې هغه چي له سپيده چاود د مخه وخت دی.

بلاغت:

پدې كلام كې چي فرمايي: (من الله) ايجاز بالحذف او تقدير يې داده چي (من عذاب الله) او په (شيئا) كلمه كې تنكير د تقليل لپاره ده يعني لږ ګټه هم ورته نه رسوي او پدې كلام كې چي (و اولئک هم وقود النار) جمله اسميه ددې لپاره راوړل شوه چي دامر په ثبوت دلالت وكړي او هلته چي يې وفرمايل (كذبوا بآياتنا فاخذهم الله) په التفات مشتمل دی چي له غياب څخه يې حضورته راوړي اصل يې داوو چي (فاخذناهم). (لكم آية) په اصل كې (آية لكم) و او دلته يې تقديم ددې لپاره شوی چي پاملرنه (اعتنا) ورته وشي او مؤخر ته تشويق پيدا شي او دلته تنكير د تفخيم او تهويل لپاره دی يعني ستر او عظيم آيت او همدا راز تنكير په (رضوان من الله) كې او بيا په (يرونهم) او په (راى العين) كې د جناس اشتقاق موجود دی. په دې كلمه كې چي فرمايي: (حب الشهوات) مراد ځنې مشتهيات دي زمخشري وايي چي په شهواتو سره يې تعبير ځنې وفرمايل د مبالغې لپاره لكه چي هغه عيناً پخپله شهوات دي او بل په دي تنبيه راشي چي خساست پكې دي څكه حكماء وايي چي هرشهوت ستر ذلت (سپک او چټي) دی، پدې كلمه كې چي وايي: (بخير من ذلكم) (په خير كې ابهام د تفخيم لپاره) او داچي د پېژندلو په هكله يې ترغيب زيات شي. (للذين اتقوا عند ربهم) ابوالسعود وايي چي د ربوبيت عنوان سره له اضافته د متقينو ضمير ته راوړل ددې لپاره دی چي د زيات لطف او مهرباني څرګندونه وشي.[1] (القناطير المقنطرة) پدې كې بيا هغه بديعي محسنات دي چي ورته جناس ناقص وايي.

فوائد او ګټې:

لومړی فائده: څوک د شهوتونو ښائسته كونكی دی؟ څوک وايي چي شيطان، څكه الله فرمايي: (و زين لهم الشيطان اعمالهم) (او د شيطان كار ښائسته كول او وسوسه اچول او ښه څرګندول دي)، او څوک بيا وايي چي ښائسته كونكی الله جل جلاله دي دليل دا چي فرمايي: (انا جعلنا ما على الارض زينة لها لنبلوهم ايهم احسن عملا) (او د الله تزئين د ابتلا لپاره وي ترڅو د شهوت بنده د مولی له بنده څخه بيل شي. او د حضرت عمر رضى الله عنه د قول ظاهري معنا دا ده چي وايي: (اللهم لا صبرلنا على ما زينت لنا الا بک) يعني ای ربه ! د هغو څيزونو څخه چي تاراته ښائسته كړی موږ صبر نلرو مګر چي ته توان راكړې)[2]

دوهمه فائده: د سباون (سهار) ځانګړتيا په استغفار سره ددې لپاره شوې چي دعا په دې وخت كې د منلو لپاره خورا نژدې وي څكه نفس پاک وي، روح سپيڅلې او تږوله وي او عبادت كول ډېر ستونزمن

---

[1] - تفسير ابي السعود ٢٢٦/١.
[2] - رواه البخاري.

وي ،ځکه نو دعا اجابت ته خورا نژدې وي ، ابن کثیر وايي چې عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما به د شپې لمونځ کاوو او بیا به یې ویل: ای نافع ! ایا سهار دی که به هغه ورته وویل چې هو ! نو بیا به یې په دعا کولو پیل وکړ او استغفار به یې کاوو ترڅو به سپیدې وچاودي.(١)

***

الله تعالی فرمایي:

﴿ شَهِدَ اللَّهُ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ وَالْمَلَائِكَةُ وَأُولُو الْعِلْمِ قَائِمًا بِالْقِسْطِ ۚ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٨﴾ إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ ۗ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ۗ وَمَن يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿١٩﴾ فَإِنْ حَاجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ ۗ وَقُل لِّلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ أَأَسْلَمْتُمْ ۚ فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوا ۖ وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ ۗ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿٢٠﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢١﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٢٢﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُدْعَوْنَ إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ وَهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٢٣﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ ۖ وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾ فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنَاهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٥﴾ ﴾ آل عمران ۱۸ - ۲۵

مناسبت او تړاو:

کله چې الله د مؤمنانو ستاینه وکړه چې: **(الذین یقولون ربنا اننا آمنا)**، وروسته یې جوخت دا څرګنده کړه چې د ایمان دلیلونه په ښکاره توګه څرګند دي ویې فرمایل: **(شهدا لله انه لا اله الا هو)** بیا یې دا بیان کړه چې حق دین هغه چې د الله خوښ دی ، د اسلام دین دی او پیغمبر ته یې امر وکړ چې خپل انقیاد او غاړه ښودنه اعلان کړي د همدې دین لپاره. او وروسته یې بیا د ګمراهانو اهل کتابو هغه د دین په هکله د ستر اختلاف یادونه وکړه او دا چې د الله د حکم له منلو یې غاړه وغړوله.

لغتونه:

**(شهد)** شهادت اقرار او بیان ته وايي. **(قسط)** عدل. **(الدین)**: دین په اصلي لغت کې جزاء ته وايي او په ملت یې هم اطلاق راځي چې دلته همدا مراد دی. **(الاسلام)**: الاسلام په لغت کې غاړه ایښودلو او بشپړ تسلیم کیدلو (سپارلو) ته وايي. الانباري داسې وايي چې: د مسلم معنا دا ده چې د الله په عبادت کې مخلص دی لکه چې دوی وايي (سلم الشئ لفلان) یعنې خالص یې کړ، نو د اسلام معنا الله لره په دین او عقیده کې اخلاص ته وايي. **(حاجوک)** شخړه او جګړه کوي تا سره. **(غرهم)** تیر ایستلی. **(یفترون)** دوی درواغ وايي.

---

١- مختصر ابن کثیر ١/٢٧٧.

دنزول سبب:

کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدینه منوره کې میشت شو نو د شام له احبارو څخه دوه تنه ورته راغلل او رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په نعت او صفت وپیژاند نو یې ورته وویل ایا ته محمد یې ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل :هو ! بیا یې ورته وویل او ته احمد یې ، ورته یې وویل : هو ! نو دوی دواړو ورته وویل موږ ددې شاهدي غواړو ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل چي وپوښتئ ، نو دوی ورته وویل چي تر ټولو ستر شهادت په کتاب الله کې راوښیه نو دا آیت نازل شو : (شهدالله انه لا اله الا هو ) نو دوی دواړه مسلمانان شول او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په رسالت یې ایمان راووړ.[1]

تفسیر:

﴿ شَهِدَ ٱللَّهُ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ (شاهدي اداکړي الله د وحدانیت او د قدرت د آیتونو (دلائلو په اقامت خلکو ته ) پدې شان چي نشته هیڅ مستحق د عبادت مګر هم دی دی) یعني الله بیان کړي او خلکو ته ورښودلي چي الله واحد دی ، زمخشري وایې چي الله پخپل وحدانیت دلالت په بیان او ځرګندیدلو کې د شاهد له شاهدي سره مشابه وګڼل ﴿ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ وَأُو۟لُوا۟ ٱلْعِلْمِ ﴾ ( او شاهدي اداء کړی ده ، پرښتو او شاهدي اداکړې ده ، د علم خاوندانو ) په سبب د دلائلو د خلقت او بدیع صنعت دده . ﴿ قَآئِمَۢا بِٱلْقِسْطِ ﴾ (پدې حال کې چي ثابت دی (الله او حکم یې په عدل سره ).په هغه څه کې چي ویشي رزقونه د خلکو او اجلونه د دوی ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ نشته هیڅ مستحق د عبادت مګر هم دی دی. ﴿ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ (ښه غالب حکمت والا دی.) غالب په خپله پاچهۍ کې او حکمت والا په خپل صنعت کې. ﴿ إِنَّ ٱلدِّينَ عِندَ ٱللَّهِ ٱلْإِسْلَٰمُ ﴾ (بیشکه دین غوره شوی ، په نزد د الله دین د اسلام دی) او بل هیڅ دین الله نه خوښوي.

﴿ وَمَا ٱخْتَلَفَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ إِلَّا مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ ٱلْعِلْمُ ﴾ (او اختلاف ندی کړی هغو کسانو چي ورکړي شوي دي دوی ته کتاب چي (یهود او نصارا دی) مګر وروسته له هغه چي راغی دوی ته علم) یعني یهودانو او نصرانیانو د توحید او محمدي نبوت په هکله تر هغو کوم اختلاف نه درلود ترڅو په ځرګندو دلائلو او روښانه حقایقو ورته معلومه شوه چي داحق دی نو دوی کفر د اشتباه او ناپوهی له امله نه وو بلکې سره له پوهې د عناد او استکبار په سبب یې اختلاف پیل کړ او د هغې ډلي څخه دی چي سره له پوهې ګمراهی ته ملا تړي. ﴿ بَغْيَۢا بَيْنَهُمْ ﴾ (په سبب د ضد ، حسد ، کینې چي وو په مینځ د دوي کې ) چي دوی یې د ریاست د مینې لپاره هڅولي وو. ﴿ وَمَن يَكْفُرْ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ فَإِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ﴾ (او هرڅوک چي کافر کیږي (انکار کوي) په آیتونو د الله ، پس بیشکه الله ډیر ژر حساب والا دی) یعني څوک چي د الله په آیتونو کافر کیږي ژر به الله ته ورشي او الله به دده د کفر په سبب دي ډیر ژر په سزا

[1] - القرطبي ۴/ ۴۷.

ورسوي ﴿ فَإِنْ حَآجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِىَ لِلَّهِ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِ ﴾ پس كه بيا جگړه كوئ دا (كافران) له تاسره پس وو وايه (اى محمده !) دوى ته چي ما خالص تسليم كړي دى مخ خپل الله ته او هر هغه چي زما متابعت كوي ) يعنې كه بيايې هم له تاسره ددين په شان كې جگړه كوله (اى محمده !) نو ته ورته ووايه چې زه دالله بنده يم خپل ځان مې په بشپړه توگه هغه ته سپارلى او عبادت خالص يوازې دهغه كوم، شريک ، سيال ، ميرمن او ذوذات نلري ، زه او زما پلويان داسلام په دين او دالله جل جلاله دامر منونكي يو ﴿ وَقُل لِّلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْأُمِّيِّـۧنَ ﴾ (او ووايه (اى محمده !) هغو كسانو ته چي وركړل شوي دي ورته كتاب او ناپوهانو (عربي مشركانو )ته ) يعني يهودانو ، نصرانيانو او دعربو بت پرستانو ته ووايه ﴿ ءَأَسْلَمْتُمْ ﴾ (ايا اسلام راوړئ تاسي؟) او يا پخپل كفر پاتې ياست په تحقيق سره تاسو ته هغه څه راغلل چي ستاسي داسلام راوړل لازموي ﴿ فَإِنْ أَسْلَمُوا۟ فَقَدِ ٱهْتَدَوا۟ ﴾ (پس كه اسلام راوړ دوى پس په تحقيق چي وموندله دوى سمه صافه لاره ) ځانونو ته يې گټه ورسوله له گمراهې څخه هدايت ته او له تاريكي څخه روښنايې ته راووتل . ﴿ وَّإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ ٱلْبَلَٰغُ ﴾ (او كه وگرځيدل دوى له اسلامه پس بيشكه هم داخبره ده چي پر تا تش تبليغ ( دهدايت ) دى ) يعنې اى محمده ! كه دوى له اسلامه هم وگرزي تاته څه تاوان نه رسوي څكه ته الله جل جلاله ددوى په هدايت مكلف كړى نه يې ستا كار يوازې تبليغ دى او له دي څخه غرض درسول الله صلى الله عليه وسلم دادينه او تسلا وه . ﴿ وَٱللَّهُ بَصِيرٌۢ بِٱلْعِبَادِ ﴾ (او الله ښه ليدونكى دى ، عالم پر پټو او ښكاره احوالو دبندگانو ) او وربانديې به جزا وركړي ، روايت كاوه شي چي كله رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه آيت اهل كتابو ته ولوست هغوى وويل موږ مسلمانان شو ، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم يهودانو ته وويل : ايا تاسو دا شاهدي واياست چي عيسي عليه السلام دالله كلمه ، بنده او پيغمبر دى ، نو هغوى وويل : معاذالله او بيايې نصرانيانو ته وويل چي ايا تاسو داشاهدي واياست چي عيسى دالله بنده او استازى دى نو هغوى وويل: معاذ الله چي عيسى بنده وي او دادالله هغه قول دى چي فرمايي : (وان تولوا) (١) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ (بيشكه هغه كسان چي كافران كيږي په آيتونو (دالله باندي ) يعنې دروغ گڼي نازل شوي آيتونه . ﴿ وَيَقْتُلُونَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ (او وژني دوى انبياء په ناحقه سره ) هغه چي هيڅ گناه نلري پرته له دي چي دوى دالله لوري ته بولي دغه يهودان دي چي زكريا او زوى يې يحيى عليه السلام او نور نبيان يې ووژل . ابن كثير وايې چي بني اسرائيلو دري سوه انبياء ديوې ورځي په سر كښې ووژل او بيايې دورځې په پاى كې دسوداگري بازار پرانستل . ﴿ وَيَقْتُلُونَ ٱلَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِٱلْقِسْطِ مِنَ ٱلنَّاسِ ﴾ (او وژني هغه كسان چي حكم كوي په عدل (او انصاف) له خلكو سره ) يعني هغه كسان چي دعوتگران وي خلكو ته دخير او عدل حكم كوي . ﴿ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ (پس زيري وركړه دوى ته په عذاب دردناك سره

(١) تفسير ابي السعود ٢٢٣/١.

يعني دوی ته خوشحالونکي خبر ورواوره چي هغه دردناک او سپکوونکی عذاب دی دغه اسلوب ته تهکم وايي په تحقيق سره دوی : همدي متبجحق او ور دي څکه دوی دري ډوله ګناهونه کړي دي، دالله دآيتونو انکار بل دانبياوو وژل او يو بل هم دبلونکو او مبلغينو قتل الله جل جلاله ددوی عاقبت او پايله داسي ښيي: ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ﴾ (داهغه کسان دي چي باطل شوي دي نيک ) عملونه د دوی په دنيا کې او (هم) په آخرت کې) بلکې ددوی لپاره لعنت او سپکاوی په دنيا او آخرت کې پاتي دی ﴿ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴾ (او نشته دوی ته هيڅ مددګاران (دعذاب په دفع کولو کې) بيا الله جل جلاله ددوی لجاجت او سپين ستر کې عناد داسې نمونه بيانوي ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ ﴾ (ايا ته نه ګوري هغو کسانو ته چي ورکړل شوي دوی ته څه برخه له کتابه (تورات) څخه ) يعني ايا ته تعجب نه کوي (ای محمده !) دلته صيغه دتعجب لپاره ده چي دپيغمبر لپاره او يا دهر مخاطب لپاره ده ، زمخشري وايي په آيت شريف کې ديهودو احبار مراد شوي چي دوی ته ښه غوښنه (زياته) برخه دتورات ورکول شوي وه. ﴿ يُدْعَوْنَ إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ﴾ (حال داچي وباله شي دوی طرف دکتاب الله ته چي حکم وکړي (داکتاب) په مينځ د دوی کې ) يعني کله چي دوی دالله کتاب لوري (تورات) چي ددوی کتاب دي وبلل شي ترڅو ددوی متنازع فيه مسئلي حل کړي نو دوی يې نه مني.

﴿ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ وَهُم مُّعْرِضُونَ ﴾ (بيا مخ ګرځوي يوه ډله له دوی نه حال داچي دوی تل څنګ کونکي وي (له منلو دحکم دالله نه ) او دلته استبعاد دی څکه دوی پدې علم لري چي دلته دالله حکم ته رجوع کول لازمي ده خو بيا هم دوی مخ اړوي او دا جمله چي فرمايي :(وهم معرضون) (دتوبې لپاره تاکيد دی يعني دوی هسې قوم او ټبر دی چي له حق څخه تل مخ اړوي او په باطل باندي اصرا رکوي او آيت شريف لکه چي مفسرينو ليکلي هغې کيسې ته اشاره کوي چي کله ،دوه يهودانو زنا وکړه او يهودانو له رسول الله څخه دحکم او فيصلي غوښتنه وکړه نو درجم حکم ورباندي صادر شوخو دوی نه منله او ويل يې زموږ په تورات کې داسي حکم نشته (يوازې تحميم) دمخ تورول شته دي او کله چي تورات راوړل شو د رجم حکم پکې موجود ؤ او ورباندي نافذ شو دوی ته قهر ورغی نو الله تعالی په دي آيت کې ددوی بدي بيان کړه.([1]) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ ﴾ (دغه (ګرځيدل ددوی) په سبب د دي دي چي بېشکه دوی (يهودان) وايي له سره به ونه رسيږي موږ ته اور د (دوزخ ) مګر يو خو ورځي شميرلي ) يعني دغه ګرزيدل د دوی په سبب دهغو دروغو دی چي په الله يې تړلی او ګومان کوي چي دوی دانبياوو زامن دي او دوی ته نه رسيږي اور مګر لږ موده څلوېښت ورځي هغه چي دوي دخوسي عبادت کاوو.

﴿ وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴾ (او غره کړي دي دوی (تيرا يستلي) په دين خپل کې هغه شی چي وو دوی دروغ به يې جوړول (په الله ) . ﴿ فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنَاهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ ﴾ ( نو څه حال به وي هغه وخت کله چي يوځای کړو موږ دوی لپاره (دحساب دهغې ورځي) چي نشته هيڅ شک په راتلو د (هغې کې) او

---

[1] - وګوره دا کيسه صحيح البخاري کتاب التفسير.

پدې کې دهغو سختيو او کړاوونو سترتوب او هيبت مقصود دی چې دوئ به هغه وخت وينې.

﴿ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ ﴾ او پوره به ورکړل شي هر نفس ته جزا دهغه عمل چې کړي يې وي.

﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ (حال دا چې په دوی به ظلم ونکړی شي) دعذاب په زياتولو يا دثواب په کمولو.

بلاغت:

۱- داچې الله جل جلاله فرمايي :(ان الدين عندالله الاسلام ) جمله په دواړو خواوو کې معرفه ده نو حصر افاده کوي معنا داچې نشته هيڅ دين مګر اسلام دی.

۲- (الذين اوتوا الکتاب) ، تعبير له يهودو او نصاراوو څخه په اهل کتابو راغلی تر څو دوی زيات اشقياء او بدمرغي وښودل شي څکه سره له دې چې په منزل کتاب علم لري نو اختلاف خو رابدبختې او زښته بدې او ستر شناعت دی.

۳-(بايات الله فان الله )، اظهار د اسم جليل لپاره دی چې په زړونو کې مهابت وروزي او په نفسونو کې روعت کښېنوي.

۴- پدې کلمه کې چې فرمايي: (اسلمت وجهي)، اطلاق يې دوجهې وکړ او مراد ځني کل دی او دی ته مجاز مرسل وايي.

۵- (فبشرهم بعذاب اليم)، اصل په بشارت کې دادی چې دخير په خبر کې وي خو استعمال يې دشر دخبرې په وخت کې تهکم او ملندې وي،له دې چې داخطار په ځای يې زيرې ورته استعمال کړ هغه چې خوښحالونکی وي او دالکه دالله جل جلاله داقول چې:(بشر المنافقين بان لهم عذاباً اليما) .(النساء-۱۳۸) اودغه په تهکمي اسلوب مشهور دی.

فائده:

قرطبي وايي پدې آيت کې دعلم په فضيلت باندې دليل شته او داچې علماء شرافت لري څکه که تر علماوو ټو څوک دشرافت خاوند وايي، نو الله به يې نوم له خپل نامه او پرښتو سره يو ځای ذکر کړي وو لکه چې دعلماوو نوم يې ياد کړی دی او دعلم دشرافت په هکله د رسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره دغه دالله قول بس ده چې ورته امر کوي (وقل رب زدني علما) (طه:۱۱۴) او همدارنګه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه ويناچې فرمايي : (العلماء ورثة الانبياء) په حديث شريف کې راځي چې ابن مسعود روايت کړی وايي چې څوک د الله تعالى دغه قول چې (شهدالله انه لا اله الا هو.....) تر پايه ووايي دقيامت په ورځ به راوستل شي او الله جل جلاله به وايي زما بنده له ماسره په عهد کولو عهد کړی او زه تر هر چاچې په عهد وفا کوي حق داره او وفاداره يم زما بنده جنت ته داخل کړئ.[1]

---

[1] - رواه الطبراني في الکبير.

## الله تعالی فرمایي:

﴿ قُلِ اللَّهُمَّ مَالِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَاءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَاءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِيَدِكَ
الْخَيْرُ إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (٢٦) تُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ
وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ (٢٧) لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ
فِي شَيْءٍ إِلَّا أَنْ تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقَاةً وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ (٢٨) قُلْ إِنْ تُخْفُوا مَا فِي صُدُورِكُمْ أَوْ تُبْدُوهُ
يَعْلَمْهُ اللَّهُ وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (٢٩) يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ
مُحْضَرًا وَمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوءٍ تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ أَمَدًا بَعِيدًا وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ (٣٠) قُلْ إِنْ
كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ (٣١) قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ
اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ (٣٢) ﴾ آل عمران ۲۶-۳۲

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی په تیرو آیتونو کي د توحید او نبوت دلائل راوړل او د اسلام د دین ربښتیا والی يې ربنود بیایې دهغو بشارتونو او زیرو یادونه وکړه چي د الله مرستې له مسلمانانو او اسلام سره په نږدیوالي دلالت کوي هر څه د الله په ید د قدرت کې دي، هغه چاته چي خوښه يې شي عزت ورکوي او چاته چي خوښه يې شي ذلت ورباندي لوروي او په آیتونو کې الله خپل استازي ته د دعا او ابتهال امر کوي چي ووایي(یا الله)! د حق لښکري بریالی او خپل مبین دین ته نصرت ورکړي!!

## لغتونه:

(اللهم) اصل يې یا الله د نداء توری حذف او پر ځای يې مشدد میم عوض راوړل شوی، دغه خبره خلیل او سیبویه کړي ده.(تنزع)، اخلي یا زائل کوي ویل کیږي (نزع الله عنه الشر) کله چي شر ځنې لیري کړي (تولج)، ایلاج داخلولو ته وایي او له دي څخه د الله هغه قول دی چي فرمایي: (حتي یلج الجمل في سم الخیاط).(امداً) آخر او منتها دشي ته ویل کیږي جمع يې (آماد) راخي. (تقاة) تقیه دیو انسان سره هغه مدارات ته وایي چي له شره يې ځان ژغوري.

## دنزول سبب:

الف کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم مکه فتح کړه او امت ته يې دفارس او روم دپاچهیو دنیولو وعده ورکړه نو منافقینو او یهودانو ویل: لیري ده، ، لیري ده ! چیري به محمد دفارس او روم پاچهۍ ونیسي هغوی ډیرقوي او ستر قدرتونه دي ، ایا دمحمد مکه کفایت نه کوي چي دروم او فارس

دپاچهيو په لوري هم سترګې غړوي او هيلې لري ، بيا الله دا آيت نازل کړ: (قل اللهم مالک الملک تؤتي الملک من تشاء ...) دآيت ترپايه.(١)

ب : له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت شوي چي (عبادة بن صامت) هغه چي دبدر له مجاهدينو څخه (يوپرهيزګاره صحابي) وو ديهودو سره يې تړون لاره، کله چي رسول الله داحزاب په ورځ رابهر شو نو (عبادة بن صامت) ورته وويل: ای دالله نبي ! له ماسره پنځه سوه تنه يهودان دي ، ماداسې اټکل کړي چي راسره ملګري به ووزي او په دښمن به وربانديې برى ومومو ، نو بيا الله دا آيت نازل کړ :(لايتخذالمؤمنون الكافرين اولياء)(٢)

تفسير:

﴿ قُلِ ٱللَّهُمَّ مَٰلِكَ ٱلْمُلْكِ ﴾ووايه (ای محمده!) يا الله ( ای) مالکه د سلطنت (واکداره د پاچهي)

﴿ تُؤْتِي ٱلْمُلْكَ مَن تَشَآءُ وَتَنزِعُ ٱلْمُلْكَ مِمَّن تَشَآءُ ﴾ (ورکوي ته سلطنت هغه چاته چي اراده وکړي (يا الله دورکولو يې) او بيرته اخلې پاچهي له هغه چا چي اراده وکړي (دبيرته اخيستلو يې) يعني ته په کائناتو کې تصرف کونکی يې چاته پاچهي ورکوي له چا څخه يې بيرته اخلې. ﴿ وَتُعِزُّ مَن تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَن تَشَآءُ ﴾ (او عزت ورکوي هر هغه چاته چي اراده وکړي (الله دعزت يې) او خوار ذليل کوي هر هغه څوک چي اراده وکړي (الله د ذلت يې) . ﴿ بِيَدِكَ ٱلْخَيْرُ إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ (په لاس دقدرت ستا کې دي جزا دخير (ښېګنې) بيشکه ته په هر شي باندي ښه قادر يې). ﴿ تُولِجُ ٱلَّيْلَ فِى ٱلنَّهَارِ وَتُولِجُ ٱلنَّهَارَ فِى ٱلَّيْلِ ﴾ ( ننني باسي شپه په ورځ کې (ته يا الله) او ننې باسې ورځ په شپه کې (ته يا الله) چي تل په پسرلې کې له شپو کموي او په ورځو کې يې زياتوی او په منې کې له ورځو کموي او په شپو کې يې زياتوی. ﴿ وَتُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ ٱلْمَيِّتَ مِنَ ٱلْحَىِّ ﴾ ( او راوباسې ته ژوندی له مړي نه او وباسي مړي له ژوندي نه ) يعني کښت له داني څخه زرغونوي او دانه بيا له کښت څخه پيدا کوي دخرما ونه دخرما له زړي شنه کوي او خرما اوزړی بيا دخرما له ونې څخه پيدا کوي ، هګۍ له چرګې نه او چرګه له هګۍ څخه راوباسي مؤمن له کافر څخه زيږوي او کافر بيا له مسلمان او مؤمن څخه ، همدا راز ابن کثير ويلي دي او طبري وايې: چي ترټولو بهتر سم تأويل دهغه چا قول دی چي وايې: ژوندی انسانان ، حيوان او چارپايان له مړو نطفو څخه پيدا کوي او مړه نطفه بيا له ژوندي انسان ، حيوان او څلور بول څخه پيدا کوي(٣) ﴿ وَتَرْزُقُ مَن تَشَآءُ

---

١ - القرطبي ٥٢/٤.

٢ - روائع البيان ٣٩٩/١.

٣ - تفسير الطبري ٣٠٩/٢ – شهيد سيدقطب ددې آيت په معنی کولو کې خوندوره ليکنه کړي چي په لنډه توګه يې دلته له ظلال القرآن څخه را اخلو هغه قدس الله روحه وايې: او برابره خبره ده که د ايلاج معنا داوي چي له ورځي څه اخلي شپې ته او له شپې ورځي ته دفصلونو دبدليدلو په وخت کې ورکوي که داوي او که هغه خو زړه کولای يې شي وګورئ چي دالله دقدرت درس آسمانونه خوځوي او دغه تکه توره کره دهغي بلي خلانده دلمر کړې په وړاندي نغاړي او دتياري او رڼا ځايونه اړوي را اړوي دشپې تاريکي دورځي رڼا ته ورليږدوي او لږ ،لږ دسباوون رڼا پسې له تور پروني راوباسي شپه اوږديږي او په ژمي کې

﴿بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ (او روزي ورکوي ته (یاالله) هرهغه چاته چي اراده وفرمايي ، بې حسابه) وروسته بيا الله تعالى دکافرانو له دوستۍ او مرستي کولو څخه منع وفرمايله چي: ﴿لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (نه دي نيسي مؤمنان کافران دوستان بې له مؤمنانو) يعني مؤمنان دي دالله دښمنان په دوستۍ نه نيسي چي دالله اولياء پريږدي ، داغير معقوله ده چي دالله محبت او دهغه ددښمن محبت دي دانسان په زړه کې يوځای شي، زمخشري وايي چي له دي څخه منع راغلي چي له کافرانو سره دوستۍ دقرابت، صداقت او يا نور موجباتو په سبب وشي. ﴿وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ﴾ او هر څوک چي وکړي دا (کار) نو نه دي او دده (تعلق) له دين دالله د دوستي دالله سره په هيڅ شي کې. ﴿إِلَّا أَن تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقَاةً﴾ (مګر (خو روا ده دغه دوستي) که خان ساتی تاسي له دوی نه په خان ساتني سره يعني که تاسو له دوی نه وېرېږي او يايې له شر څخه خان ژرغوئ نو ورسره په ژبه دوستي ښرګندوی نه په زړه کې څکه دايو ډول له ناپوهانو سره مدارات دی لکه چي روايت کيږي (انا لنبش في وجوه اقوام وقلوبنا تلعنهم) موږ ځينو خلکو ته په ورين تندي مخامخ کيږو خو زړونه مو وربانديي لعنت وايي. ﴿وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ﴾ (او ويروئ تاسې الله له (عذابه) نفس خپل يعني له هغه دخدای له لوري صادر شوي عذاب نه مو ويروي). ﴿وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ﴾ (او (خاص) طرف دالله ته دي ورتله (ستاسې او دټولو) نو هرچاته به دخپل عمل جزا ورکړي. ﴿قُلْ إِن تُخْفُوا مَا فِي صُدُورِكُمْ أَوْ تُبْدُوهُ يَعْلَمْهُ اللَّهُ﴾ (ووايه (ای محمده!) دوی ته که پټ کړي تاسي هغه شی چي ستاسي په سينو کې دي يا ښکاره کړي تاسي هغه معلوم دي هغه پاک الله ته يعني که تاسي پټ کړي هغه دکفارو دوستي چي ستاسي په زړونو کې ده او يا ښرګنده کړی الله وربانديي خبر دی هيڅ شي تري پټ نه دي. ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ (او معلوم دی الله ته ټول هغه شيان چي په آسمانونو کې دي او هغه چي په مځکه کې دي يعني په ټولو امورو عالم دی. ﴿وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ (او الله هر شي باندي چي اراده يې وکړي) ښه قادر دی يعني هغه سبحانه وتعالى په کسات اخستلو او انتقام دهغه چاچي له حکم څخه يې سرغړونه وکړي ښه قادر دی دا خورا ستر تهديد دی. ﴿يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا﴾ (او وويرېږئ له) هغې ورځې چي

---

ورځ خوري بيا ورځ او وړديږي په اوږ ي کې او له شپې څخه رادبره کيږي همدا راز ژوند او مرګ يو په بل کې په کرار کرار سره اوډل کيږي پر يوه شيبه چي په ژوند تيريږي مرګ ورګډيږي او خنې خوري يې، ژوند پکې جوړيږي ، ژوندی خپله مړی کيږي او وړي خليې پکې پنځيږي او کار کوي دارنګه هره لحظه دشپې او ورځې تيريږي چي دغه قرآنې اشاره يې بشري عقل ته ورښرګندوي او هيڅوک دا ادعا نشي کولای چي هغه پخپله له دي څخه څه جوړوي او نه هوښيار دا سوچ کوي چي داهسي تصرفات نابېره له تدبيره پرته راځي ، بلکې دايو ستر پټ خوځښت دی چي دقدرت، لطف او تدبير دخاوند په لاس ترسره کيږي.

في ظلال القرآن ۱۷۰/۳.

مومن په هر نفس (پکې) هر هغه څه چې کړي يې وي له خيره حاضر کړي شوي) يعني د قيامت په ورځ به هر څوک د خپل عمل جزاء حاضره وينې که نيکي يې کړي وه نيکي جزاء به ورکولی شي او که بدي يې کړي د هغې جزاء به مومي که ښه اعمال يې ترسره کړي وي په جزاء موند لو به يې خوښ خوښحاله شي.

﴿وَمَا عَمِلَتْ مِن سُوٓءٍ تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُۥٓ أَمَدًۢا بَعِيدًا﴾ (او هر هغه څوک چې کړي وي ده له بدي نه آرزو به کوي دا (نفس) ددې چې کاشکې په مينځ ددې (نفس او بدعمل) کې مسافه وای ، ليرې او ږده) يعني که چيرې يې عمل بد وی نو دا آرزو به کوي چې خپل عمل بيخي ونه وينې او دا به خوښوې چې دده او بد عمل ترمينځ يې زښته زيات واټن او مسافه وي لکه د ختيز او لويديځ ترمينځ مسافه ﴿وَيُحَذِّرُكُمُ ٱللَّهُ نَفْسَهُۥ﴾ او ويروئ تاسې الله له (عذابه) د نفس خپل نه. ﴿وَٱللَّهُ رَءُوفٌۢ بِٱلْعِبَادِ﴾ (او الله ډير مهربان دی په بندګانو (خپلو) دا خوښوې چې په مستقيمه لاره روان شي. ﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ ٱللَّهَ فَٱتَّبِعُونِى يُحْبِبْكُمُ ٱللَّهُ﴾ (ووايه (ای محمده! دوی ته) که چيرې يې تاسې چې محبت کوئ له الله سره پس متابعت وکړئ زما، ځکه زه دالله استازی يم بيا به الله له تاسي سره محبت وکړي. ﴿وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ (او مغفرت به وکړي تاسې ته ګناهونه ستاسې (او الله مغفرت کونکی دی دخفياتو) ډير رحم والا دی) يعني د رسول الله په اتباع سره او دهغه د اوامرو په منلو له تاسي سره الله محبت کوي او ستاسې پخوانې ګناهونه دربښې. ابن کثير وايې چې دغه آيت حکم کوي هر څوک چې دالله دمينې او محبت دعوي کوي خو دمحمدي لارې پيروي نه کوي هغه په خپله دعوي کې دروغجن دی ، ترڅو چې محمدي شريعت په ټولو افعالو او اقوالو کې پلې نکړي.[1] بيا الله فرمايي: ﴿قُلْ أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ﴾ (ووايه (ای محمده! دوی ته) چې اطاعت کوئ تاسې دالله او د رسول (دالله چې محمد دی). ﴿فَإِن تَوَلَّوْا۟﴾ (پس که وګرځيدل دوی له طاعت څخه) ﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْكَـٰفِرِينَ﴾ (پس بيشکه الله دوستي نه کوي له کافرانو سره ، يعني الله هغه څوک چې آيا تونه يې نه مني له رسولانو څخه سرغړونه کوي نه خوښوې بلکې په عذابوي او رسوا کوي يې دا هلته چې: (يوم لايخزي الله النبي والذي آمنوا معه) (التحريم: ۸)

بلاغت:

پدې مبارکو آيتونو کې دبلاغت ډيري بيلګې او دفصاحت ډير ډولونه شته ، لکه:

۱- دطباق صنعت پدې کلماتو کې چي: (تؤتى ، تنزع ) (تعز وتذل) (الليل ،النهار) (الحى ،الميت ) (تخفوا، تبدوا ) (خير ،سوء) (محضرا، بعيدا ) او نور.

۲- ناقص جناس لکه په: (مالک الملک ) او (تحبون او يحببکم ) همدارنګه اشتقاقي جناس لکه (تتقوا) او (تقاة) ترمينځ او د (يغفر او غفور) ترمينځ.

---

[1] مختصر ابن کثير ۲۳۷/۱.

۳- رد العجز صنعت چي پدې جملو کې راغلی: (تولج الليل في النهار) او (تولج النهارفي الليل) چي دلته ردالعجز على الصدر راغلی دی

۴- دتفخيم او تعظيم لپاره تکرار لکه پدي کلام کې: (تؤتی الملک من تشاء وتنزع الملک ممن تشاء)

۵- ايجاز بالحذف په ځينو ځايونو کې لکه: (تؤتی الملک من تشاء) چي بشپړ کلام داسې راځي (تؤتی الملک من تشاء ان تؤتيه) او ددې په مثل په (تنزع) اود (تذل) او (تعز) کلماتو کې.

۶- په تلخيص البيان کې راوړي چي پدې قول دالله تعالى کې چي فرمايي: (تولج الليل في النهار) عجيبه استعاره خوندي ده او هغه عبارت له ننې ايستلو دشپې په ورځې کې او د ورځې په شپه کې کوم چي کم شي له شپې څخه زياتيږئ په ورځې کې او همدارنګه برعکس او دايلاج لفظ ډير زيات بليغ ځکه ده چي دا افاده کوي چي ننې ايستل دهريو په بل کې په خورا باريک امتزاج اوګډون او سخت ورته والي سره صورت نيسي.

۷- پدې کلام کې چي: (تخرج الحى من الميت وتخرج الميت من الحى) حی او ميت (ژوندی او مړی) عبارت دي له مؤمن او کافر څخه مؤمن له ژوندي او کافر يې له مړي سره تشبيه کړی او مجاز صنعت يې راوړی دی. والله اعلم.[1]

تنبيه:

امام مسلم په خپل صحيح کې روايت کوي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: بيشکه کله چي الله يو بنده په دوستي ومني نو جبرائيل ﷺ راوبولي بيا ورته وايي چي زه فلانی دوست بولم ته يې هم دوست وګڼه او جبرائيل عليه السلام يې په دوستې ونيسي، بيا په اسمانونو کې ناري کړي چي بېشکه الله فلانی په دوستي منلی، تاسې يې هم په دوستي ونيسي، پس هغوی يې هم په دوستي خوښ کړي او کله چي الله يو بنده مبغوض او بد ګڼې، جبرائيل راوبولي پس ورته وايي چي زه فلاني بد ايسوم ته يې هم بد وايسوه بيا يې جبرئيل مبغوض وګڼي او دآسمان په اهل ناري کړي چي بيشکه الله له فلاني سره بغض کړی تاسي هم ورسره بغض وکړئ هغوی هم نفرت او کرکه ځنې وکړي او بيا په مځکه کې يې دنفرت او کرکي تاداو کښېښودل شي.

الله تعالى فرمايي:

﴿إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰٓ ءَادَمَ وَنُوحًا وَءَالَ إِبْرَٰهِيمَ وَءَالَ عِمْرَٰنَ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٣٣﴾ ذُرِّيَّةًۢ بَعْضُهَا مِنۢ بَعْضٍ ۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ
﴿٣٤﴾ إِذْ قَالَتِ ٱمْرَأَتُ عِمْرَٰنَ رَبِّ إِنِّى نَذَرْتُ لَكَ مَا فِى بَطْنِى مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّىٓ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿٣٥﴾ فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ

---

[1] - دادهغه چاپه قول چي تفسير دژوندي يې په مؤمن او دمړه يې په کافر کړي دی، يعني مؤمن له کافر څخه پيدا کوي او کافر له مؤمن څخه او پدې باندي دالله قول دلالت کوي چي: (او من کان ميتا فاحييناه) همدا دحسن بصري رحمه الله وينا هم ده

رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَا أُنثَىٰ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنثَىٰ وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ
الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴿٣٦﴾ فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ وَأَنبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ
وَجَدَ عِندَهَا رِزْقًا قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا قَالَتْ هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٧﴾ هُنَالِكَ دَعَا
زَكَرِيَّا رَبَّهُ قَالَ رَبِّ هَبْ لِي مِن لَّدُنكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ ﴿٣٨﴾ فَنَادَتْهُ الْمَلَائِكَةُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فِي
الْمِحْرَابِ أَنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيَىٰ مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللَّهِ وَسَيِّدًا وَحَصُورًا وَنَبِيًّا مِّنَ الصَّالِحِينَ ﴿٣٩﴾ قَالَ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي
غُلَامٌ وَقَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ وَامْرَأَتِي عَاقِرٌ قَالَ كَذَٰلِكَ اللَّهُ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ ﴿٤٠﴾ قَالَ رَبِّ اجْعَل لِّي آيَةً قَالَ آيَتُكَ أَلَّا
تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا رَمْزًا وَاذْكُر رَّبَّكَ كَثِيرًا وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ﴿٤١﴾ آل عمران ٣٣-٤١

**مناسبت او تړاو:**

څرنګه چې الله جل جلاله بیان وفرمایل چې دده محبت هله ترلاسه کیږي چې د رسولانو متابعت او پیروي یې وشي، نو یې د نبیانو لوړې درجې او ستر منصبونه بیان کړل او د حضرت آدم څخه یې پیل دوهم یې نوح ابو البشر ثاني ذکر کړ او دریم څل یې آل ابراهیم راوړ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هم پکې شامل دی او بیا یې د آل عمران یادونه وکړه چې حضرت عیسی هم پکې دی له دې وروسته یې درې کیسې ذکر کړې. کیسه د زیږیدلو د حضرت مریمې او بیا د حضرت یحیی او وروسته بیا د حضرت عیسی علی نبینا وعلیهم الصلوة والسلام د ولادت کیسې یې راوړې چې ټولې خارق العاده پیښې او د العلی القدیر الله په قدرت دلالت کوي

**لغتونه:**

**(اصطفی)** غوره کې له صفوة څخه اخستل شوي یعني ویې ګرزاوو غوره له خپل مخلوق نه. **(محررا)** له حریت څخه اخیستل شوی او هغه چاته ویل کیږي چې خالص د الله لپاره ځانګړې شوي وي او د نیوي کارونه یې دنده نه وي **(اعیذها)**: پناه ورکوم . **(وکفلها)**: او کفیل وګرزاوو دوی له کفل یکفل فهو کافل څخه ده او هغه چاته وایې چې د بل انسان د مصلحتونو اهتمام کوي په حدیث شریف کې راځي (انا وکافل الیتیم في الجنة کهاتین) . **(المحراب)** : هغه بختور لوړ مقام ، ابو عبیده وایې د ناستې تر ټولو شریف او غوره او ړومبنی ځای ته محراب وایې او د غه ځای له مسجد څخه هم محراب باله شي. [1] **(حصورا)**: له حصر څخه اخیستل شوي او حبس ته وایې او هغه چاته حصور وایې چې له شهوتنو او لذتونو یې ځان ژ غولي وي ، مفسرین کرامو د حصور د معنا په هکله دوې خبرې کړې موږ هغه څنې غوره کوو چې محققینو غوره کړې او هغه داچې هغه چاته وایې چې له ښځو څخه اجتناب کوي نه د عجز له کبله بلکې د عفت په وجه سره. [2] **(عاقر)**: شنډه هغه چې اولاد یې نه زیږي هغه که نر وي که ښځه ، عاقر

---

[1] - البحر المحیط ۲/ ۴۳۳.
[2] - تفسیر الفخر الرازي وبنحوه في الطبري والقرطبي.

ورته ويل كيږي. (رمزا): رمز په لاس او سر باندي اشاري كولو ته وايي ، طبري راوړي چي: په شونډانو اشاري كولو ته وايي او كله ، كله دورځو او سترګو اشارې ته هم (رمز) وايي([1]). (العشي): دلمر له زواله ونيسه تر ډوبيدلو پوري. (الابكار): دلمر له راختلو بيا تر څاښته پوري وخت ته ابكار وايي.

تفسير:

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰٓ ءَادَمَ ﴾ ( بيشكه چي الله غوره كړى دى آدم (دنبوت لپاره) . ﴿ وَنُوحًا ﴾ ( او نوح د رسولانو مشر) ﴿ وَءَالَ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ (او اولاده دابراهيم چي اسماعيل ، اسحاق او ددوى له اولاد ي نور انبياء او ددوى له ډلي حضرت خاتم المرسلين صلى الله عليه وسلم. ﴿ وَءَالَ عِمْرَٰنَ ﴾ ( او اولاده دعمران چي له دوى ځيني عيسى ابن مريم چي دبني اسرائيلو خاتم الانبياء وو . ﴿ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ ( په ټولو خلكو (دزماني ددوى) قرطبي وايي چي دغه كسان يې پرته له نورو په يادولو ځانګړي كړل څكه نبيان او رسولان غونډ (ټول) ددوى له نسله دي ﴿ ذُرِّيَّةًۢ بَعْضُهَا مِنۢ بَعْضٍ ﴾ (حال داچي اولاده وو ځيني ددوى له ځينو نورو څخه ) يعني غوره يې كړل پداسې حال كې چي په دين ، تقوى او صلحيت كې متجانس وو .

﴿ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ ( او الله ښه اوريدونكى دى (دبندګانو داقوالو ) او ښه پوه دى (په ټولو احوالو دضمائرو د دوى ) ﴿ إِذْ قَالَتِ ٱمْرَأَتُ عِمْرَٰنَ ﴾ ( ورياد كړه دوى ته اى محمده ! هغه وخت چي وويل ښځې دعمران (چي نوم يې حنة بنت فاقود وو ) . ﴿ رَبِّ إِنِّى نَذَرْتُ لَكَ مَا فِى بَطْنِى ﴾ (چي اى ربه زما ! بيشكه ما نذر كړى دى هغه چي په ګيډه كې زما دي ) يعني ما ستا دعبادت او طاعت كولو لپاره نذر اينبى دى . ) ﴿ مُحَرَّرًا ﴾ (حال داچي هغه به آزاد وي (له نورو مشاغلو دعبادت او خدمت لپاره ). ﴿ فَتَقَبَّلْ مِنِّىٓ إِنَّكَ أَنتَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ ( پس قبول كړه ته (اى ربه !) له ما څخه (نذر) بيشكه ته چي يې همدا ته ښه اوريدونكى او ښه عالم يې (زما دعا اوري او په نيت مي پوه يې) . ﴿ فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ إِنِّى وَضَعْتُهَآ أُنثَىٰ ﴾ (پس چي كله يې وزيږاوو هغه (نذر) نو وويل (حنې) چي اى ربه زما ! بيشكه زه چي يم ومې زيږاوه هغه (نذر) چي ښځه ده ، دايې دافسوس په ډول وويل ابن عباس رضى الله عنهما وايي چي هغې دا څكه وويل چي ښځې به په نذر كې نه منل كيدي يوازي نارينه وو خو الله جل جلاله مريم په نذر كې ومنله ، الله وايي: ﴿ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ ﴾ او الله ښه عالم دى په هغه څه چي دى (حنې) زيږولي وو .) يعني كه دي ويلي واى او كه نه الله ورباندي عالم وو. ﴿ وَلَيْسَ ٱلذَّكَرُ كَٱلْأُنثَىٰ ﴾ ( او نه دى نارينه (چي حنې غوښتى وو ) په شان دجينۍ (ښځې) (چي وركول شوه) بلكې دا ترې بهتره ده او دواړه جملې معترضې دالله جل جلاله له لوري څخه دي ترڅو دغه مولود په شان كې تعظيم او دهغو سترو امورو چي ددې او زوى څخه يې څرګنديږي

---

[1] - الطبري ٦/ ٣٨٦

درناوي وکړي کوم چي پکښې دعالميانو لپاره آيات او معجزې دي ﴿ وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ ﴾ (او بيشكه ما نوم كښيښود ددي مريمه) او دعمران دښځې دخبرو بشپړونه ده چي ويې ويل ښځه مې وزيږوله او دغه مې مريمه ونوموله ، ددوى په ژبه مريمه دالله عبادت كونكي او چوپړ وهونكي ته وايي. ﴿ وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴾ (او بيشكه زه پناه وركوم په تا پوري او اولاد ددې ته له شيطان مردود (رټلي سوي نه) نو الله ددې دعا ومنله ، الله فرمايي: ﴿ فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ ﴾ (پس قبوله كړه الله دا (مريمه) رب ددې (په ځاى دنارينه) په قبولو ښو سره. ﴿ وَأَنبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ﴾ (او زرغونه يې كړه (لويه) په زرغونولو (لويولو) ښو سره يعنې په صالح او سمه روزنه سره يې وروزله ﴿ وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا ﴾ (او (الله) كفيل وګرزاوو دې لره زكريا عليه السلام چي دهغې دمصالحو متعهد وى ترڅو چي دښځو او ميرمنو ځاى ته ورسيده او پخپل محراب كې يې دالله عبادت ته په ګوښه والي كې ځان چمتو كړ. ﴿ كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِندَهَا رِزْقًا ﴾ (هركله چي به ورننوت هغي ته زكريا په محراب (په عبادت خانه) كې نو موندله به يې له دې (مريمي) سره څه روزي (ميوې دژمي په اوړي كې او ميوې داوړي په ژمي كې ) داخبره مجاهد رحمه الله كړي ده. ﴿ قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا ﴾ (وويل (زكريا) اى مريمي له كومه (راغلي) ده تاته داروزي ؟) ﴿ قَالَتْ ﴾ وويل مريمي زكريا ته: ﴿ هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ ﴾ دا رزوي له طرفه دالله ده. ﴿ إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ (بيشكه چي الله روزي وركوي هغه چاته چي اراده وفرمايي دروزي وركولو يې ډير پريمانه ، بې حسابه ، بې له تكليف او زحمت څخه. ﴿ هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهُ ﴾ (په دغه ځاى (يا وخت) كې دعا (غوښتنه) وكړه زكريا له ربه خپله) معنى پدې وخت كې چي زكريا عليه السلام دمريمي هغه كرامت وليد چي الله ورښنلى وو نو يې له الله جل جلاله څخه په عجز او زاري هسې غوښتنه او دعا وكړه چي: ﴿ قَالَ رَبِّ هَبْ لِي مِن لَّدُنكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ﴾ (وويل زكريا اى ربه ! راوبښه (راكړه) له نزده خپله اولاد (ښه پاكيزه) يعني اى ربه ! ماته له خپله نزده صالح زوى راكړي ، داوخت زكريا عليه السلام بيخي سپين ږيري بوډا او ښځه يې سپين سري او بيخي شنډه وه او دلته دطيب معنا صالح او مبارك دى ﴿ إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ ﴾ (بيشكه ته ښه اوريدونكى ددعا يې چي څوك دي وبولي) ﴿ فَنَادَتْهُ الْمَلَائِكَةُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فِي الْمِحْرَابِ ﴾ (نو ورناري كړي ده ته پرښتو حال داچي دى ولاړ وو لمونځ يې كاوو په محراب (عبادت خانه) كې. ﴿ أَنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيَىٰ ﴾ (چي بېشكه الله زيري كوي په تا ديحيي (چي ستا زوى به وي) نوم به يې يحيى وي ﴿ مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللَّهِ ﴾ (حال داچي تصديق كونكى به وي په يوه كلمه سره چي له (طرفه د الله ده ) يعنې دعيسى په رسالت به ايمان لري او دهغه به تصديق كوي عيسى عليه السلام ته ځكه كلمه وويل شو چي هغه د (كن ) په كلمه سره بې پلاره پيدا شوى دى ﴿ وَسَيِّدًا ﴾ (حال

داچي دخپل قوم سردار به وي ) ﴿ وَحَصُورًا ﴾ او ډير منع راوړنكي به وي (له شهواتو ځيني) يعني دعفاف او زهد له مخې به ښځو ته نه نژدي كيږي سره له دي چي ددي توان به لري او هغه چي بعضې مفسرينو ليكلي چي توان به يې نلري او (عنين) به وي دا باطله خبره ده دانبياوو لپاره روا نه ده ځكه دايوډول نقص او بيكارتوب دى او آيت شريف خودصفت او ثناويلو لپاره راغلى دى.(١) ﴿ وَنَبِيًّا مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ (او نبي به وي (له ډلې) دصالحانو . ابن كثير وايي دغه دوهم زيرى دى چي هغه به نبي وي او داتر لومړى زيري لا لوړ دى لكه چي دموسى عليه السلام مور ته وايي : (انا رادوه اليک وجاعلوه من المرسلين ) (٢). ﴿ قَالَ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَٰمٌ ﴾ (وويل (زكريا ) اى ربه زما ! څرنگه به پيدا كيږي ما ره هلک؟) . ﴿ وَقَدْ بَلَغَنِيَ ٱلْكِبَرُ ﴾ (حال داچي په تحقيق رسيدلى دى ماته زوړوالى (او د ده عمر دلته يوسل او شل كاله وو ) ﴿ وَٱمْرَأَتِي عَاقِرٌ ﴾ ( او ښځه مې هم شنډه ده ) چي اولادبى نه زيږي (او پدې وخت كې يې عمر اته نوي كاله وو ) او پدوى كې داولاد دنه پيدا كولو دوه سببونه چي زړوالي او شنډوالي وو موجود وو. ﴿ قَالَ كَذَٰلِكَ ٱللَّهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ﴾ (وويل (جبريل) همداسې الله كوي هغه كار چي اراده وفرمايي (دكولو يې) يعني هيڅ كار وربانديي لوى او درووند نه دى. ﴿ قَالَ رَبِّ ٱجْعَل لِّيٓ ءَايَةً ﴾ ( وويل (زكريا ) اى ربه زما ! وگرزوه ماله څه علامه (پدې چي ميرمن مې اميدواره شوې ده) ﴿ قَالَ ءَايَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ ثَلَٰثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا رَمْزًا ﴾ (نو وويل (جبريل) (علامه ) ستا داده چي خبري به نه كوې ته له خلكو سره درې ورځي ( او شپې) مگر په اشاره سره.) يعني علامه يې داده چي ته به ونشي كړاى له خلكو سره خبري وكړي مگر په اشارت سره او دا له دي سره، سره چي ته به روغ رمټ يې غرض داچي ده ته به اساني يو مانع پيدا شې چي پرته دالله له ذكره به نوري خبري نشي كولاى. ﴿ وَٱذْكُر رَّبَّكَ كَثِيرًا ﴾ (او يادوه رب خپل ډير (لپاره دشكر) يعني په ژبه باندي دالله ډير شكر په نعمت اداكوه هغه له خبرو ځني منع خوله ذكر څخه منع شوى نه وو او داپه اعجاز كې نور ابلغ دى. ﴿ وَسَبِّحْ بِٱلْعَشِيِّ وَٱلْإِبْكَٰرِ ﴾ (او تسبيح وايه (لمونځ كوه ) په آخر دورځې كې اوپه اول دورځې كې ) يعني دالله پاكي دنقص له صفتونو څخه په (سبحان الله ) سره بيانوه ځوک بيا وايي چي مرادله تسبيح څخه داچي لمونځ كوه. طبري وايي چي معنا داچي د الله تعظيم دهغه په عبادت سره ماښام او سهار كوه.

(١)- ابن كثير له قاضي عياض رحمهما الله څخه نقل كوي چي: (پوه شه دالله ثنا چي ديحيي په هكله يې فرمايلي چي هغه حصوردى ،هسي نه وو لكه چي ځوک وايي يحيي (عنين) او يا يې بيخي تناسلي آله نه درلوده ، بلكې دغه پخوا لا مفسرينو ردكړى او دانقص او تاوان دى دغه عيب په انبياوو پسې نه ښايې او معنا يې داده چي هغه له گناهونو څخه معصوم او پاک وو هيڅ گناه يې نه كوله لكه حصور داسي وو او يايې ځان منع كاوو ، تاته معلومه ده چي په نكاح توان نه درلودل نقص او عيب دى او بهترې په دې كې ده چي سړي توان ولري خو ځان ځنې رامنع كړي هغه يا خو دنفس سره په مجاهدت كولو ورڅخه مخ اړوي، لكه عيسى عليه السلام او يا لكه ديحيى عليه السلام چي الله يې كفايت كړى وو).

(٢) مختصر ابن كثير ٢٨١/١.

بلاغت:

۱- (والله اعلم بما وضعت ) او( وليس الذكر كالانثى) دا دواړه جملې معترضې او د تعظيم لپاره يا دمولود دمرتبې دلوړوالي په هکله دي.

۲- (واني اعيذها) ، دمضارع صيغه ده چي په استمرار او تجدد دلالت وکړي

۳- په دې کلام کې چي فرمايي: (وانبتها نباتاً حسنا ) دهغې وده او نشونما يې له کبنت سره وکړه او دغه کلام دهغې له روزنې څخه مجاز دی په ټولو حالاتو کې او دا دتبعيي استعاري په بڼه کې دی.

۴- (فنادته الملائكة)، دلته ندا کونکی جبرائيل دي او دجماعت په نوم يې ځنې تعبير وکړ په داچي تعظيم يې وشي ځکه هغه دپرښتو رئيس دی.

۵- په دې کلام کې چي فرمايي: (بالعشي والابكار) دطباق صنعت دی هغه چي له بديعي محسناتو څخه ګڼل کيږي.

ګټې او فائدې:

لومړی فائده: روايت کاوه شي چي (حنة) دعمران ميرمن زړه او شنډه وه يوه ورځ د ونې سيوري ته ناسته وه که ګوري چي يوه مرغۍ خپل کوچنی زوی ته خوراک ورکوي نو دهغې هم اولاد ته زړه وشو او ويې ويل: ای ربه ! که ماته دي زوی راکړ زما وعده ده چي هغه به دبيت المقدس دخدمت لپاره نذر کوم چي دهغه له نوکرانو ځنې شي ، بيا عمران مړ شو او هغه اميدواره وه.([1])دغه دنذر ابنبودلو رازوو.

دوهمه فائده: ابن کثير دالله تعالى له دې قول سره چي وايي :(كلما دخل عليها زكريا المحراب وجد عندها رزقا) داسې راوړی چي په آيت کې داولياوو په کرامت باندې دلالت موجود دی او په احاديثو کې ددې په شان نور هم ډير مثالونه شته لکه هغه دجابر روايت چي د (جفنه ) قصه يې راوړي او لنديز يې دادی چي يوه ورځ رسو ل الله صلى الله عليه وسلم وږی شو او دفاطمې رضى الله عنها کور ته راغی او دخوراک څښاک يې ځنې څه غوښتل، له هغې سره نه وو بيا دهغې دهمسايه ښځګلوري ميرمنې دوه ټکيالې او يوه ټوټه غوښه ورته راوليږله او هغه يې په کاسه کې کېښېنودل او بيا يې وليدل چي هغه کاسه (جفنة) له غوښې او ډوډۍ څخه ډکه شوه.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَإِذْ قَالَتِ الْمَلَـٰٓئِكَةُ يَـٰمَرْيَمُ إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰكِ وَطَهَّرَكِ وَٱصْطَفَىٰكِ عَلَىٰ نِسَآءِ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴿٤٢﴾ يَـٰمَرْيَمُ ٱقْنُتِى
لِرَبِّكِ وَٱسْجُدِى وَٱرْكَعِى مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ ﴿٤٣﴾ ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُونَ أَقْلَـٰمَهُمْ
أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴿٤٤﴾ إِذْ قَالَتِ ٱلْمَلَـٰٓئِكَةُ يَـٰمَرْيَمُ إِنَّ ٱللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ
ٱسْمُهُ ٱلْمَسِيحُ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ وَجِيهًا فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْـَٔاخِرَةِ وَمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ ﴿٤٥﴾ وَيُكَلِّمُ ٱلنَّاسَ فِى ٱلْمَهْدِ وَكَهْلًا وَمِنَ

[1] - تفسير ابي السعود ۱/ ۲۳۰.

الصَّالِحِينَ ﴿٤٦﴾ قَالَتْ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي وَلَدٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ ۖ قَالَ كَذَٰلِكِ اللَّهُ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۚ إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ
كُن فَيَكُونُ ﴿٤٧﴾ وَيُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ ﴿٤٨﴾ وَرَسُولًا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَنِّي قَدْ جِئْتُكُم بِآيَةٍ
مِّن رَّبِّكُمْ ۖ أَنِّي أَخْلُقُ لَكُم مِّنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ فَأَنفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِ اللَّهِ ۖ وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ
وَالْأَبْرَصَ وَأُحْيِي الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِ اللَّهِ ۖ وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم
مُّؤْمِنِينَ ﴿٤٩﴾ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ ۚ وَجِئْتُكُم بِآيَةٍ
مِّن رَّبِّكُمْ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿٥٠﴾ إِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۗ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿٥١﴾ آل عمران ۴۲ - ۵۱

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی دحضرت (یحیی بن زکریا) د ولادت کیسه بیان کړه چې له بوډا پلاره او بوډۍ شنډې مور څخه تولد شو او دادتکویني نظام له عادت څخه ګوښې بلکې خارق العاده پیښه وه، نو له دې وروسته یې داسې څه بیان کړل چې تر لومړی تولد خورا زیات خارق العاده وو او هغه دحضرت عیسی علیه السلام دزیږیدلو کیسه ده کوم چې پرته له پلاره زیږیدلی او تر پخوانۍ زښته زیات عجیب او نادره وو او غرض له دې کیسې نه په نصاراوو باندې رد کول دي هغوی چې حضرت عیسی علیه السلام یې په خدایې او الوهیت منلی وو نو یې دهغه زیږیدل دحضرت مریمې څخه ذکر کړل چې دعیسی علیه السلام بشریت څرګند شي او بیا یې دهغه دمعجزاتو یادونه وکړه چې په استازیتوب او رسالت یې دلالت وکړئ او داچې هغه علیه السلام یو دهغو انبیاوو څخه دی چې په لاس یې معجزاتې او خارق العاده کارونه ترسره شوې دي او نور دربوبیت او خدایې کوم صفات پکې نه وو.

## لغتونه:

(انباء) دنبأ جمع او مهم خبر ته وايي. (نوحیه) موږ وحي کوو ، په زړه کې دیوي معنی اچول په پټه سره وحي بولي. (اقلامهم) قلمونه ددوی قلم هغه معروف څیز چې ورباندې لیکنه کیږي او کله ، کله په غشي هم اطلاق کاوو شي هغه چې ورباندې قرعه اچول کیږي او دلته همدا وروستی مراد دی. (المسیح) له مشرفو القابو څخه یو لقب دی لکه صدیق او فاروق اصل یې (مسیحا) چې په عبرانۍ مبارک ته ویل کیږي.[1] (وجیها): شریف مخه ور او هغه د روي او عزت خاوند ته وايي. (المهد) دماشوم فراش ته مهد یا ځانګو وايي. (کهلا) هغه چې دځوان او بوډا تر مینځ وي او میرمنې ته (کهلة) وايي. (الاکمه) موږزاده ړانده ته وايي. (الابرص) هغه ناروغي ده چې دانسان پوستکی سپین واوړوي او نه رغیدونکي ناجوړي ده.

[1] - الکشاف ۱/۲۷۸.

تفسير:

﴿ وَإِذْ قَالَتِ الْمَلَـٰٓئِكَةُ يَـٰمَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰكِ ﴾ (او ياد کړه ای محمده !) هغه وخت چي وويل پرښتو (جبريل) ای مريمې ! بيشکه چي الله غوره کړي يې ته ) له ټولو ښځو څخه او ته يې په کراماتو سره ځانګړي کړي يې. ﴿ وَطَهَّرَكِ ﴾ (او پاکه کړي يې ته له پليدي ،چټلي او له هغو تورونو او تهمتونو څخه چي يهودانو به دزنا درپوري تړل ) ﴿ وَاصْطَفَىٰكِ عَلَىٰ نِسَآءِ الْعَـٰلَمِينَ ﴾ (او غوره کړې يې ته په ګردو ښځو دعالميانو ترڅو ته دالله جل جلاله دقدرت مظهر شي چي بې پلاره زوی راوړي. ﴿ يَـٰمَرْيَمُ اقْنُتِي لِرَبِّكِ ﴾ (ای مريمي ! فرمان برداره شه لپاره درب خپل يعني دهغه عبادت او طاعت کوه او د ده شکر اداکړه چي ته الله ته غوره يې ) ﴿ وَاسْجُدِي وَارْكَعِي مَعَ الرَّٰكِعِينَ ﴾ (او سجده او رکوع کوه له نورو رکوع کوونکو سره (يعني په جماعت لمونځ کوه له نورو لمونځ کوونکو سره ) ﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ ﴾ (دا دحني (دعمران ميرمني) او دهغې دلور مريمي اوزکريا او يحيى عليهم السلام قصي له اخبارونو دغيبو څخه دي چي موږ يې په وحي سره تاته (ای محمده !) درليږو ، تاته پخوا نه وې معلومي. ﴿ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُونَ أَقْلَـٰمَهُمْ أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ ﴾ ( او نه وې ته (ای محمده ! )حاضر په نزد ددوی کله چي دوی غورځول قلمونه خپل چي کوم يو ددوی پالنه وکړي دمريمي) يعنې ته .. له دوی سره نه وې هلته چي دوی دمريمي دروزنې په هکله سيالي کوله او خپل غشي يې دقرعي په ډول وغورځول چي هريوه غوښتل هغه وروزي. ﴿ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴾ (او نه وې ته په نزد ددوی کله چي دوی جګړه سره کوله (په کفالت دمريمي کې) غرض دادی چي دغه اخبار دعليم او خبير ذات له لوري وحي ده. روايت کيږي چي کله حضرت مريمه له حنې مبارکې څخه وزيږيدله نو (حنې) هغه په يوه ټوکر کې ونغښته مسجد ته يې يوړه او داحبارو په وړاندي يې کښيښودله ، دغه احبار لکه دکعبې متوليان غوندي دبيت المقدس مجاوران او پرده داران وو ، نو يې ورته وويل: (دونکم هذه النذيرة)يعني دغه نذر مي ستاسو په مخ کي وړاندي کړپالنه يې وکړي بيا دوی دهغې (مريمي )دروزنې په هکله پالنه کې يو له بله سيالي پيل کړه ځکه هغه ددوی دامام لور وه ، وروسته چي قرعه يې واچوله ،قرعه دحضرت زکريا عليه السلام ته راوختله اوهغه يې روزنه په غاړه واخيسته .([1]) ابن کثير وايې چي الله جل جلاله دهغې د تکفل او پالنې لپاره ځکه حضرت زکريا عليه السلام وټاکل چي دهغه له پريمانه علم او سپيڅلي عمل څخه مريمه ونډه واخلي. ﴿ إِذْ قَالَتِ الْمَلَـٰٓئِكَةُ يَـٰمَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ ﴾ (ياد کړه (ای محمده !) هغه وخت چي وويل ملائکو (جبرائيل) ای مريمې ! بيشکه الله زيري درکوي تاته په يوې کلمې سره چي له طرفه د ده ) يعنې ديو داسي مولود چي دالله ديوې کلمې په واسطه به پيدا کيږي دپلار واسطه به نه غواړي.

[1] - الطبري ٣٥١/٦.

﴿ ٱسْمُهُ ٱلْمَسِيحُ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ ﴾( نوم دهغه مسیح ،عیسی زوی دمریمي دی ) نو م به يې عیسی او لقب به يې مسیح وي او مور ته به يې څکه نسبت کیږي چي داوفهمول شي چي بې پلاره زیږیدلی دي ﴿ وَجِيهًا فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْأٓخِرَةِ ﴾ (پداسې حال کې چي مرتبه والا دی په دنیا کې او آخرت کې ) . ﴿ وَمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ ﴾ ( او (دالله ) له مقربانو څخه دی ) ﴿ وَيُكَلِّمُ ٱلنَّاسَ فِى ٱلْمَهْدِ وَكَهْلًا ﴾ ( او خبرې به کوي له خلکو سره په مهد او کهولت کې ) یعني کله چي وړوکی ماشوم وي هم به خبري کوي او کله چي د پوره عمر خاوند شي هم زمخشري وايې چي پدې دواړو حالتونو کې به دانبیاوو خبري کوي، دماشوم توب او بشپړ عمر دخبرو به يې څه توپیر نه وي([1]) او بې له شکه چي دغه نو داعجاز هغه وروستی پړاو دی ﴿ وَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ (او له صالحانو څخه به وي یعني دهغو کسانو چي په تقوی او صلاح کې کامل دي ) ﴿ قَالَتْ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِى وَلَدٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِى بَشَرٌ ﴾ (وویل مریمې: ای ربه زما ! څرنګه به پیدا شي ما لره زوی؟ حال داچي زه بشر نه یم مس کړي ) یعني څنګه به مې اولاد پیدا شي زه خو میړه نلرم؟ ﴿ قَالَ كَذَٰلِكِ ٱللَّهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ﴾ (وویل (جبریل) همداسې ( بې دنارینه له مس څخه ) الله پیدا کوي هغه چي اراده وفرمايې یعني همداسې الله ته څه سخته نه ده او دوالدینو په سبب يې پیدا کوي همدارنګه بې له سببه يې پیدا کوي ﴿ إِذَا قَضَىٰٓ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴾ (هر کله چي اراده وکړي (الله) دیوه کار پس بیشکه هم داخبره ده چي ووايې هغه شي ته چي پیدا شه، پس پیدا شي) . ﴿ وَيُعَلِّمُهُ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ (او ورزده کوي هغه ته (الله) کتاب (لیک) .

﴿ وَٱلْحِكْمَةَ ﴾ (او حکمت ،ژوري خبري او عمل دانبیاوو په سنت باندي) ﴿ وَٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ ﴾ ( او تورات او انجیل یعني هغه به يې حفظ وي . ) ابن کثیر وایې چي دحضرت عیسی علیه السلام دا دواړه کتابونه په یاد وو . ﴿ وَرَسُولًا إِلَىٰ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ (او استازی (رسول) دبني اسرائیلو طرف ته (چي دوی ته به وایې) . ﴿ أَنِّى قَدْ جِئْتُكُم بِـَٔايَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ (بیشکه زه په تحقیق راغلی یم تاسي ته په لویه علامه (هغه چي زما په رښتنولي دلالت کوي او هغه داچي الله جل جلاله زما ملاتړ په معجزاتو کړی دی زما د صدق علامه داده چي : ﴿ أَنِّىٓ أَخْلُقُ لَكُم مِّنَ ٱلطِّينِ كَهَيْـَٔةِ ٱلطَّيْرِ ﴾ (بیشکه زه جوړوم تاسي ته (ای بني اسرائیلو ) له ختو څخه په شان دشکل د مارغه ) . ﴿ فَأَنفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيْرًۢا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾ ( نو پو کوم په دې شکل کې پس کیږي هغه شکل مرغه په اذن (حکم) د الله سره . ابن کثیر وایې چي همداسي به يې کول له ختې څخه به يې دمرغه شکل جوړ کړ او پکې پو به يې کړل هغه به په سترګو لیدل کیده چي

---

[1] - الکشاف ۱/ ۲۷۸.

الوتل به د الله په حکم سره او دا دهغه معجزه وه چې د ده د استازیتوب په رښتنولي يې دلالت کاوو.[۱]

﴿ وَأُبْرِئُ ٱلْأَكْمَهَ وَٱلْأَبْرَصَ ﴾ (او روغوم مورزاده ړوند او پيس (برگ) او دا دوهمه معجزه ده.

﴿ وَأُحْيِ ٱلْمَوْتَىٰ بِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾ (او ژوندی کوم مړی په اذن (دالله سره) ) يعني زه ځيني مړي ژوندي کوم نه پخپل توان او قدرت سره بلکې دالله په حکم سره او دهغه په قدرت سره او څلورتنه يې ژوندي کړي چې يو (عازر) دحضرت عيسى عليه السلام دوست او ملګرى بل (ابن العجوز) او بل بيا (بنت العاشر) څلورم (سام بن نوح) وو ، همدا راز قرطبي او نورو مفسرينو ليکلي دي د(اذن الله) کلمه يې څو ځله تکرار راوړه چې له ده څخه دالوهيت توهم دفع شي. ﴿ وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ ﴾ (او خبروم زه تاسي په هغه شي چې تاسي يې ، خورئ او هغه شى چې تاسي (يې) ساتي پخپلو کورونو کې) يعني تاسو ته دپټو شيانو په څرګندولو خبر درکوم چې تاسي پکې هيڅ شک نلري نو به يې يو چاته چې څه به يې خوړلي وو او يا به يې په کور کې زيرمه کړي وو ، خبر ورکول او دا يې څلورمه معجزه وه. ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ (بيشکه په دې (معجزو) کې هرومرو نشانه ده تاسې لره که يې تاسي مؤمنان ) يعني پدې معجزاتو کې زما درښتنولي څرګندي علامې دي که تاسي دالله په آيتونو باور کوئ بيا يې دوى ته ددې اخبار ورکړ چې هغه دموسى عليه السلام درسالت په تائيد کې راغلى دى ،

ويې ويل: ﴿ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ ﴾ (حال داچې مصدق يم دهغه کتاب چې پخوا له ما نازل شوى دى چې تورات دى) يعني زه دموسى رسالت تصديق کوم او هغه چې په تورات کې راغلي دهغو تائيد کوم. ﴿ وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ ٱلَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ ﴾ ( او بل راغلى يم تاسې ته لپاره ددې چې حلال کړم لپاره ستاسې ځينې له هغو شيانو چې حرام کړي شوي وو په تاسو باندې (دموسى په شريعت کې). ابن کثير وايي: چې پدې کې دادليل شته چې حضرت عيسى عليه السلام د حضرت موسى عليه السلام دشريعت ځينې حکمونه منسوخ کړي دي او داصحيح ده . ﴿ وَجِئْتُكُم بِـَٔايَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ (او راغلى يم تاسي ته په (هرقسم ) معجزې له طرفه (درب ستاسي ) ) يعني زه په ګواهې ورکونکو معجزو سره هغه چې زما درسالت درښتنولي او صحت شاهدې ورکوي راغلى يم چې الله معجزاتې راکړي دي دايې په تکرار سره ددې لپاره راوړل چې تاکيد يې وشي. ﴿ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ (نو وويريږئ له الله او ومنئ (ويينا ) زما). ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَٱعْبُدُوهُ ﴾ بيشکه چې الله رب زما او ستاسې دى نو بندګي کوئ تاسې دده) يعني زه او تاسي دهغه په بندګي کې سره برابر يو. ﴿ هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴾ (همدا لار ده سمه صافه ) څکه دالله عبادت او له هغه څخه ويره دهغه په وحدانيت اقرار کول داسيخه لاره ده چې کږوالى پکې نشته.

---

[۱] - مختصر ابن کثير ۲۸۴/۱.

بلاغت:

۱- (واذ قالت الملائکة): دلته تسمیه دخاص په اسم دعام راغلی څکه ملائکه عام او حضرت جبریل خاص دی چي دي صنعت ته مجاز مرسل وايي او تعظيم دخاص پکي مقصد دی.

۲- پدي کلام کي چي فرمايي: (اصطفاک وطهرک واصطفاک)، اطناب دی څکه چي (اصطفاک) کلمه دوه ځله او همدا راز دمریم لفظ مکرر راغلی دی چي اطناب صنعت دی.

۳- (ولم یمسسني بشر) مس په دي کلام کي له جماع څخه کنایه راغلی ده لکه چي په حرث، لباس او مباشرت سره کنایه اراده شوي ده.

۴- (ولاحل لکم بعض الذي حرم) دلته (د احل) او د (حرم) ترمينځ طباق صنعت دی همدا راز پدي آیتونو کي ډير ځایونه حذف څو ځایونه اطناب او څه نور دبلاغت پلونه او لوري هم شته موږ نه دي راوړي چي طوالت (درازي) پيښوي

فائده:

پدي آيت شريف کي داسي تعبير فرمايي: (کذلک الله يخلق مايشاء) او دحضرت يحيی عليه السلام په کيسه کي وايي: (کذلک الله يفعل مايشاء) او پدي کي سر او راز دادی چي دعيسی عليه السلام پيدا ينبت بي له پلاره يوه اختراع او ايجاد دی چي عادي سبب پکي موجود نه دی نو دخلق ذکر ورسره مناسب دی اوهلته ديحيی عليه السلام په هکله خو خاوند او ميرمن ميره او ښځه دواړه موجود دي ليکن بوډا والی او شنډتوب عادتي موانع دي نو هلته دفعل ذکر او يادول مناسب دی والله اعلم.

تنبيه:

ځيني علماء کرام وايي چي الله تعالی په قرآن کريم کي پرته له مريمې دبلي ښځي نوم ذکر کړی نه دی پدي کي دا اشاره کيدای شي چي په نصاراوو رد راشي چي دوی به ويل، دادالله جل جلاله ميرمن ده (العياذ بالله) څکه ستر شخصيت دانه خوښوي چي دخپلي ميرمني نوم دخلکو په مينځ کي ياد کړي او لپاره ددي چي دعيسی عليه السلام نسبت پرته له پلاره هغي ته وشي، څکه فرمايي: (اسمه المسيح عيسی ابن مريم).[1]

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ فَلَمَّآ أَحَسَّ عِيسَىٰ مِنْهُمُ ٱلْكُفْرَ قَالَ مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى ٱللَّهِ قَالَ ٱلْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ ٱللَّهِ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَٱشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴿۵۲﴾ رَبَّنَآ ءَامَنَّا بِمَآ أَنزَلْتَ وَٱتَّبَعْنَا ٱلرَّسُولَ فَٱكْتُبْنَا مَعَ ٱلشَّٰهِدِينَ ﴿۵۳﴾ وَمَكَرُوا وَمَكَرَ ٱللَّهُ وَٱللَّهُ خَيْرُ ٱلْمَٰكِرِينَ ﴿۵۴﴾ إِذْ قَالَ ٱللَّهُ يَٰعِيسَىٰٓ إِنِّى مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَىَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا وَجَاعِلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوكَ فَوْقَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ثُمَّ إِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيمَا

---
۱- دصاوي حاشيه په جلالين کي وګورئ.

كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٥٥﴾ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْـَٔاخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّـٰصِرِينَ ﴿٥٦﴾
وَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ ۗ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿٥٧﴾ ذَٰلِكَ نَتْلُوهُ عَلَيْكَ مِنَ
ٱلْـَٔايَـٰتِ وَٱلذِّكْرِ ٱلْحَكِيمِ ﴿٥٨﴾ إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ ٱللَّهِ كَمَثَلِ ءَادَمَ ۖ خَلَقَهُۥ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴿٥٩﴾ ٱلْحَقُّ
مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴿٦٠﴾ فَمَنْ حَآجَّكَ فِيهِ مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا۟ نَدْعُ أَبْنَآءَنَا وَأَبْنَآءَكُمْ وَنِسَآءَنَا
وَنِسَآءَكُمْ وَأَنفُسَنَا وَأَنفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَل لَّعْنَتَ ٱللَّهِ عَلَى ٱلْكَـٰذِبِينَ ﴿٦١﴾ إِنَّ هَـٰذَا لَهُوَ ٱلْقَصَصُ ٱلْحَقُّ ۚ وَمَا مِنْ
إِلَـٰهٍ إِلَّا ٱللَّهُ ۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿٦٢﴾ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٦٣﴾ آل عمران ٥٢ - ٦٣

## مناسبت او تړاو:

او تر اوسه آيتونه دعيسى عليه السلام له کيسې څخه خبري کوي او په تيرو آيتونو کې الله جل جلاله مريمې ته په عيسى زيري ورکول يا د کړل بيايې دهغه معجزاتې او څرګند دلائل دده په نبوت بيان کړل او سره له دې تېولو دلائلو او معجزاتو چي دالله له لوري ورباندي دعيسي عليه السلام ملاتړ شوی وو بيا هم ډيرو بني اسرائيلو ورباندي ايمان نه راووړ او دالله ددښمنانو (يهودو) دهغه دوژلو تکل وکړ ، بيا الله ددوی له شر څخه هغه وژغورل او اسمان ته يې اوچت وخيژاوو.

## لغتونه:

(احس): له احساس څخه اخيستل شوی موندلو ته وايي. (الحواريون): دحواري جمع ده او دانسانانو غوره او سپيڅلو ته وايي لکه چي دمدني تولني ميرمنو ته حواريات وايې چي غوره رنګونه او خالص سپين والى پکې ليدل کيږي حواريون دعيسى عليه السلام اتباعو ته وايې لکه چي درسول الله صلى الله عليه وسلم پيروانو ملګرو ته چي اصحاب ويل کيږي دوى ته خکه حواريون ويل شوي چي زړونه يې سپيڅلي او پاک وو. (مکروا): مکر دوکې او فريب ته ويل کيږي او په اصل کې په پټه دفساد په لوړ هلو ،څلو ته مکر وايي. زجاج وايې چي ددې معنا چي (مکر الليل وامکر) داده چي تياره شوه او مکر دالله دهغوى استدراج کول دي پداسي ډول چي دوى پري نه پوهيږي دغه خبره له فراء څخه رانقل شوي ده. (نبتهل)ابتهال به وکړو په دعا کې تضرع ته ابتهال وايې ، ابتهال اصل په دعا کې زيار چي په دښمن باندي لعن وکړل شي څکه (بهلة ) لعنت ته وايي.

## دنزول سبب:

کله چي دنجران نصاراوو وفد رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغی او دحضرت عيسى عليه السلام په هکله يې له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مجادله کوله ، ورته ويل يې زموږ ملګري ته ولي بښکنځل کوي؟ رسول الله ورته وويل څه وايم ؟ دوی ويل ته وايې چي هغه بنده وو . رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل: هو ! هغه دالله بنده او پيغمبر وو او هغه کلمه وو چي حضرت مريمې (عذرا ) ته يې ورکړي وو بيا يې ورته وويل ايا تر اوسه دي هم بې پلاره زوی ليدلی دی ؟ که رښتيا دي ليدلي وي نو موږ ته يې مثال راوښيه بيا الله جل جلاله دا آيت نازل کړ: (ان مثل عيسى عندالله کمثل آدم ) دآيت تر پايه او روايت کيږي چي کله رسول الله صلى الله عليه وسلم دوى اسلام ته راوبلل ، هغوی وويل: موږ تر تا

پخوا لا مسلمانان وو ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: دروغ وایاست ، تاسې له اسلام څخه درې شیان منع کوي ، یو داچې وایاست الله جل جلاله زوی نیولی دی (دالله زوی شته) بل داچې دخنزیر غوښې خورئ او بل صلیب ته سجده کوئ ، نو دوی ورته وویل: دعیسی پلار څوک وو؟ بیا الله جل جلاله دا آیت نازل کړ: ان مثل عیسی عندالله .... تر دې ځایه چې فرمایي: (ثم نبتهل فنجعل لعنة الله علی الکافرین) . بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم دوی مباهلې ته راوغوښتل وروسته بیا ځینو ددوی په ځینو نورو ته وویل چې که مو مباهله وکړه پدې کنده کې به اور راباندې بل شي بیا یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل: ایا له دې پرته بل وړاندیز راته نه کوي؟ هغه ورته وویل: اسلام راوړل یا جزیه ورکول او یاهم جنګ ته تیار شي. بیا دوی جزیه ومنله.(۱)

تفسیر:

﴿ فَلَمَّآ أَحَسَّ عِيسَىٰ مِنْهُمُ ٱلْكُفْرَ ﴾ (نو کله چې معلوم کړ عیسی (په محسوس ډول) له بنې اسرائیلو څخه کفر) یعني دهغوی استمراري په ضلالت معلوم کړ او داچې دوی یې دقتل اراده لري. ﴿ قَالَ مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ وویل عیسی علیه السلام چې څوک دي مددګاران زما په طرف دالله کې ؟ مجاهد وایي چې معنا یې داده څوک مې دالله په لار کې پیروي او متابعت کوي ﴿ قَالَ ٱلْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ ٱللَّهِ ﴾ ( وویل حواریونو موږ یو مددګاران (ددین ) دالله ) یعنې هغو مؤمنانو ته چې تر ټولو پاک سپیځلي وو هغوی ددین مرستې ته ځان چمتو کړ. ﴿ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَٱشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴾ (ایمان مو راوړی دی په الله او شاهد شه ته (ای عیسی !) پدې چې بېشکه موږ مسلمانان یو یعنې موږ په الله باور لرو او په هغه څه چې تاراوړي او ته چې وي ګواه اوسه چې موږ ستا استازیتوب ته غاړه ایښې او په اخلاص سره ستا مرستندویان یو. ﴿ رَبَّنَآ ءَامَنَّا بِمَآ أَنزَلْتَ وَٱتَّبَعْنَا ٱلرَّسُولَ فَٱكْتُبْنَا مَعَ ٱلشَّٰهِدِينَ ﴾ (ای ربه ! زموږ ایمان راوړی دی موږ په هغه کتاب (انجیل) چې تا نازل کړی دی او پیروي مو کړې ده درسول ستا (عیسی علیه السلام) نو ولیکه موږ سره له شاهدانو ( په وحدانیت او رسالت) بیا وروسته الله پاک دهغو دوکه بازانو یهودانو خبر راوړی کوم چې دعیسی علیه السلام دقتل اراده یې درلوده ، فرمایي: ﴿ وَمَكَرُواْ وَمَكَرَ ٱللَّهُ ﴾ (او مکر وکړ کفارو په عیسی باندې) او مکر وکړ الله له دوی سره) یعني دوی دحضرت عیسی دقتل اراده لرله، الله جل جلاله هغه ته نجات ورکړ او ددوی له شر نه یې وژغورل او آسمان ته یې وخیژاوو. دوی هیڅ زیان او ربړ هم ورته ونه رساوو ، الله دحضرت عیسی علیه السلام (شبه ) پدغه خائن (یهوذا ) باندې وغورځوله او دې ته مشاکلةً مکر وویل شو.(۲) څکه الله فرمایي: ﴿ وَٱللَّهُ خَيْرُ ٱلْمَٰكِرِينَ ﴾ (او الله خیر دماکرینو دی) یعني الله ته دوې ډېر زیات قوي د(مکر) تدبیر لرونکی دی چې ددوی تدبیر یې ددوی په تدمیر کې ونغښت او په حدیث شریف کې راځي چې: (اللهم

۱- القرطبي ۴/۱۰۳ واسباب النزول للواحدي
۲- مشاکلت اتفاق په لفظ او اختلاف په معنی کې بولي ، مثال یې پخوا تیر شوی دی

﴿ إِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَىٰٓ إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ ﴾ (یاد کړه (ای محمده!) هغه وخت امکر لي ولا تمکر علي) چي وویل الله: ای عیسی ! بیشکه زه اخیستونکی یم ستا (له ځمکې نه) او پورته بیونکی یم ستا (طرف زما ته) یعني زه ستا پورته کونکی یم د آسمان لوري ته او وروسته بیا چي ستا تول اجل پوره شي مړ کوونکی یم او مقصود حضرت عیسی علیه السلام ته دده دنجات ورکولو زیری دی چي دیهودانو څخه به یې الله وژغوري او پرته له کوم زیان څخه به یې آسمان ته وخیژوي. قتاده وایې چي: دلته تقدیم او تاخیر دی، تقدیر یې داسي کیږي چي (اني رافعک الي ثم متوفیک بعد ذلک). اوطبری داسی راوړي وایې: نورو علماوو ویلي دي چي معنایې داده: کله چي وویل الله یاعیسی زه تاځان ته را اوچتوم اوپاکونکی یم ستاله هغوکسانوچي کافران دي اومړکونکی یم ستاکله چي دي دنیاته کوزکړم([1]) ﴿ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ (اوپاکونکی یم ستا (لیری کونکی) له هغو کسانو څخه چي کافران شوي دي) یعنی زه ستاژغورنکی یم داشرارو څخه هغه کسان چي ستا د وژلواراده یې کړی وه، حسن رحمه الله وایې: چي الله ﷻ هغه له یهودو، نصاراوو، مجوسو او دده دقوم له کافرانو څخه پاک کړ ﴿ وَجَاعِلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوكَ فَوْقَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ اوګرځونکی یم دهغوکسانوچي متابعت یې کړی ستادپاسه دهغو کسانوچي کافران (منکران) شوي دي تروړخي دقیامته پوري) یعني ستااتباع به په هغوکسانو چي ستاله نبوت څخه منکروي دپاسه وګرزوم او ترقیامته پوري به په هغوکسانو یې چي ددوئ سره مخالف وي بریالي کړم په جلالین تفسیرکي کښني وایې: (الذین اتبعوک) هغه کسان چي ستادنبوت تصدیق یې کړي هغه له مسلمانواونصاراوو څخه (فوق الذین کفروا) چي هغه یهودان وي په توره اودلیل به وربانديي دپاسه وي ﴿ ثُمَّ إِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ ﴾ بیا (خاص) طرف زماته دي راتګ ستاسو ﴿ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴾ اوزه به حکم وکړم په منځ ستاسي کښني په هغه شي کښني چي وي تاسي په هغه کښني اختلاف به موکاوو) یعني د عیسی ﷺ په هکله ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ﴾ (نوهرڅه هغه کسان چي کافران شوي دي نوزه به په عذاب کړم دوئ په عذاب سخت سره په دنیا اوپه آخرت کښني) یعني ستاپه نبوت کافران. اوستادملت مخالفینوته به سخته سزا اوعذاب ورکړم په دنیا کښني په قتل او اسارت سره اوپه آخرت کښني ددوزخ په اوربانديي ﴿ وَمَا لَهُم مِّن نَّٰصِرِينَ ﴾ (اونشته دوئ لره مددګاران) چي د دوزخ له عذابه یې وژغوري ﴿ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ ﴾ اوهرڅه هغه کسان چي ایمان یې راوړی اوکړي یې نیه عملونه نوپوره به ورکړی الله ﷻ دوئ ته اجرونه د عملونه ددوئ چي هیڅ کمي به پکښني نه وي ﴿ وَٱللَّهُ

---

[1] - طبری ۲/ ۴۵۸ اودخینو مفسرینو هغه خبره چي دورځي دري ساعته وفات شوا وبیا پورته شوا ودخینو هغه خبره چي دا یې مراد په وفات سره دخوب وفات دي داخبري ضعیفي او کمزوري دي محققینو وربانديي رد کړی دی قرطبی وایې: چي صحیح او سمه داده چي الله ﷻ هغه آسمان ته بی له وفاته وخیژاوو چي خوب هم نه وو لکه چي حسن او ابن زید رحمهما الله ویلی اوداطبری هم غوره ده او دصحت وجه یې له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی.

﴿ لَا يُحِبُّ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (او الله ﷻ نه خوښوي ظالمان )يعني الله ظالمان نه خوښوي نو په خپله به څرنګه په بندګانو ظلم وکړي ؟ ﴿ ذَٰلِكَ نَتْلُوهُ عَلَيْكَ ﴾(داچي تېر شول ) مونږ یې لولو پرتا اي محمده ) ﴿ مِنَ ٱلْءَايَٰتِ وَٱلذِّكْرِ ٱلْحَكِيمِ ﴾ له آیتونو د قرآنکریم محکم هغه چي: ( لا یاتیه الباطل من بين يديه ولا من خلفه ) ﴿ إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ ٱللَّهِ كَمَثَلِ ءَادَمَ ﴾ بیشکه مثل (صفت ) دعیسی په نزد د الله ﷻ په شان دآدم ﷺ ﴿ خَلَقَهُۥ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴾ چي الله جوړ کړ هغه آدم له خاوروڅخه بیایې وویل آدم ته چي ( بشر) شه پس ( بشر) شو نو امر او حال دعیسی ﷺ تر آدم ﷺ زیات عجیب او نادر نه دی ﴿ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴾ حق هغه دي چي راغلی دی له جانبه درب ستا ( په شان دعیسی کښي ) نو مه کیږه له شک کونکونه یعنی همدا حق قول دی دعیسی ﷺ په باب کي ته له شک کونکوڅخه مه کیږه ﴿ فَمَنْ حَآجَّكَ فِيهِ مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ ﴾ نو هرڅوک چي جګړه کوي له تاسره په ( باره ) دعیسی ﷺ کښي وروسته له هغه چي حاصل شوتاته ( صحیح ) علم ﴿ فَقُلْ تَعَالَوْا۟ نَدْعُ أَبْنَآءَنَا وَأَبْنَآءَكُمْ وَنِسَآءَنَا وَنِسَآءَكُمْ وَأَنفُسَنَا وَأَنفُسَكُمْ ﴾ نو ووایه ( اي محمده ) دوئ ته راځئ چي راوبولو زامن زمونږ اوزامن ستاسی او ښځي زمونږ او ښځي ستاسی او ځانونه خپل او ځانونه ستاسی ) دمباهلې لپاره په صحیح مسلم کښي روایت شوي کله چي دا آیت نازل شو رسول الله ﷺ حضرت فاطمه او حسن او حسین (رضي الله عنهم اجمعين ) راوغوښتل بیا یې وویل:( اللهم هؤلاء اهلي ) اي الله ! دا زما اهل دی ﴿ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَل لَّعْنَتَ ٱللَّهِ عَلَى ٱلْكَٰذِبِينَ ﴾ بیا به التجاء عاجزی وکړو ( په دعا کښي ) نو به ګرځوو مونږ ( وبه وایو ) لعنت دالله ﷻ په دروغجنانو باندی ) یعنی الله ته به عجز او زاري وکړو او وبه وایو چي (ای الله څوک چي دعیسی په شان کښي دروغ وایي ورباندی لعنت وکړه ! ) کله چي یې مباهلې ته راوغوښتل دوئ ممانعت وکړ او جزیه یې ومنله ، ابن عباس ﷺ روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که چیری هغه کسان چي له رسول الله ﷺ سره یې مباهله کوله راوتلی وایې نوبیا به داسی ستنیدل چي نه به یې اهل او نه به یې مال درلود. ابوحیان وایي چي پدی کښي چي نصاراوو (ملاعنت)او مباهله پرینبوده ستر شاهد دي چي دوئ د رسول الله ﷺ دنبوت په رښتنولي علم او پوهه درلوده(١) بیا الله ﷻ وفرمایل: ﴿ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ ٱلْقَصَصُ ٱلْحَقُّ ﴾ بیشکه دا (قصي چي مونږ تاته دعیسی ﷺ په شان کښي وکړې ) خامخا دا بیان حق دی ( هیڅ شک پکښی نشته ﴿ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ ( او نشته هیڅ برحق معبود مګر یوازی الله دی ) او پدی کښي په نصاراوو رد راغلی چي دوئ په تثلیث ایمان درلود ﴿ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ او بیشکه الله ﷻ خامخا هم دي ډیر غالب قوي دي (پخپله بادشاهی کښي ) حکمت والا دي (پخپله ) صنع کښي ) ﴿ فَإِن

١- البحر المحيط ٢ / ٤٨٠

تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِالْمُفْسِدِينَ ﴾ ( نو که وګرځیدل دوئ پس بیشکه الله ﷻ ښه پوه دی په فساد ( کونکو ) یعنی که دوئ له ایمانه او د توحید له اقراره وګرځیدل نو دوئ فساد کونکي او الله ﷻ وربانديِ پوه دی نو دوئ ته به سزا ورکړی.

بلاغت:

( فلما احس ) ابوحیان وایې چي دلته استعاره وه ځکه کفرخو غیرمحسوس وي او ورباندی پوهیدل په حواسونه کیږي نو دحس اطلاق وربانديِ کول استعاره ده لکه پدی قول کښې چي فرمايي: ( والله خير الماكرين ) مكر اوماكرين دالفاظو ترمنځ جناس اشتقاق دی او دادمشاکلې له دول ځخه دی.

۳ : ( فيوفّيهم اجورهم ) دلته دالتفات صنعت دي چي د تکلم له ضمير ځخه يې غائب ضمير ته کړي او دفصاحت تنوع افاده کوي.

۴ : ( الحق من ربّک ) دربوبیت عنوان ته تعرض له دي سره سره چي اضافت يې پيغمبر ته شوي دی درسول الله ﷺ دتعظیم او تشریف ځرګندونه کوي.

۵ : په دي کلام کښې چي فرمایې: ( فلاتکن من الممترين ) دادزیات تثبیت لپاره هڅونه او الهاب دی. ابوسعود همداسي ویلي دي.

لطیفه:

دالبحر المحيط مؤلف لیکلي چي یو سړی له ( جنید ) ځخه پوښتنه وکړه چي: ځرنګه الله خپل ځان په مکرستايې او هغه يې دبل چالپاره بدبللی دی نو جنید ورته وویل: په هغه ځه نه پوهیږم چي ته وايې خو فلاني ظهراني ماته داسي شعر ویلی دی چي:( ويقبح من سواک الفعل عندی ❁ فتفعله فيحسن منک ذاکا) یعنی هغه کار چي بل يې کوی ماته بد ښکاری ❁ خو چي ته يې کوې له تاسره ښکلی ایسې بیايې ورته وویل که ته پوهیږې ماستا ځواب وکړ.[1]

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا ٱللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِۦ شَيْـًٔا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ۚ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَقُولُوا۟ ٱشْهَدُوا۟ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴿٦٤﴾ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لِمَ تُحَآجُّونَ فِىٓ إِبْرَٰهِيمَ وَمَآ أُنزِلَتِ ٱلتَّوْرَىٰةُ وَٱلْإِنجِيلُ إِلَّا مِنۢ بَعْدِهِۦٓ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٥﴾ هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ حَٰجَجْتُمْ فِيمَا لَكُم بِهِۦ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَآجُّونَ فِيمَا لَيْسَ لَكُم بِهِۦ عِلْمٌ ۚ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾ مَا كَانَ إِبْرَٰهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿٦٧﴾ إِنَّ أَوْلَى ٱلنَّاسِ بِإِبْرَٰهِيمَ لَلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُ وَهَٰذَا ٱلنَّبِىُّ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ۗ وَٱللَّهُ وَلِىُّ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٦٨﴾ وَدَّت طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ لَوْ يُضِلُّونَكُمْ وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ وَمَا

[1] - البحر المحيط ۲/۴۷۲.

يَشْعُرُونَ ﴿٦٩﴾ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لِمَ تَكْفُرُونَ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ وَأَنتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿٧٠﴾ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لِمَ تَلْبِسُونَ ٱلْحَقَّ
بِٱلْبَـٰطِلِ وَتَكْتُمُونَ ٱلْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٧١﴾ وَقَالَت طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَـٰبِ ءَامِنُوا۟ بِٱلَّذِىٓ أُنزِلَ عَلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَجْهَ
ٱلنَّهَارِ وَٱكْفُرُوٓا۟ ءَاخِرَهُۥ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٧٢﴾ وَلَا تُؤْمِنُوٓا۟ إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ قُلْ إِنَّ ٱلْهُدَىٰ هُدَى ٱللَّهِ أَن يُؤْتَىٰٓ أَحَدٌ مِّثْلَ
مَآ أُوتِيتُمْ أَوْ يُحَآجُّوكُمْ عِندَ رَبِّكُمْ قُلْ إِنَّ ٱلْفَضْلَ بِيَدِ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٧٣﴾ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِۦ مَن
يَشَآءُ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٧٤﴾ ﴾ آل عمران ۶۴-۷۴

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې دالله تعالی کلام (قرآنکریم) په نصاراو وحجت ودراوو اوددوئ هغه دعوی چې مسیح یې معبود دو والله باطله کړه نو بیایې دواړه ډلې (یهود او نصاری) توحید ته راوبلل او داچې په ابراهیم ﷺ پسی اقتداء وکړی ځکه دهغه ملت (سمحاء حنفية) ووچې داسلام ملت دي هغه نه یهودی وواونه نصرانی لکه چې دوئ دواړه ډلې دعوی کوي اوبیایې دایادونه وکړه چې ابراهیم ﷺ ته دنسبت کیدلو څوک حق داره دی هغه محمد ﷺ اودهغه امت دی.

## لغتونه:

(سواء) عدل اونیاوته وایې (اولى) احق یعنی ښه حقداره (ودت) هیله لری (تلبسون) له لبس څخه اوخلط اوالتباس ته وایې لکه داچې: (لبس الامر علیه) کله چې دکوم کارپه هکله په اشتباه کښې واقع شي (وجه النهار) دورځې پیل ځکه لومړی چې له ورځې سره مخامخ کیږي پیل یې وی.

## دنزول سبب یې:

له ابن عباس ﷺ څخه روایت کاوه شي چې دنجران دیهودو اونصاراوو احبارچې له رسول الله ﷺ سره یوځای شول نو دابراهیم ﷺ په هکله یې شخړې پیل کړی یهودوبه ویل چې هغه نه وومګر یهودي وو اونصاراووبه ویل هغه نه وومګرنصراني بیا الله ﷻ دغه آیت نازل کړ: (ماكان ابراهيم يهوديًا ولا نصرانيًا ولكن كان حنيفًا مسلما)[1]

## تفسیر:

﴿ قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ﴾ وو ایه اي محمده چې اي اهل کتابو راځئ تاسي په طرف دیوې کلمې (خبري) چې برابره ده په منځ زموږ اوستاسې کښې) یعنی اي محمده دیهودو اودنصاراوو نه ته وو ایه راشئ یوې داسې کلمې ته چې زموږ اوستاسې ترمنځ دعدل او انصاف فیصله کوي﴿ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا ٱللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِۦ شَيْـًٔا ﴾ اوهغه داده چې عبادت به نه کوومګریوازې دالله ﷻ اوشریک به نه نیسو په الله پوری هیڅ شي ﴿ وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّن دُونِ

[1] مجمع البيان ۲ / ۴۵۲

﴿ ءَالِهَةً ﴾ اونه به نیسي ځیني زموږ ځیني نورخدایان غیرله الله ﷻ څخه لکه چي تاسي کتابیان یې نیسئ لکه چي یهوداونصارئ دعزیراوعیسئ علیهما السلام عبادت کوي اوداحباراورهبانوپیروي کوي چي هغوئ څه ورته حلالوي اوڅه حراموي هغوي یې مني روایت کاوه شي چي کله داآیت نازل شونو (عدی بن حاتم) وویل چي اي رسول الله کله موږ دهغوئ عبادت کاوو ! رسول الله ﷺ وفرمایل آیادوئ تاسوته نه حلالول اونه یې حرامول چي تاسوددوئ خبري منلی ؟ ! نوهغه وویل هو ! رسول الله ﷺ وفرمایل همدغ یې عبادت دی ﴿ فَإِن تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴾ نوکه وګرځیدل دوئ (له توحیدنه اودغ عادلانه بلنه یې ونه منله ) پس ووایې تاسی ( اي مؤمنانوکتابیانوته ) چي شاهدان شئ تاسی پدي چي په تحقیق سره موږ مسلمانان یو د الله په وحدانیت ایمان لرو یوازي هغه لره عبادت کوو ﴿ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لِمَ تُحَآجُّونَ فِىٓ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ اي اهل کتابوولی جګړه کوئ په (شان) دابراهیم کښي (چي داګومان کوئ هغه ستاسوپه دین وو ) ﴿ وَمَآ أُنزِلَتِ ٱلتَّوْرَىٰةُ وَٱلْإِنجِيلُ إِلَّا مِنۢ بَعْدِهِۦٓ ﴾ حال داچي نه دی نازل کړی شوي تورات اوانجیل مګرورسته له ده ( په سلهاووکلونه ) نوڅنګه به هغه یې پیرو وي ؟ ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ آیانوهیڅ عقل نلرئ تاسی ؟ ! چي داستاسی خبره ڇتی اوباطله ده پس تحقیق دادی چي دابراهیم ﷺ اوموسی ﷺ ترمنځ یوزرکاله موده وه اودموسی اوعیسی علیهما السلام ترمنځ بیا دوه زره کاله وخت وونوهوښیارسړی به څنګه داسی ووایې ؟ استفهام دلته دتوبیخ لپاره دي ﴿ هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ حَٰجَجْتُمْ فِيمَا لَكُم بِهِۦ عِلْمٌ ﴾ ( واورئ خبردارشئ هغه کسان چي جګړه مو کړی ده په هغه شي کښي چي ووتاسی ته پکښي یوڅه علم ) یعنی اي دیهودواونصاراووډلې تاسی چي دعیسی ﷺ په هکله جګړه کړی وه داهغه زمانه وه چي تاسی پکښي اوسیدی نوڅه ګومان چــي موکاووهغه موو کـړ ﴿ فَلِمَ تُحَآجُّونَ فِيمَا لَيْسَ لَكُم بِهِۦ عِلْمٌ ﴾ نوولي جګړه کوئ په هغه شي کښي چي نشته تاسي لره په هغه کښي هیڅ علم ) چي هغه دابراهیم ﷺ شان دی کوم چي تاسی هغه ته نسبت دیهودیت اونصرانیت کوئ اوهیڅ علم هم نلرئ آیاداحماقت اوناپوهي نه ده ؟ ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ ( حال داچي الله پوهیږي اوتاسي نه پوهیږئ ) یعنی الله ﷻ ته دابراهیم ﷺ په هلکه حق معلوم دی اوتاسی پری نه پوهیږئ جاهلان یاست ابوحیان وایې : دادهغوئ رابلل دی چي حق واورئ لکه چي ته یوچاته وایې چي هغه ناخبره وي : واوره چي زه ښه پوهیږم په هغه څه چي ته وربانديي خبرنه یې.(١)بیا الله ﷻ دابراهیم ﷺ په هکله ددوئ دعوی داسی دروغ څرګنده کړه ﴿ مَا كَانَ إِبْرَٰهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا ﴾ ( نه وو ابراهیم یهودي اونه نصراني ) یعنی نه خوابراهیم دیهودیت په دین وواونه هم دنصرانیت څکه یهودیت تحریف شوي دموسی ﷺ له شریعت نه دي اوهمدارنګه نصرانیت دعیسی ﷺ له شرعي څخه تحریف شوي دي.

---

(١) البحر المحیط ۲/ ۴۷۲

﴿ وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا ﴾ ( وليكن وودي حنيف (مائل) له ګردو باطلوادیانو څخه حق دین ته ) اومسلمان (دحکم منونکي وو ) ﴿ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾ اونه وو ابراهیم له مشرکانونه ) یعنی هغه مسلمان ومشرک نه وواوپدې کښي دوې ته تعریض دي چي دوئ مشرکان دی څکه چي دوئ وایي:(عزیر بن الله اوعیسی ابن الله) اودمشرکینو ددعوي رددی چي دوئ دابراهیم ﷺ په دین دی

﴿ إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ ﴾ بیشکه ډیرنژدې له خلګونه ابراهیم ته هرومرو هغه کسان دی چي متابعت یې کړې وودده ) یعنی دده پیروان او هغه کسان چي دده په عصر اویا وروسته کښي دده په لاره لارویان وي﴿ وَهَٰذَا النَّبِيُّ ﴾ اودانبی ( محمد ﷺ ) دی ﴿ وَالَّذِينَ آمَنُوا ﴾ اوهغه کسان دی چي ایمان یې راوړی دی ( له محمدی امته ) نودوئ ددي حقدار ه دي چي ووایې: موږ دابراهیم په دین یو نه تاسو.

﴿ وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوالله ولی ( دوست اوناصر ) دمؤمنانودی اوکله چي یهودانو ځني اصحابو رضوان الله علیهم ته دیهودیت بلنه ورکړه داآیت نازل شو ﴿ وَدَّت طَّائِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يُضِلُّونَكُمْ ﴾ دوست ګڼي هیله کوي یوه طائفه له اهل کتابوڅخه ددي چي ګمراه کړي تاسي ) یعنی دوئ ستاسی دګمراهی هیله من دی چي خپل دین ته مووړواړوي اودغه کاردکیني اوسرغرونی له مخی کوي ﴿ وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ ﴾ اونه ګمراه کوي ( په واقع کښي نه ښویوي ) دوئ مګرنفسونه خپل ( چي وبال اوعذاب یې هم دوئ ته راجع کیږي ) اوددوئ عذاب زیاتیږي﴿ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴾ اودوئ (پدی ) نه پوهیږي ) بیا وروسته قرآنکریم ددوئ ددغه بدکارتوبیخ اوترټنه کوي فرمایې: ﴿ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَأَنتُمْ تَشْهَدُونَ ﴾ ای اهل کتابوولي کافران کیږئ تاسی په آیاتونود الله (قرآنکریم چي په محمد ﷺ ) نازل شوي دی ) حال داچي تاسی شاهدان یې ( پوهیږئ چي داحق دی )﴿ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تَلْبِسُونَ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُونَ الْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ یا اهل کتابوولي ګډوئ تاسی حق له باطلو( چي شبهې ، تحریف ، اوتبدیل کوئ ) سره اوپټوئ تاسی حق (دمحمدنبوت) حال داچي تاسی پوهیږئ چي دادمحمد ﷺ صفت ستاسوپه کتابونو کښي راغلی دی اوتاسویې پټوئ بیا الله تبارک وتعالی ددوئ له مکراوپلیتي څخه دیوبل ډول ذکرکوي چي دوي په لومړیو کښي داسلام څرګندونه کوي اوپه پاي کښي ځنی اوړی چي خلګوته داسلام په دین کښي شکوک اوشبهات پیداکړی فرمایې: ﴿ وَقَالَت طَّائِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمِنُوا بِالَّذِي أُنزِلَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوا آخِرَهُ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ وویل یوی طائفي له اهل کتابو بلې طائفې ته ) چي ایمان راوړئ په هغه (قرآن) چي نازل کړی شوي دی په هغو کسانوچي مؤمنان دی په اول دورځي کښي اوکافران شئ ( اي کتابیانو ) په آخردورځي کښي لپاره ددي چي دوئ ( مومنان هم لکه کتابیان ) ( له ایمانه ) وګرځي ابن کثیروایې چي داهم ددوئ دوکه اوچل ووچي په ضعیفواوکمزورو مسلمانانو باندی یې ددین په هکله پوښتني راپورته کولی دوئ داسی جرګه وکړه چي

ګهيځ به دايمان څرګندونه کوي اوله مسلمانانوسره به لمونځ ګذاری کله چي دورځي پای شي نوبه له اسلامه بيرته خپل دين ته اوړی ترڅوناپوهه کسان ووايي چي داددوئ ګرځيدل خامخاپه يوعيب اونقص بنادی چي دوئ داسلام په دين کښي موندلی دی.(١) ﴿ وَلَا تُؤْمِنُوٓا۟ إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ ﴾ (اومه منئ تاسی ( اي کتابيانو دهيچا ) مګر دهغه چاچي متابعت يې کړي وي ددين ستاسی ) داهم ديهودودکلام تتمه ده چي الله ﷻ ځني حکايت کړي چي داسی يې معناکيږي تاسو دهيچاپه خبره باور مکړئ اوخپل سر اورازهيچاته مه واياست مګريوازي هغوکسانوته يې وايي چي ستاسوپه دين وي ﴿ قُلْ إِنَّ ٱلْهُدَىٰ هُدَى ٱللَّهِ ﴾ ( الله فرمايي چي اي محمده دوئ ته ) ووايه بيشکه هدايت ( حق دين ) هدايت دالله اسلامي دين دي ) يعني هدايت اولاربښوونه ستاسوپه لاس نه ده دادالله ﷻ کاردی چي څوک دايمان لوری ته هدايت کوي اوريااندی ثبات ورکوي لکه چي يې مومنانوته ورکړی دغه جمله اعتراضيه ده اوله دی وروسته بيا ديهودوکلام دی چي ﴿ أَن يُؤْتَىٰٓ أَحَدٌ مِّثْلَ مَآ أُوتِيتُمْ أَوْ يُحَآجُّوكُمْ عِندَ رَبِّكُمْ ﴾ ( اوداچي ولی ورکړي شي يوچاته په مثل دهغو( فضائلو ) چي ورکړی شوي دي تاسوته ؟ اوحجت قائم کړئ اوغالب شي پرتاسی په نزددرب ستاسي ) يعني ځيني يهودوځينونوروته وايي چي تاسی په چا باورمه کړئ اوخپل راز چاته مه واياست مګريوازی هغه چاته يې واياست چي ستاسوپه دين وی وګورئ هغه چاچي دنبوت دعوی يې کړی که ستاسوددين متابعت يې کاوونوتاسی يې هم ومنئ اوکه نه دروغ يې وګڼئ اودهيچاپه نبوت اعتراف اواقرار مه کوئ مګرچي ستاسي په دين وي له دي کبله چي ويره شته چي ورکول شي دوئ ته هغه فضائل چي تاسوته درکول شوي اوله دی ويري چي قائم کړي پرتاسی حجت دالله ﷻ په وړاندی نوکه دمحمد ﷺ په نبوت مواقراروکړاوپه دين کښي يې داخل نه شوئ دابه پرتاسودقيامت په ورځ دليل وي ددي ويلوڅخه ددوئ مقصددرسول الله ﷺ دنبوت انکاراونه منل وو. ﴿ قُلْ إِنَّ ٱلْفَضْلَ بِيَدِ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ﴾ ( ووايه اي محمده ) بيشکه فضل په قدرت دالله کښي دي ورکوی يې هغه چاته چي اراده وکړی) يعنی دنبوت امرتاسوته ندی سپارل شوي دادالله ﷻ په لاس کښي دي ټول فضل اوخيرله الله ﷻ سره دی چاته چي يې اراده شي ورکوي يې ﴿ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴾ اوالله ﷻ پراخ دی رحمت فضل اواحسان دده )ښه عالم (اوپوه دی ) دالله ﷻ انعامات اوورکړی زښته زياتی اوپه هغه چاښه خبردی چي څوک يې اهل دی﴿ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِۦ مَن يَشَآءُ ﴾ ( ځانګړی کوي په رحمت خپل هغه څوک چي اراده يې وکړی ) يعنی خاصوي په نبوت سره هغه چي دچااراده وکړی ﴿ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ اوالله ﷻ څښتن دفضل ډيرلوی دی ) چي هيڅ پای اومانع نلري.

بلاغت:

په دي آيتونو کښي دفصاحت اوبلاغت ډيرډولونه شته لکه داچي ! مجازراغلی دی پدی کلمه کښي (الی کلمة) چي ديوې کلمې نوم يې په جمع لوررولی دي.

---

(١) مختصرابن کثير١/٢٩١

تشبیه: لکه پدی جمله کښي ( اربابًا ) څکه ددوئ دخپلو رئیسانو پیروي اواطاعت یې دتحلیل اوتحریم په هکله درب سره چي دعبادت مستحق دی مشابه کړی دی.

طباق : پدی کلام کښي ( الحق بالباطل ) اوتام جناس لکه دلته ( یضلونکم ومایضلون ) بل اشتقاقی جناس لکه: ( أولی ) او ( ولی ) همدارنګه په ډیروځایونو کښي دتکرار او حذف صنعتونه راغلی دی.[1]

فائده:

رسول الله ﷺ دروم پاچا هرقل ته یولیک وکیښ چي هغه ته یې داسلام بلنه ورکړه په لیک کښي یې په هغه آیت شریف استشهادوکړی په کوم کښي چي دیوازی الله ﷻ لپاره دعبادت اخلاص راغلی اودلیک متن یې په صحیح مسلم کښي راغلی دادی: بسم الله الرحمن الرحیم. من محمد رسول الله الی هرقل عظیم الروم سلام علی من اتبع الهدی امابعد: فانی ادعوک بدعایة الاسلام اسلم تسلم وأسلم یؤتک الله اجرک مرتین فان تولیت فان علیک اثم الاریسیین ( الفلاحین والخدم ) و: یا اهل الکتب تعالوا الی کلمة سواء بیننا وبینکم ان لا نعبد الا الله ولا نشرک به شیئاً ولا یتخذ بعضنا بعضاً اربابا من دون الله فان تولوا فقولوا اشهدوا بانا مسلمون.[2]

***

الله تعالی فرمایي:

﴿ وَمِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مَنْ إِن تَأْمَنْهُ بِقِنطَارٍ يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ وَمِنْهُم مَّنْ إِن تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَّا يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَائِمًا ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٥﴾ بَلَىٰ مَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِ وَاتَّقَىٰ فَإِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ﴿٧٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٧﴾ وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيقًا يَلْوُونَ أَلْسِنَتَهُم بِالْكِتَابِ لِتَحْسَبُوهُ مِنَ الْكِتَابِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتَابِ وَيَقُولُونَ هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٨﴾ مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُؤْتِيَهُ اللَّهُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا عِبَادًا لِّي مِن دُونِ اللَّهِ وَلَٰكِن كُونُوا رَبَّانِيِّينَ بِمَا كُنتُمْ تُعَلِّمُونَ الْكِتَابَ وَبِمَا كُنتُمْ تَدْرُسُونَ ﴿٧٩﴾ وَلَا يَأْمُرَكُمْ أَن تَتَّخِذُوا الْمَلَائِكَةَ وَالنَّبِيِّينَ أَرْبَابًا أَيَأْمُرُكُم بِالْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿٨٠﴾ ﴾

آل عمران: ۷۵-۸۰

مناسبت اوتړاو:

کله چي الله ﷻ داهل کتابو قبائح ذکرکړل اوددوئ پلیتي ،دوکي، اوچالاکي یې بیان کړی نوورپسي یې دیهودانوځني نورصفتونه راوړل چي هغوئ له دووخواووخیانت کاووچي یویې مالي اوبل دیني

---

[1] - البحر المحیط.
[2] - صحیح بخاری ومسلم

خیانت وودوئ له الله او خلګو دواړو سره خیانت کاووود الله ﷻ د کلام یې تحریف کاوواو د خلګو مالونو خوړل یې حلال ګڼل .

لغتونه:

(قنطار) ډیر مال ته وایې او پخواتېرشو ( قائمًا ) ملازم او همیشه غوښتونکي . ( الأُميين ) مراد ځیني عرب دی او اصل یې له ( أم ) ځخه (أم )مورته وایې ځکه یې مورته نسبت کوي چي دوئ لیک او لوست نه پیژانده ( یلوُن) له ( للی) ځخه اخیست شوي دي او هغه پیچلو ته او تاوولو ته وایې او مقصد لته ددوئ دژبو پیچل او تاوول دی چي دوئ به له نازل شو آیتونو ځخه خپلې ژبی تاوولی ځو تحریف شوي آیتونه ووایې ( لاخلاق) نشته نصیب او برخه ددوئ له رحمت د الله نه ( ربانیین ) رب ته منسوب کسان طبری وایې چي معنا یې ده حاکمان او عالمان.([1])

دنزول سبب:

اشعث بن قیس ﷺ وایې زما او یو بل تن یهودی ترمنځ زما ځمکه وه او هغه ورڅخه منکر شو ما رسول الله ﷺ ته د( محاکمي لپاره ) وړاندی کړ بیا رسول الله ﷺ راته وویل آیا ستا شاهدان شته ؟ ! ما ورته وویل نه بیا یې یهودی ته وویل چي ته قسم وکړه ما ویل هغه خو قسم کولو ته تیار دی زما مال خو ولاړ بیا الله ﷻ دغه آیت نازل کړ: ( ان الذين يشترون بعهد الله .... ) دآیت ترپایه پوري.([2])

تفسیر:

﴿ وَمِنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ مَنْ إِن تَأْمَنْهُ بِقِنطَارٍ يُؤَدِّهِۦٓ إِلَيْكَ ﴾ ( او ځیني له اهل کتابو ځخه هغه ځوک دی که امین کړی ته دي په ډیر مال باندی نو بیرته به وسپاری دا(مال) تاته(ځکه هغه امین دی لکه عبدالله ابن سلام چي یو قریشي ورته یوزر اوقیه دسروزرو امانت ایښي ووهغه بیرته ورکړل ﴿ وَمِنْهُم مَّنْ إِن تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَّا يُؤَدِّهِۦٓ إِلَيْكَ ﴾ ( او ځینی له دوئ ځخه هغه دی که امین کړی ته هغه په یوه دینار باندی نو اداء به نکړی دی دادینار تاته ) ځکه هغه خائن وي لکه ( فنحاص بن عازوراء) چي یو قریشي یو دینار ورته ایښی ووهغه ورباندي منکر شو ﴿ إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا۟ لَيْسَ عَلَيْنَا فِى ٱلْأُمِّيِّۦنَ سَبِيلٌ ﴾ ( دغه په امانت کښي خیانت ) په سبب ددی دي چي بیشکه دوئ وویل نشته پرموږ باندی په ( حق ) ددي امیانو کښي هیڅ ګناه ( چي مالونه یې وخورو ) یعنی ددوئ دغه ګومان چي ویل به یې الله د امیانو مالونه دوئ ته روا کړی دی خیانت ته اړ ایستلی دی ، روایت کیږي چي یهود انو به ویل( نحن ابناء الله واحباءه ) موږ د الله زامن او دوستان یو نور خلګ زموږ مریونه دی نو که چیري دخپلو مریونو مالونه وخوروڅه ګناه نشته اوچابیا ویلي چي یهودو به ویل : الله دهغو کسانو مالونه چي زموږ ددین مخالف دي زموږ لپاره رواکړي دي ﴿ وَيَقُولُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ او وایې دوئ په الله باندی دروغ حال داچي دوئ

[1] - الطبری ۲/ ۵۴۰
[2] - القرطبی ۴/ ۱۲۰

پوهيږي ) چي ددوئ دغه دعوي دروغ اوافتراء ده روايت كاوه شي چي كله دوئ داوويل چي : ( ليس علينا في الاميين سبيل ) نودالله نبي ﷺ وفرمايل : ( كذب اعداء الله مامن شئ كان في الجاهلية الاهوتحت قدمي هاتين الا الامانة فانها مؤداة الي البروالفاجر ) دالله دښمنان دروغ وايي دجاهليت دزماني ټول ارزښتونه زماترپښولاندی دي مګردامانت ساتنه چي هغه بايد نيكوكاراو فاجردواړو ته وسپارل شي.(١)

شي(١) بيا الله ﷻ فرمايي : ﴿ بَلَىٰ مَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِۦ وَٱتَّقَىٰ فَإِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُتَّقِينَ ﴾ (ولی نشته عذاب ؟) بلكه شته ا هر څوک چي وفا وكړی په عهد خپل (چي ايمان په نبي اوداماناتو ساتنه ده ) او پرهيز ګاري وكړي (له كفر او خيانته )نو بيشكه الله پرهيز ګاران دوست ګڼي يعني دغسي نه ده لكه چي دوی ګومان كوي بلكه پردوی باندی ددوی په دغه عمل ګناه شته ليكن كه ددوی څوک داماناتو وركړه وكړي په رسول الله ﷺ ايمان راوړي له الله څخه وويريږي نو الله ﷻ يي نازوي او دوست يي ګڼي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ ٱللَّهِ وَأَيْمَـٰنِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ ( بيشكه هغه كسان چي پيری دوئ په عهد دالله باندی اوپه قسمونو خپلو قيمت لږ) يعني دوئ هغه عهدچي درسول الله درسالت يې تصديق كړی ووبدلوي اوپه خپلوپه دروغو قسمونو كولوباندی دنيالږمتاع اخلي اوپيري . ﴿ أُو۟لَـٰٓئِكَ لَا خَلَـٰقَ لَهُمْ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ ﴾ دغه كسان نشته هيڅ برخه ددوئ دپاره په آخرت كښي ( درحمت دالله ) ﴿ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ ٱللَّهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ ﴾ اونه به خبری وكړي له دوئ سره الله ﷻ ( په خوښي ) اونه به وګوري الله ﷻ دوئ ته ( په رحم سره ) دقيامت په ورځ كښي ﴿ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ اونه به پا ک كړي دوئ الله ﷻ د ګناهونو ( له خيرو ) اوشته دوئ ته عذاب دردناک ( په سبب دهغو ګناهونو ددوئ ) ﴿ وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيقًا يَلْوُۥنَ أَلْسِنَتَهُم بِٱلْكِتَـٰبِ ﴾ اوبيشكه ځيني له دوئ څخه خامخايوفريق دی چي اړوي دوئ ژبې خپلي په لوستلو ) دكتاب كښي ( چي معناګاني يې تحريف كړی اودالله ﷻ كلام له خپل مرادڅخه تبديل كړي ابن عباس ﷺ وايې چي هسی يې تحريفوي چي دالله له مرادڅخه بغيريې تأويل وكړی ﴿ لِتَحْسَبُوهُ مِنَ ٱلْكِتَـٰبِ وَمَا هُوَ مِنَ ٱلْكِتَـٰبِ ﴾ لپاره ددی چي وګڼئ تاسی دا( محرف عبارتونه ) له كتاب نه حال داچي نه دی دا( محرف عبارتونه ) له كتاب ( منزل) څخه يعني دايوازي ګمراه كونكي بهتان دی ﴿ وَيَقُولُونَ هُوَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ ﴾ اووايې دوئ چي دا(محرف عبارتونه ) له جانبه د الله ﷻ څخه دی حال داچي نه دی دا( محرف عبارتونه راغلی له(جانبه ) دالله نه ) يعنی دوئ يې الله ته نسبت كوي اودا په الله پسی دروغ تړل دی. ﴿ وَيَقُولُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ ( اووايې دوئ په الله باندی دروغ حال داچي پوهيږي دوئ په خپلودروغوباندی ) چي داپه الله دروغ اوافتراء ده وروسته الله په نصاراووباندی هغوئ چي ګومان يې كاووچي عيسى ﷺ دوئ ته حكم كړي چي عبادت يې وكړي داسی

---

١- القرطبی ۴/ ۱۱۹

رد فرمايي: ﴿ مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُؤْتِيَهُ ٱللَّهُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحُكْمَ وَٱلنُّبُوَّةَ ﴾ نه ښايي هيڅ بشرته چي ورکړی ده ته الله کتاب اوحکمت اونبوت ﴿ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا۟ عِبَادًا لِّى مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ بيا دئ وايي خلکوته چي شئ تاسی بندګان (عبادت کونکي ) مالره بی له الله ﷻ څخه ، دلته دنفی صيغه دعمومی نفی لپاره ده هغه چي عقل يې ثبوت روانه بولی غرض داچي ا هيڅکله داسمه خبره نه ده اونه هم عقل دداسی دعوی دکولو تصورکوي چي يونبی دی هغه چي الله ورته نبوت اوشريعت ورکړی وي له خلکوڅخه دی دځان لپاره دعبادت غوښتنه وکړی څه خوداچي بالفعل داکارموجودشي څکه رسول اوپيغمبرخودالله ﷻ اومخلوق ترمنځ دسفيرحيثيت لری چي خلګ دالله دعبادت لوري ته رهبری کړی نوبيا څرنګه به يې دځان عبادت ته وغواړی ؟﴿ وَلَٰكِن كُونُوا۟ رَبَّٰنِيِّۦنَ ﴾ ولکن ( وايې چي شئ تاسی ربانيين ابن عباس ﷺ وايې هسي عالمان چي دحکمت اوحلم خاوندان وې معنی داچي زه تاسودځان عبادت ته نه رابولم خوتاسوته بلنه درکوم چي شئ علماء فقهاءاودالله ﷻ داوامرومنونکي ﴿ بِمَا كُنتُمْ تُعَلِّمُونَ ٱلْكِتَٰبَ وَبِمَا كُنتُمْ تَدْرُسُونَ ﴾ په سبب ددي چي يې تاسی چی ښوونه کو ئ (خلکو ته )کتاب او په سبب ددي چي تدريس کوئ کتاب ( اودرس اخلئ پخپله )﴿ وَلَا يَأْمُرَكُمْ أَن تَتَّخِذُوا۟ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ وَٱلنَّبِيِّۦنَ أَرْبَابًا ﴾ ( اونه کوي امرتاسی ته ددي چي ونيسئ تاسی پرښتې اوانبياء خدايان ) يعنی اونه ښايې چي تاسوته دغيرالله دعبادت امروکړي چي هغه ملائک اوانبياء دي څکه درسولانو دنده دالله ﷻ لوري ته بلنه اويوازي دهغه دعبادت دکولولارښوونه ده ﴿ أَيَأْمُرُكُم بِٱلْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴾ ( اياامرکوي تاسي ته ( نبی ) په کفرسره وروسته له دی چي يې تاسی مسلمانان) يعنی آياستاسونبی وروسته له دي چي تاسی ايمان راوړي اوداسلام په دين کښي داخل شوي ياست وروسته دالله ﷻ دوحدانيت څخه دانکاراوکفرامردرته کوي ؟! دلته استفهام انکاری اودتعجب لپاره دی.

**بلاغت:**

۱- ( ذلک بانهم قالوا) دلته په بعيد سره اشاره ددوئ دشراوفسادهغه وروستی پړاوته درسيدلواشاره ورکوي.

۲- پدي کلام کښي چي فرمايي : ( ليس علينافي الاميين سبيل )،ايجازبالحذف دی چي تقديريې داسي دی (ليس علينافي أکل اموال الأميين سبيل ).

۳- ( يشترون بعهدالله ) دلته استعاره اودشراء لفظ يې داستبدال څخه مجاز راوړی دی.

٤- ( ولايکلمهم الله ) دلته بياکلام نه کول دالله ﷻ دغضب له شدت څخه مجاز راغلی دی اوهمدارنګه په وروستی نوروکښی لکه( ولاينظراليهم .... ولايزکيهم ) کښي.

٥- پدی کلام کښي چي فرمايې: (ولاينظراليهم ) زمخشري وايې چي دغه دسپکاوي اوغضب نښه ده څکه يوڅوک چي دچاپاملرنه نکوي ورته نه ګوري.

٦- په مينځ دلفظ د( اتقي ) او( المتقين ) کښي اشتقاقي جناس اوبيادا( الکفر) او(المسلمون )ترمنځ دطباق صنعت دي.

فائده: روايت کيږي او ابن کثير ليکلي چي: يوه سړی ابن عباس ﷺ ته وويل چي موږ ته د غزا په مهال د ذميانو څخه مال لګه چرګه او پسه رسيږي ابن عباس ﷺ ورته وويل چي تاسو ګڼبي څه وايا ست؟ ورته ويې ويل چي موږ وايو څه پروا نلري هغه وفرمايل: دا لکه هغه د اهل کتابو وينا غوندی دی چي ويل يې: (ليس علينافي الأميين سبيل) چي کله دوئ جزيه ورکوي نو بيايې مال خوړل روانه دی مګر چي د دوئ په خوښه وي.

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَـٰقَ النَّبِيِّـۧنَ لَمَآ ءَاتَيْتُكُم مِّن كِتَـٰبٍ وَحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُولٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهِۦ وَلَتَنصُرُنَّهُۥ ۚ قَالَ ءَأَقْرَرْتُمْ وَأَخَذْتُمْ عَلَىٰ ذَٰلِكُمْ إِصْرِى ۖ قَالُوٓا۟ أَقْرَرْنَا ۚ قَالَ فَٱشْهَدُوا۟ وَأَنَا۠ مَعَكُم مِّنَ ٱلشَّـٰهِدِينَ ﴿٨١﴾ فَمَن تَوَلَّىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَـٰسِقُونَ ﴿٨٢﴾ أَفَغَيْرَ دِينِ ٱللَّهِ يَبْغُونَ وَلَهُۥٓ أَسْلَمَ مَن فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَإِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ﴿٨٣﴾ قُلْ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ عَلَيْنَا وَمَآ أُنزِلَ عَلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْمَـٰعِيلَ وَإِسْحَـٰقَ وَيَعْقُوبَ وَٱلْأَسْبَاطِ وَمَآ أُوتِىَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَٱلنَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴿٨٤﴾ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَـٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ ﴿٨٥﴾ كَيْفَ يَهْدِى ٱللَّهُ قَوْمًا كَفَرُوا۟ بَعْدَ إِيمَـٰنِهِمْ وَشَهِدُوٓا۟ أَنَّ ٱلرَّسُولَ حَقٌّ وَجَآءَهُمُ ٱلْبَيِّنَـٰتُ ۚ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿٨٦﴾ أُو۟لَـٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ ٱللَّهِ وَٱلْمَلَـٰٓئِكَةِ وَٱلنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿٨٧﴾ خَـٰلِدِينَ فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ ٱلْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٨٨﴾ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٨٩﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بَعْدَ إِيمَـٰنِهِمْ ثُمَّ ٱزْدَادُوا۟ كُفْرًا لَّن تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلضَّآلُّونَ ﴿٩٠﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَمَاتُوا۟ وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ ٱلْأَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ ٱفْتَدَىٰ بِهِۦٓ ۗ أُو۟لَـٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن نَّـٰصِرِينَ ﴿٩١﴾ ﴾ آل عمران ۸۱ - ۹۱

مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی د اهل کتابو هغه خيانت چي د کلام الله تحريف يې کاوو د رسول الله ﷺ صفتونه يې هغه چي د دوئ په کتاب کښي راغلی وو اړول ترڅو ورباندی ايمان نه راوړی نو د لته الله پاک هغه څه چي په دوئ دليل ګرځي ذکر کړل او هغه دا چي الله سبحانه وتعالی له انبياوو څخه کلکه وعده اخيستی که چيری د رسول الله (محمد ﷺ) د بعثت موده وموميې ورباندی ايمان به راوړی او د هغه له پيروانو او مرستندويانو څخه به ياست نو چي له انبياوو څخه وعده اخيستل شوي چي ورباندی ايمان به راوړی او په بعثت به يې خلګو ته زيری ورکوی نو د انبياوا تباعو ته به څنګه روا وی چي د محمد ﷺ تکذيب وکړی؟ بيا الله ﷺ دا وښودله چي په ټولو نبيانو ايمان راوړل د ايمان لپاره شرط دي او دايې څرګنده کړه چي اسلام هغه حق دين دی چي الله ﷺ له هغه پرته بل دين نه مني.

لغتونه:

( میثاق ) هغه ټینګه او کلکه وعده چي په قسم او یا بل څه یې توثیق شوي وی لکه چي پخواهم تیر شو ( اصری) زما وعده او په لغت کښي ( اصر) درونډوالی ته وایې زمخشری لیکی عهدته اصرځکه وایي چي ترل کیږی([1]) (الفاسقون ) دالله ﷻ له طاعت څخه وتلی (طوعًا) په خپله خوښه غاړه ایښودل(کرهًا) په زوره ورباندی منل ( الاسباط) دسبط جمع اولمسی ته وایې اوذلته مراد دبني اسرائیلو قومونه دی چي د یعقوب عليه السلام له اولادې څخه دی ( ینظرون ) وخت ورکول ویل کیږی ( انظره ) یعنی مهلت ورکړه ( الخلسرون ) خسران درأس المال کمیدلوته وایې ،وایې چي ( خسرفلان ) یعنی رأس المال یې تاواني شو ( الضالون) دکفرپه دښتو کښې لار ورکی لالهانده او حیران.

دنزول سبب:

له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت شوي دی چي له انصارو څخه یوتن له اسلام څخه مرتداوله مشرکانو سره یوځاي شو بیا وروسته پښیمان شو او بیا یې خپل تبرته وویل چي: له رسول الله ﷺ څخه راته پوښتنه وکړئ چي زه په خپلو کړو پښیمانه یم آیا زما توبه شته ؟ بیا دا آیت نازل شو : کیف یهدی الله قومًا کفروا......تردی قوله الاالذین تابوامن بعدذلک واصلحوافان الله غفور رحیم ) او بیا یې قوم ورته ولیکل هغه راستون او مسلمان شو .([2])

تفسیر:

﴿ وَإِذْ أَخَذَ ٱللَّهُ مِيثَٰقَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ ﴾ او یاد کړئ اي ( اهل کتابو ) هغه وخت چي واخیست الله محکم عهدله ټولو انبیاوو ﴿ لَمَآ ءَاتَيْتُكُم مِّن كِتَٰبٍ وَحِكْمَةٍ ﴾ ( چي خامخا هغه شي چي درکړم زه تاسی ته چي هغه کتاب او حکمت دی یعنی له هغه کبله چي درکړی دی ما تاسی ته کتاب او حکمت طبری وایې چي (لما) د( مهما ) په معنی دی﴿ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُولٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ ﴾ بیا راشي تاسی ته رسول ( محمد ) چي مصدق رښتیاوونکي دی دهغه کتاب چي له تاسو سره دي﴿ لَتُؤْمِنُنَّ بِهِۦ وَلَتَنصُرُنَّهُۥ ﴾ نوهرومرو به ایمان راوړئ تاسی خامخا په هغه او خامخا به ورسره مرسته کوئ ابن عباس رضي الله عنه وایې الله پاک هیڅ نبی نه دی رااستولی مګردغه محکم عهد یې ځیني اخیستی دی چي که چیري رسول الله محمد ﷺ رااستول شو او دی ژوندی وو او رومرو به ورباندی ایمان راوړی او مرسته به یې کوی او الله ﷻ ورته فرمایلي دي چي له خپله امته هم دغه ټینګه وعده او عهد واخلئ﴿ قَالَ ءَأَقْرَرْتُمْ وَأَخَذْتُمْ عَلَىٰ ذَٰلِكُمْ إِصْرِى ﴾ وویل (الله دوی ته )ایا اقرار وکړ تاسو په دغه (ایمان او نصرت)او واخیسته تاسی پردی (ایمان او نصرت)ټینګه وعده زما ؟﴿ قَالُوٓا۟ أَقْرَرْنَا ﴾ وویل دوئ اقرار وکړ موږ (په دی )﴿ قَالَ فَٱشْهَدُوا۟ وَأَنَا۠ مَعَكُم مِّنَ ٱلشَّٰهِدِينَ ﴾ وویل

[1] - الکشاف ۱/ ۲۹۰.

[2] ) اخرجه النسائی وانظر القرطبی ۴ / ۱۲۹

( الله ) اوتاسی شاهدان اوسي ( په خپل نفس اواتباعو ) اوزه هم له تاسی سره له شاهدانوځيني يم
پرتاسواودوئ باندی ) ﴿ فَمَن تَوَلَّىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ ﴾ ( نوهرڅوک چي بيرته وګرځيد وروسته له دی ) يعنی
عهد يې مات کړ ﴿ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴾ نودغه ( دشاکرخونکی کسان ) هم دوئ فاسقان دی )
يعنی دالله له طاعت څخه وتلي دي ﴿ أَفَغَيْرَ دِينِ اللَّهِ يَبْغُونَ ﴾ آيانوغيردالله له دين څخه غواړی ؟
( دوئ بل دين ) همزه دلته دتوبيخ اوانکارلپاره ده يعنی آيا اهل کتاب له اسلامه پرته هغه چي الله
پيغمبران ورباندی رااستولی بل دين غواړي ؟ ﴿ وَلَهُ أَسْلَمَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ حال داچي الله
ته غاړه ايښي وه هرهغه چي په آسمانونوکښي اوپه ځمکه کښي دي ﴿ طَوْعًا وَكَرْهًا ﴾ په خوښه ياپه
زوره قتاده وايې چي مسلمان په خوښه غاړه ايښی اوکافرپه زوره هلته چي ورته دغه غاړه ايښودل ګټه
نلري([1])ابن کثيروايې چي مسلمان قلبًا اوقالبًا په خپله خوښه الله ته غاړه ايښي اوکافرپه داسی حال
کښي الله ته غاړه ايښی چي زور ورباندی راغلی څکه هغه ترداسی قهر اوسطان لاندی دی چي هيڅکله
يې مخالفت اوممانعت نه کيږي([2]) ﴿ وَإِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ﴾ اوبيا(خاص ) هم ده ته بيرته بيول کيږی،
( دقيامت په ورځ اوهرچاته به دخپل عمل جزاء ورکول شي ) ﴿ قُلْ آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنزِلَ عَلَيْنَا ﴾ ووايه
ای ( محمده ته اوامت دی اهل کتابوته ) ايمان راوړئ دی موږ په الله ﷻ اوپرهغه کتاب چي نازل کړی
شوي دي پرموږ ( قرآن ) ﴿ وَمَا أُنزِلَ عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ ﴾
اوپرهغو(صحيفو) چي نازلی کړی شوي دی پرابراهيم اواسماعيل اواسحاق اويعقوب اوپراولادده
(دوئ ) باندي ﴿ وَمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ ﴾ اوپرهغوچي ورکړل شوي دي موسی ته (چي تورات )اوعيسی
ته(چي انجيل دی ) ﴿ وَالنَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ ﴾ اونوروانبياووته له جانبه درب ددوئ ( چي ورکړی شوي
آيتونه دی ) ﴿ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ ﴾ ( نه کوفرق په مينځ دهيڅ يوه ددوئ کښی ) يعنی داسی نه
کووچي په ځينوايمان راوړواوپه ځينويې نه راوړولکه چي يهودواونصاراووهمداسی کول موږ په
تولوايمان راوړو او منويې ﴿ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ﴾ (اوموږ( خاص ) الله ته غاړه ايښودونکي يو ) يعنی
يوازی دهغه عبادت کوو هغه په الوهيت اوربوبيت سره منو له هغه سره هيڅکله شريک نه نيسو ، بيا الله
فرمايې چي له اسلامه پرته بل هردين باطل دی ﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ ﴾ ( اوهرڅوک
چي غواړی غيرله اسلامه بل دين نوله سره به ونه منانه شی له ده نه ) يعنی هرڅوک چي پرته داسلامی
شريعت نه بل شريعت وروسته دمحمد ﷺ له بعثت نه غواړی الله ﷻ به يی هيڅکله ورڅخه قبول نکړی

([1]) الطبری ۶/ ۵۷۹
([2])مختصرابن کثير۱/ ۳۹۷

﴿ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴾ حال دا چي وي به دی په آخرت کښي له زيانكارانو (چي پدی سبب به تل په دوزخ کښي پاتی کيږی ) ﴿ كَيْفَ يَهْدِي اللَّهُ قَوْمًا كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ﴾ خرنګه به سمه صافه لاره ښيي الله ﷻ هغه قوم ته چي کافران شوي دی وروسته له ايمان راوړلو ددوئ ، استفهام دلته دتعجب لپاره دی اودا چی کفر ډیره ستره ګناه ده يعنی خرنګه دوئ دهدايت وړاو مستحق کيدای شي چي له ايمان راوړلو وروسته کافران شوي دی ﴿ وَشَهِدُوا أَنَّ الرَّسُولَ حَقٌّ ﴾ حال دا چي شاهدي ورکړی ده دوی په دی چي بيشکه رسول حق دی ﴿ وَجَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ﴾ اوراغلی دی دوئ ته معجزي ښکاره ( دنبی ﷺ پرصداقت اورښتنولی باندی ) ﴿ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴾ ( اوالله نه کوی هدايت قوم دظالمانو ته ) يعنی الله يې دنيکمرغی په لاري تللو ته توفيق نه ورپه برخه کوی حسن رحمه الله وايې چي : دغه کسان يهوداونصارادی دوئ چي په خپلو کتابونو کښي دمحمد ﷺ صفات وليدل اوشاهدي يې وويله چي دا حق دي اوکله چي ددوئ له ټبراوقوم څخه په بل قوم کښي مبعوث شونو دوئ بيا له عربو سره حسد اورخه واخيستله اوله ايمان راوړلو وروسته کافران شول .[1] ﴿ أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴾ دغه کسان جزاددوئ داده چي بيشکه پردوئ دی لعنت دالله اولعنت دپرښتو اودټولو خلکو ! ﴿ خَالِدِينَ فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴾ حال دا چی دوئ به تل په ( اور ) کښي وی نه به سپکاوه شی له دوی څخه عذاب ( ددوزخ ) اونه به دوئ ته مهلت ورکړل شی ﴿ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا ﴾ مګرهغه کسان چی توبه يې وکښله ( بيرته اسلام ته راوګرځيدل ) وروسته له دی ( ارتداده ) اونيک يې کړل ( عملونه ) خپل ﴿ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ ( نو بيشکه الله ښه مغفرت کونکي ډيررحم والاد ی ) يعنی الله پخپل فضل سره ورته مغفرت کوی اوورباندی رحمت لوروی ﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا ﴾ ( بيشکه هغه کسان ( له يهودو ) چي کافران شوی دی ( په انجيل اوعيسی ) وروسته له ايمان راوړلو ( په تورات اوموسی ) بيا يې زيات والی وکړ په کفرکښي ( په نه منلو دقرآن اومحمد ) داآيت ديهودانو په شان کښي نازل شوي دي ﴿ لَّن تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ ﴾ له سره به نه قبليږی توبه ددوئ ترڅوچي پخپل کفرپاتی وي ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الضَّالُّونَ ﴾ اودغه کسان هم دوئ ګمراهان دی ) يعنی دحق له لار ی څخه کږولاروته وتلی دی بيا الله تعالی دهغه چاپه هکله چي کافروی اوپه کفرکښي ومري داسی فرمايي : ﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ ﴾ بيشکه هغه کسان چي کافران شويدي اومړه شوي دي حال دا چي دوي کافران دي ) اوتوبه يې نه دی ايستلی دغه حکم دټولو کافرانو په باب کي عام دي ﴿ فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَىٰ بِهِ ﴾ نوله سره به قبول نشي له

[1] - الطبری ۲/۵۷۵

به د دوئ څخه په ډک والی د مځکي سره زر او اگر که فدیه ورکړي په دغو تولو زرو سره ﴿ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ (دغه کسان شته دوئ لره عذاب دردناک ﴿ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴾ (او نشته دوئ لره هیڅ مددگاران) چي دوئ دالله له عذابه څخه وژغوري.

**بلاغت:**

۱- پدی کلام کښي چي فرمايي: ( لما آتيتكم ) التفات دي چي له غیاب څخه حضورته راغلی څکه تردي له مخه ( ميثاق النبيين ) راغلی دي.

۲- په منځ دلفظ د( اشهدوا) او د(شاهدين ) کښي اشتقاقي جناس او همدا رنگه په منځ د( كفروا) او ( كفرا) کښي نوموړی جناس او دبديعي محسناتو څخه گڼل کیږي.

۳- په دي کلماتو کښي چي فرمايي: ( طوعا) او( كرها) د طباق صنعت دی او همدا رازم( كفر) او (ايمان) د الفاظو ترمنځ.

۴- پد ي کلام کښي چي الله ﷻ فرمايي: ( اولئک هم الضالون ) او( اولئک هم الفاسقون ) دلته قصر دصفت په موصوف پوري راغلی دي.

۵-( وماأوتي موسى وعيسى والنبيون) دغه کلام له بابه دعطف دعام پرخاص باندی گڼل کیږي.

۶- پدی جملو کښي چي فرمايي: ( ولهم عذاب اليم ) دمؤلم په معنا او دفعیل صیغه دمبالغي لپاره راوړل شوي ده.

**فائده:**

په دغو مبارکو آيتونو کښي کافران په دري ډوله ویشل شوي دي.

۱- هغه چي رښتنی توبه يې کښلي وي او هغه ورته گټه ورسوی دغو ته پدی آيت کښي اشاره فرمايي ( الاذين تابوامن بعدذلک).

۲- هغه خلک چي یوازي په نامه یې توبه کښلی وي فاسده توبه وي او ورته نفع نه رسوی هغوئ ته په دی قول اشاره راغلی ده: ( كفروابعدايمانهم ثم ازدادوا كفرا).

۳- آوپو ډول هغه کسان دی چي بيخی يې توبه نه وي کښلي او په کفر باندی مره شوي وي دهغو په هکله دا آيت اشاره فرمايي: ( ان الذين كفروا وماتوا وهم كفار).

**تنبیه:**

له انس بن مالک ﷺ څخه بخاری او مسلم يو روایت راوړی چي نبی ﷺ وفرمایل دقیامت په ورځ به د دوزخ له کسانو څخه یو چاته وویل شي: آیا که چیری په مځکه کښي ستا هرڅه واي ( د دي عذاب څخه دژغورلو په بدله کښي دي فدیه ورکول ؟ نو هغه به وایي هو ! الله ﷻ به ورته ووايي تردی ورو کي څیز ماله تاڅخه غوښتی وو ماستاد پلار په ملا ( ظهر ) کښي له تاڅخه داژمنه ( وعده ) اخیستی وه چي له ماسره به شريک نه نیسی خو تا ونه منله او له ماسره دی شريک غوره کړ.

الله تعالی فرمايي:

﴿لَن تَنَالُوا ٱلۡبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ ۚ وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيۡءٖ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٞ ﴿٩٢﴾ ۞ كُلُّ ٱلطَّعَامِ كَانَ
حِلّٗا لِّبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسۡرَٰٓءِيلُ عَلَىٰ نَفۡسِهِۦ مِن قَبۡلِ أَن تُنَزَّلَ ٱلتَّوۡرَىٰةُ ۗ قُلۡ فَأۡتُوا بِٱلتَّوۡرَىٰةِ فَٱتۡلُوهَآ إِن كُنتُمۡ
صَٰدِقِينَ ﴿٩٣﴾ فَمَنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ ٱلۡكَذِبَ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٩٤﴾ قُلۡ صَدَقَ ٱللَّهُ ۗ فَٱتَّبِعُوا مِلَّةَ
إِبۡرَٰهِيمَ حَنِيفٗا وَمَا كَانَ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴿٩٥﴾ إِنَّ أَوَّلَ بَيۡتٖ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكٗا وَهُدٗى لِّلۡعَٰلَمِينَ ﴿٩٦﴾ فِيهِ
ءَايَٰتُۢ بَيِّنَٰتٞ مَّقَامُ إِبۡرَٰهِيمَ ۖ وَمَن دَخَلَهُۥ كَانَ ءَامِنٗا ۗ وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ حِجُّ ٱلۡبَيۡتِ مَنِ ٱسۡتَطَاعَ إِلَيۡهِ سَبِيلٗا ۚ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ
ٱللَّهَ غَنِيٌّ عَنِ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿٩٧﴾ قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَكۡفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَٱللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا تَعۡمَلُونَ ﴿٩٨﴾ قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ
ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ مَنۡ ءَامَنَ تَبۡغُونَهَا عِوَجٗا وَأَنتُمۡ شُهَدَآءُ ۗ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُونَ ﴿٩٩﴾ يَٰٓأَيُّهَا
ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا إِن تُطِيعُوا فَرِيقٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا ٱلۡكِتَٰبَ يَرُدُّوكُم بَعۡدَ إِيمَٰنِكُمۡ كَٰفِرِينَ ﴿١٠٠﴾ وَكَيۡفَ تَكۡفُرُونَ وَأَنتُمۡ تُتۡلَىٰ
عَلَيۡكُمۡ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ وَفِيكُمۡ رَسُولُهُۥ ۗ وَمَن يَعۡتَصِم بِٱللَّهِ فَقَدۡ هُدِيَ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴿١٠١﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ
حَقَّ تُقَاتِهِۦ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسۡلِمُونَ ﴿١٠٢﴾ وَٱعۡتَصِمُوا بِحَبۡلِ ٱللَّهِ جَمِيعٗا وَلَا تَفَرَّقُوا ۚ وَٱذۡكُرُوا نِعۡمَتَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ
كُنتُمۡ أَعۡدَآءٗ فَأَلَّفَ بَيۡنَ قُلُوبِكُمۡ فَأَصۡبَحۡتُم بِنِعۡمَتِهِۦٓ إِخۡوَٰنٗا وَكُنتُمۡ عَلَىٰ شَفَا حُفۡرَةٖ مِّنَ ٱلنَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنۡهَا ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ
ٱللَّهُ لَكُمۡ ءَايَٰتِهِۦ لَعَلَّكُمۡ تَهۡتَدُونَ ﴿١٠٣﴾﴾ آل عمران ۹۲ - ۱۰۳

**مناسبت او تړاو:**

څرنګه چې الله پاک دکفاروحال اودهغه وروستي پړاوذکرکړاودايې څرګنده کړه که کافران دمځکې سر سره زرقرباني کړي ورته به ګټه ونه رسوي نوداستطراد په ډول يې دلته بيا هغه څه راوړل چې مؤمنانوته ګټه رسوی ترڅودالله خوښي اودجنت نيکمرغي يې په برخه شي اوبيايې هغه خبره راوګرځوله کوم چې اهل کتابوبه دنبوت ، رسالت اوداسلامي دين دبرحق ګڼلوپه باب شکونه اوشبهات درلودل څوهغه رفع اودفع کړي اوبياوروسته ددوئ دفريبونواودوکو په هکله چې داسلام اومسلمانانو په وړاندی يې پلی کولي ترڅودهغوئ وحدت اويووالی ته زيان ورسوي اوصف يې تارپه تارکړي بيان راغلی دي.

**لغتونه:**

( البر) دخيرښيګڼولپاره يوه جامع کلمه ده اودلته مرادڅینی جنت دي ( حِلا) حلال داهسی مصدردی چې ورباندی صفت کړل شوي دي څکه نوواحد، جمع اومذکر، مؤنث پکښې برابردی (اسرائيل) هغه يعقوب ﷺ دی ( بكة) دمکې نوم دی هغې ته بکه اومکه دواړه وايې (بکه) يې څکه بولی چې هغه دکبرجنوخلګوورمېږونه تاووي يعنی کله چې جبابره يې دورانولو قصدوکړی الله ﷻ يې په ملاماتوي .

( مباركا) دبركت خاوند بركت زياتوالى اودخيرډيروالي ته وايي ( مقام ابراهيم ) دابراهيم ﷺ ددريدلوځاى اوداهغه تيږه ده چي دكعبې دودانولوپه وخت به وربانډى دريدلو( عوجا) ميل اوكږوالى ته وايي ابوعبيده وايي چي كږوالى په دين ، عمل ،اوكلام كښي (عوجا )بولى چي دعين په كسره سره وى اوكه چيري يې زبراوفتحه درلوده په هغه دديوال اويادونى ښاخ كښي كږوالى مراددى ( يعتصم ) اعتصام په اصل كښي منع اودلته دتمسك اوالتجاء په معنى دى قرطبى وايي چي هرمنګولي خښونكي په يوشي متمسك معتصم اوهرمنع كونكى له شي څخه (عاصم ) بلل كيږي.[1] الله ﷻ فرمايي: (قال لاعاصم اليوم من امرالله ) (شفا) شفاپه زبرسره ديوشي څنډه اوغاړه (شفير) هم پدى معنا ده لكه (شفاحفرة )دكندې څنډه الله فرمايي ( على شفاحفرة ) .

دنزول سبب:

روايت كاوه شى چي :(شاس بن قيس ) يهودي داوس اوخزرج انصاروپه يوه ټولۍ راغى چي هغوئ په مينه يوله بله خبرى كولى نويهودى ته قهر ورغي چي داڅومره يوله بله خواږه اوترمنځ يې دمينې اوالفت نښى ښكاريږى داوروسته له هغه چي ددوئ ترمنځ په جاهليت كښي څومره دښمنى اوعداوت وونويې له ځانه سره وويل كه داخلګ په يوه خوله كومه پريكړه وكړى نوزموږ ورسره څه په وس كښي وى ؟ بيا يې ديهوديوځوان ته امروكړچي له دوئ سره كښيني اود(بُعاث ) ورځ ورپه يادكړى هغه اشعارورته ووايي كوم چي دهغې ورځي په درناوي كښي ويل شوي ووداهغه ورځ وه چي د اوس اوخزرج ترمنځ پكښي سخته مرګ ژوبله شوي وه اوبرى داوس په برخه ووهغه هم دغسى وكړل نوپدى وخت كښي هغوئ يوله بله وياړاوفخرپيل كړغضب ورته مخه كړه اوچيغى يى كړى ويې ويل هلى: وسله را واخلي ، وسله ! بيا رسول الله ﷺ ته خبوررسيدواوهغه سره له څوتنومهاجرينواو انصارواصحابانوسره راووت دوئ ته يې وويل : آياد جاهليت په بلنه اودعوى ( راپاريدلي ياست ) حال داچي زه ستاسوپه منځ كښي موجوديم وروسته له هغه چي الله داسلام په مشرف كولوتاسي ته عزت دركړ دجاهليت څخه يې راوايستلي ستاسوترمنځ يې الفت ( اومينه ) پيداكړه ) خلګ دنبى ﷺ دمؤثرى ويناپه بركت وپوهيدل چي داشخړه دشيطان وسوسه اوددښمن چل اودوكه ده نويې وسله وغورځوله اوويې ژړل يوبل ته ورغاړى وتل اوبياله رسول الله ﷺ سره پداسى حال كښي چي دهغه خبرې يې اوريدلي اوهغه يې منلى روان شول وروسته الله ﷻ دا آيت نازل كړ: ( يآيهذ الذين آمنوا ان تطيعوا فريقامن الذين اوتوا الكتاب )[2] آيت ترپايه.

تفسير:

﴿ لَن تَنَالُوا۟ ٱلْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا۟ مِمَّا تُحِبُّونَ ﴾ له سره به ونه مومئ تاسي پوره نيكى ترهغه پورى چي صرف كړئ تاسي ( په لاره دالله ﷻ ) ځينى له هغو شيانوچي ستاسي خوښ وي ) يعنى تاسوبه له نيكانونه ونه ګڼل شئ اونه به جنت پيداكړئ ترڅوچي خپل غوره مالونه ونه لګوئ. ﴿ وَمَا تُنفِقُوا۟ مِن شَىْءٍ

---

[1] القرطبى ۴ / ۱۵۶

[2] اسباب النزول ص ۶۲ ، الكشاف ۱/ ۳۰۱

﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٌ﴾ اوهغه چې صرفوئ (يې) تاسې له يوه شي (لږ وي كه ډير) پس بيشكه الله په هغه ښه عالم دى) يعنى هغه شي چې دالله په لاره كښې يې لګوئ ستاسو لپاره خوندى دى الله به ورباندى ښه جزا دركړي ﴿كُلُّ ٱلطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ﴾ ټول دخوړلوشيان حلال وو بنى اسرائيلوته ﴿إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَٰٓءِيلُ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ﴾ مګرهغه چې حرام كړى وو( يعقوب ) پخپل ځان چې هغه داوښآنوغوښې اوشيدې وې بيانورخوراكونه ورباندى حرام شول لكه وازدې (شحوم) اونورچې دادهغوئ دګناهونونتيجه وه ﴿مِن قَبْلِ أَن تُنَزَّلَ ٱلتَّوْرَىٰةُ﴾ ( پخواله هغه چې نازل كيدوتورات ) يعنى ترنزول له مخه ورته حلال وو ﴿قُلْ فَأْتُوا۟ بِٱلتَّوْرَىٰةِ فَٱتْلُوهَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ ( ووايه اي محمده ) نوراوړئ تاسې تورات پس ويې لولئ تاسې كه ياست تاسې صادقان ( رښتني ) يعنى تورات راوړئ او ماته يې ولولئ كه تاسې په دې دعوى كښې رښتونى ياست چې ستاسودسرغړونى اوظلم په سبب درباندى حرام شوي نه دى . زمخشري وايې چې ددوئ غرض دالله ﷻ دهغې شاهدې چې ددوئ په ظلم اوبغې يې اداكړې تكذيب وونوكله چې يې ددوئ په كتاب دليل راوړ دوئ وشرميدل اوسرتيتې شول هيچاونشوكولې چې تورات راوباسى اوپه دغه دليل كښې دنبى ﷺ دربښتنولې هم اثبات كيږي.(۱) ﴿فَمَنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ﴾ پس هرچاچې وتړل په الله دروغ وروسته له هغه چې دحرمت حجت اوجهت يې ښكاره شو ) ﴿فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ پس دغه كسان هم دوئ دي ظالمان ( چې حق پريږدى اوباطل خوښوي ) ﴿قُلْ صَدَقَ ٱللَّهُ﴾ ( ووايه اي محمده ) رښتيافرمايلي دى الله يعنى هرهغه څه چې يې محمدته وحى كړى اوياپې خبروركړى ګرد رښتيادى. ﴿فَٱتَّبِعُوا۟ مِلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ﴾ نومتابعت وكړئ تاسې ددين دابراهيم ﴿حَنِيفًا﴾ چې حنيف وو( په يولورى ) يعنى له هرباطله دين څخه حق ته مائل وو ﴿وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ﴾ اونه وودئ له مشركانو الله ﷻ هغه ته ديهودواونصاراوله هغونسبتونوڅخه چې هغه يې يهودى يانصرانى بالويرائت وركړاودايې څرګنده كړه چې دوئ مشركان دي ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِى بِبَكَّةَ مُبَارَكًا﴾ بيشكه ړومبى كوټه (بيت الله ) چې جوړه شوي ده ( له ګردوڅخه پخوادعبادت لپاره) خلكوته خامخا(هغه كوټه ) همداده چې په مكه كښې ده (هغه چاته چې حج اوعمره يې كوي دخيرښيګنې منبع او) ډيرخيراوبركت والاده ﴿وَهُدًى لِّلْعَٰلَمِينَ﴾ ( اولاره ښوونكى ده خلكوته ) يعنى دهدايت اونورڅخه ډكه ځكه چې دخلكوقبله ده بيا يې نورمزاياهغه چې په نوروجو ماتونويې لرى داسې يادوئ: ﴿فِيهِ ءَايَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ مَّقَامُ إِبْرَٰهِيمَ﴾ (پدى كښې اثارښكاره مقام ابراهيم دي ) يعنى پدى كښې ډيرې څرګندې علامې دي چې دهغې په شرف اوفضيلت دلالت كوى چې يويې مقام ابراهيم دى هغه چې

---

(۱) الكشاف ۱/ ۲۹۵

دکعبې دودانولو په وخت کښې به ابراهيم ﷺ ورباندې ختل اوبل زمزم دی همدارنګه ( حطيم ) ( صفا ) او(مروة ) اوحجراسود دی آيادا دهغې په شرافت باندی دليل نه دی ؟ اودهغې داحقيت نه څرګندوي چې دمسلمانانولپاره دی قبله وي ؟﴿ وَمَن دَخَلَهُۥ كَانَ ءَامِنًا ﴾ ( اوهرڅوک چې ننوت پدې ( کعبه ) نوشي به په آمان کښې ) اودايوه بله دبزرګۍ علامه ده چې ابراهيم ﷺ دعاکړې ده ( رب اجعل هذا بلدا آمنا ) !

﴿ وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ حِجُّ ٱلْبَيْتِ مَنِ ٱسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا ﴾ او(فرض )دي پرخلکوحج ددي بيت الله پرهغه چې قدرت لرې طرف ددې ته دلاري ﴿ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَنِىٌّ عَنِ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ ( اوهرڅوک چې کافرشوي ( ويې نه مانو ) بيشکه الله بې پروادی له ټوله عالم نه ) يعنی چاچې حج پرېښود نوالله له عبادته دټولوخلکوخپنی بې پروادی دحج نه کولوڅخه يې په کفرسره تعبيروفرمايل دادتغليظ په توګه ابن عباس ﷺ وايې څوک چې دحج فرضيت نه مني کافردی اوالله يې پروانلرې.[1]بيا وروسته الله پاک اهل کتاب ددوئ په کفرترتې ورته فرمايې: ﴿ قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لِمَ تَكْفُرُونَ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ ﴾ ( ووايه اي محمده ) چې اي اهل کتابوولې کافران کيږئ تاسې په آيتونودالله ﷻ ؟ يعنی ولی دقرآن کريم څخه انکارکوئ هغه چې په محمدﷺ نازل شوي اوپه رښتنولې يې دلائل اوبراهين موجوددی ؟ ﴿ وَٱللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا تَعْمَلُونَ ﴾ ( اوالله ښه شاهددی پرهغوکارونوچې تاسې يې کوئ ) يعنی ستاسوپه کړووړوخبراو ورباندې جزا به درکړي ﴿ قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لِمَ تَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ ﴾ ووايه اي محمده ) چې اي اهل کتابو ولې تاسې منع کوئ ( اړوئ ) له لاري دالله څخه هغه څوک چې دايمان راوړلوقصدلرې؟﴿ تَبْغُونَهَا عِوَجًا ﴾ لټوئ تاسې لاري دالله ته کوږوالی داپدی چې دنبی ﷺ صفتونه بدلوئ اوخلګوته داسی وسوسې وراچوئ چې ګواکې په اسلام کښې خلل اوکوږوالی شته ﴿ وَأَنتُمْ شُهَدَآءُ ﴾ (حال داچې تاسې يې شاهدان)يعنی پدې پوهيږئ چې اسلام حق اوسم مستقيم دين دی ﴿ وَمَا ٱللَّهُ بِغَـٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ ( اونه دی الله بی خبره له هغه شي څخه چې تاسې کوئ ) پدی کښې تهديداووعيددی په تحقيق سره چې يهودواو نصاراوو دوه صفتونه چې يوضلال اوبل اضلال ده سره يوځاي کړي ووا وپه تېرومبارکوآيتونوکښې ورته اشاره وشوه دوئ په اسلام کافران وواوبيايې خلګ داسلام دين ته د داخليدلو لپاره هم نه پرېښودل هغوئ ته به يې شکونه اوشبهې وراچولې ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تُطِيعُوا۟ فَرِيقًا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَـٰبَ ﴾ ( اي هغوکسانوچې ايمان يې راوړی دی ( اي مومنانو ) که تاسې حکم ومنئ ديوفريق دهغو کسانوچې ورکړی شويدي دوئ ته کتاب ﴿ يَرُدُّوكُم بَعْدَ إِيمَـٰنِكُمْ كَـٰفِرِينَ ﴾ ( نوبيرته به وګرځوي تاسې وروسته له ايمانه ستاسو،کافران ) دلته خطاب اوس اوخزرج ته دی څکه يهودانوددوئ ترمنځ فتنه غوښتله لکه چې په شان نزول کښې تيرشواودفريق لفظ په آيت کښې عام حکم لري ﴿ وَكَيْفَ تَكْفُرُونَ وَأَنتُمْ تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ءَايَـٰتُ

(۱) مختصرابن کثير۱/ ۳۰۳

﴿ اللَّهِ وَفِيكُمْ رَسُولُهُۥ ﴾ اوڅرنګه به تاسي کافران کيږئ اوتاسي چي ېې لوستی شي پرتاسي آيتونه دالله اودي په تاسي کښي رسول دالله ﷺ دلته دا استفهام بيا انکاري اوداستبعادلپاره دی يعنی څرنګه به تاسوبيا کفرته زړه ښه کړئ اوحال داچي لاتراوسه دالله ﷻ آيتونه رانازليږي وحي قطع شوي نه ده اورسول الله ﷺ ستاسوپه منځ کښي ژوندی موجوددی ﴿ وَمَن يَعْتَصِم بِاللَّهِ فَقَدْ هُدِيَ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اوهرڅوک چي منګولي ښخي کړی دالله په دين نوپه تحقيق سره ده ته لاره وښودله شوه په طرف دلاري سمې ، هغه لاره چي جنات النعيم ته رسيږي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِۦ ﴾ (اي هغو کسانوچي ايمان يې راوړی دی ( اي مومنانو ) وويريږئ له الله نه په حق دويري سره ابن مسعود ﷺ وايي هغه داده چي : دالله د امرمنل کوي اوسرغړول تري نه کوي، الله يادوي او نه يې هيروي دالله شکر پر ځای کوي دنعمت کفران يې نه کوي.(۱) اومرادپدی کلام چي (حق تقاته) دی داچي لکه چي حق دويري وي اوهغه په ځان ژغورنه له ټولو ګناهونو کيږي ﴿ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴾ (اومه مرئ مګرپه دي حال کښي چي يې تاسي مسلمانان ) يعنی په اسلام ټينګې منګولې ولګوئ ترڅوچي مرګ درته راشي اوتاسي همداسی په اسلام ټينګ ولاړياست مقصدپکښي دادی چی په اسلام کښي ثابت اوسئ ﴿ وَٱعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ ٱللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُواْ ﴾ اومنګولي ولګوئ ( ای مومنانو ) په رسۍ دالله چي دالله ﷻ دين اوکتاب دی ) ټول اومه سره مختلف کيږئ ، لکه چي ترتاسودمخه يهوداونصاراسره مختلف شوي وو ﴿ وَٱذْكُرُواْ نِعْمَتَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ ﴾ اوياد کړئ تاسي نعمت دالله پاک پرتاسي ( اي دعربو خلګو ) ﴿ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَآءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِۦٓ إِخْوَٰنًا ﴾ ( کله چي وي تاسي دښمنان نوالفت يې پيدا کړپه منځ دزړونوستاسي کښي ) يعنی چي کله تاسو تراسلام پخواسخت دښمنان وئ اوبيادااسلام په وجه الله ﷻ ستاسوپه زړونوکښي الفت اومينه پيدا کړه اوپه ايمان يې راغوند کړئ ﴿ وَكُنتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ ٱلنَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا ﴾ اووئ تاسي په غاړه دکندې له اوره (ددوزخ )نوخلاص يې کړئ تاسي له هغه اوره (په اسلام سره) ﴿ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمْ ءَايَٰتِهِۦ ﴾ همداسي بيانوي الله تاسي ته دلائل ( دقدرت ) خپل ﴿ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴾ لپاره ددي چي تاسي په سمه لاره ثبات اودوام ومومئ ، اوددارينو نيکمرغي ته ورسيږئ.

**بلاغت:**

په دی آيتونو کښي دبلاغت ډيرڅه شته چي په لنډه توګه يې دا يوڅو ليکو.

۱ – پدی کلام کښي چي فرمايې ( قل فأتوا بالتوراة ) امردتبکيت ( چپ ) کولو لپاره دی چي ددوی په بشپړ قباحت دلالت کوي.

---

(۱) مختصرابن کثير ۱/ ۳۰۴

۲ - ( للذي ببكة ) په اصل کښي داسی ده چي ( للبيت الذي ببكة ) دلته موصوف پرېښودل شوي چي په تعظيم يې دلالت وکړی.

۳ - پدی کلام کښي چي فرمايي: ( ومن كفر ) دادهغه پرځای راغلی دي چي ( ومن لم يحج ) اووجه يې داده چي دحج په وجوب تاكيد اوپه تارک يې تشددځرګندشي ابوالسعودوايي چي په آيت شريف دومره زيات داعتبار فنون راغلی دی چي نوروورباندی نه ځائيږي اوهغه دا چي: ( ولله على الناس حج البيت ) دلته يې دخبرصيغه غوره کړی ده چي په تحقيق دلالت وکړی اوداسميې جملې په شکل يې راوړی چي په ثبات اواستمراردلالت وکړی پداسی ډول چي دالله ﷻ حق اودخلکوپه ذمه باندی پور دي يوځل يې دتعميم په بڼه اوبيا يې تخصيص فرمايلی يوواريې ابهام راوړی اوبيا يې بيان کړی دی يو کرت يې اجمالی ذکرکوي اوبيايې تفصيل روښانه کوی[1]

۴ - ( واعتصموا بحبل الله ) دلته يې قرآن له رسۍ سره مشابه کړی اومشبه به يې دمشبه لپاره استعاره کړی وجه جامع يې نجات دی نودغې ته تصريحيه استعاره وايي.

۵ - ( شفاحفرة ) ددوئ دجاهليت حال يې له هغه چاسره مشابه کړچي دژوري کندې په غاړه ولاړوی اوپه دي کښي تمثيليه استعاره ده والله اعلم.

تنبيه:

دغه آيتونه داهل کتابوددووشبهاتوددفع کولولپاره راغلی چي هغه لومړی داچي دوئ نبی ﷺ ته ويل چي ته وايې دابراهيم ﷺ په دين يې خودهغه له شريعت څخه مخالفت کوي ته داوښانوغوښي اوشيدې حلالي ګڼي خوداپه ابراهيمي شريعت کښي حرامي دي الله ورباندی داسي ردوفرمايل: ( كل الطعام كان حلا لبني اسرائيل ) دآيت کريمه ترپايه دوهمه داچي: دوئ ويل بيت المقدس دټولوانبياووقبله اولومړني مسجددي اوهغه ته مخامخ کيدل حق دی نوته ځرنګه دهغه استقبال پرېږدي اوداګومان کوي چي دانبياووشريعتونه تصديق کوي نوالله ﷻ ددوئ ترديد داسې وفرمايل: (ان اول بيت وضع للناس للذي ببكة ) دآيت ترپايه.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٠٤﴾
وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ۚ وَأُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٠٥﴾ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ
وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ ۚ فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿١٠٦﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ
ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿١٠٧﴾ تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۗ وَمَا اللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا
لِّلْعَالَمِينَ ﴿١٠٨﴾ وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿١٠٩﴾ كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ

[1] - ابوالسعود ۱/ ۲۵۵

تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَوْ ءَامَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُم
مِّنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿۱۱۰﴾ لَن يَضُرُّوكُمْ إِلَّا أَذًى وَإِن يُقَاتِلُوكُمْ يُوَلُّوكُمُ الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا
يُنصَرُونَ ﴿۱۱۱﴾ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوا إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللَّهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَاءُو بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَضُرِبَتْ
عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ الْأَنبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا
يَعْتَدُونَ ﴿۱۱۲﴾ ﴾ آل عمران: ۱۰۴-۱۱۲

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چي دالله ﷻ د اهل کتابو له فريبونو او دو کوڅخه مسلمانان وويرول او دوئ ته يې دالله په دين او شريعت د منګولو لګولو حکم وکړ همدا راز دامر بالمعروف او نهي عن المنکر دعوت ته يې ورو بلل ديو والۍ او اتحاد ما رېښنه يې وکړه بيا يې هغه څه ذکر کړل چي يهود و ته د سپکاوي او ذلت څخه رسيدلي وو او سبب يې د هغوئ سرغړونه او دالله ﷻ سره د ښمني وه.

## لغتونه:

( امة) يوه ډله ( البينات ) څرګندي نښې ( المعروف ) نيکي او د شريعت مأموربه شيان هغه چي عقل يې مستحسن ګڼي ( المنکر) د شريعت منع شوي شيان او هغه چي عقل يې بد بولی ( الأدبار) د دبر جمع ده او د هرشي وروستۍ برخي ته وايې ويل کيږی ( ولاه دبره ) يعنی وتښتيد او څټ يې ور وګرزاوو ( ثقفوا) چي پيدا شي ( حبل من الله ) دالله عهد په اصل کښي حبل رسۍ ته وايې او عهد ته ځکه وويل شو چي د هغه په سبب لکه په حبل نجات موندل کيږي ( بآءوا ) وګرځيدل ( المسکنة ) محتاجي او فقر.

## تفسير:

﴿ وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ ﴾ او وي دی ( تل ) له تاسي يوه ډله چي بولی ( خلګ ) په لوري د خير ﴿ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ﴾ او حکم کوي خلګو ته په (هره) نيکي سره او منع کوي خلګ له (هري ) بدي نه. ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾ هم دوئ دي په مراد رسيدلی يعنی بريالي دی. ﴿ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ﴾ ( او مه کيږئ تاسي په شان د هغو کسانو چي سره جلا شول او اختلاف يې وکړ دوئ په اصولو کښي وروسته له هغه چي راغلی وو دوئ ته دلائل ښکاره ) يعنی د يهودو او نصاراو په شان مه کيږئ چي سره جلا جلا شول او وروسته له دی چي دالله ﷻ صاف او ښکاره احکام ورته ورسيدل دوئ د هوا او هوس په سبب په اصولو او فروعو کښي اختلاف وکړ ﴿ وَأُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ ( او ده دوئ ته عذاب ډيرلوئ ) يعنی د دوئ د اختلاف په سبب د قيامت په ورځ دوئ ته ستر عذاب دی ﴿ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ ﴾ په هغه ورځ چي سپين به شي (ځيني) مخونه

( دمومنانو ) اوتوربه شي ( ځيني ) مخونه ( دکافرانو ) دمومنانوبه دايمان په وجه اودکافرانوبه دکفر له کبله ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ٱسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَـٰنِكُمْ ﴾ پس هغه کسان چي تورشوي دي مخونه ددوی (نوبه وويل شي دوئ ته ) آياکافران شوي ياست وروسته له ايمان راوړلوستاسي ؟ ) دغه له اجمال نه وروسته تفصيل دی يعنی کافرانوته به دتوبيخ په ډول وويل شي ﴿ فَذُوقُوا۟ ٱلْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴾ نوڅکئ عذاب په سبب ددي چي وي تاسي چي کافران کيدلی يعنی په سبب دکفرستاسي سخت عذاب وڅکئ﴿ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ ٱبْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ ﴾ (اوهغه کسان چي سپين شوي دی مخونه ددوئ ) يعنی اوهرچي نيکمرغه نيکان خلگ دي مخونه بې په نيکواعمالوسپين شوي دي ﴿ فَفِى رَحْمَةِ ٱللَّهِ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ ﴾ نووي به دوئ په رحمت دالله کښي چي وی به دوئ په هغه کښي تل ترتله چي هيڅکله به ځيني ونه وزي﴿ تِلْكَ ءَايَـٰتُ ٱللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِٱلْحَقِّ ﴾ داآيتونه دالله دی موږ يې لولوپرتاباندی (اي محمده ) په حقه سره﴿ وَمَا ٱللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِّلْعَـٰلَمِينَ ﴾ ( اونه دی الله چي اراده به کوي دظلم لپاره دعالميانو ) يعنی الله په هيڅاهم ظلم نه کوي خوخلگ پخپلوځانونوظلم کوي﴿ وَلِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ او(خاص ) الله لره دی هرهغه څه چي په آسمانونوکښي دی اوهرهغه څه چي په ځمکه کښي دي (ملكاً اوعبيداً ) ﴿ وَإِلَى ٱللَّهِ تُرْجَعُ ٱلْأُمُورُ ﴾ اوخاص الله ته بيرته ګرځول کيږي ګردکارونه ،يعنی الله ددنيااوآخرت تصرف کونکی حاکم دی﴿ كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ ﴾ ( يې تاسي اي ( محمدي امته ) بهتره امت چي ايستل شوي دی لپاره دخلگو ) يعنی ای محمدی امته تاسوتر ټولوبهتريې څکه تاسوګټه رسوونکي ياست خلګوته امام بخاری له ابوهريرة ﷺ نه روايت کوي چي ﴿ كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ ﴾ يعنی يې تاسي بهتردخلگوچي دوئ به ځنځيرونه په غاړه راولئ ترڅوپه اسلام کښي داخل شي ﴿ تَأْمُرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ ﴾ ( چي حکم کوي تاسي ( هرچاته ) په نيکی سره اومنع کوئ تاسي هرڅوک له منکرڅني اوايمان لرئ په الله ﷻ باندی )اودابيان دبهتری د دوی دی لکه چي ويل شوي دي چي ستاسودبهتری همدغه ښه خويونه سبب دی عمرﷺ وايې :که څوک پدی خوښيږي چي ددی امت څخه وي نودالله شرط دي پکښي پرځاي کړی(1) ﴿ وَلَوْ ءَامَنَ أَهْلُ ٱلْكِتَـٰبِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُم ﴾ اوکه ايمان راوړی وي اهل کتابو(په قرآن اومحمد ) خامخابه ووداايمان بهتردوئ لره ( په دنيااوآخرت کښي ) ﴿ مِّنْهُمُ ٱلْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ ٱلْفَـٰسِقُونَ ﴾ ( ځينی له دوئ څخه مومنان دی اوزيات ددوئ فاسقان دی ) يعنی ددوئ لږکی ډله مومنان دی لکه نجاشي اوعبدالله بن سلام

---

1- مختصرابن کثير.

اوډېر كسان يې دالله له طاعت څخه سرغړونكي اووتلي (فاسقان ) دي ﴿ لَن يَضُرُّوكُمْ إِلَّآ أَذًى ﴾ له سره به ضرورونه رسوي تاسي ته مګرپه لږ ربړولوسره ( دژبې ) چي تاسوته به ښكنځل كوي اويابه پيغوردركوي ﴿ وَإِن يُقَٰتِلُوكُمْ يُوَلُّوكُمُ ٱلْأَدْبَارَ ﴾ اوكه جنګ وكړي له تاسي سره نووبه ګرځوي دوئ تاسي ته شاوي ﴿ ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ ﴾ (بيا به له دوئ سره مرسته ونكړې شي ) يعنى تاسوته زيرى دركوم چي دوئ به ناكام اوشرميدلى وى دغه جمله استينا ف دي ﴿ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ ٱلذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوٓا۟ ﴾ ( مقرركړې شوي دي په دوى باندى ذلت په هرځاى كښي چي وموندل شى ) يعنى دغه ذلت په دوئ داسى احاطه كړې ده لكه چي خونه په ساكن باندى احاطه لري ﴿ إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَحَبْلٍ مِّنَ ٱلنَّاسِ ﴾ مګرچي منګولي ولګوي په ذمه دالله اوذمه دمسلمانانو ابن عباس ﷺ وايې چي دالله په عهداودمسلمانانوپه عهدمنګولى ولګوئ ﴿ وَبَآءُو بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ ( اووګرځيدل دوئ په غضب له ( جانبه ) دالله ) يعنى دالله دسخت غضب وړوګرځيدل ﴿ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ ٱلْمَسْكَنَةُ ﴾ اومقرركړې شوپردوئ باندى مسكنت ( له هري خواورباندي راپريووت ) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا۟ يَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ داپه سبب ددي چي بيشكه دوئ ووچي كافران كيدل په آيتونودالله ﷻ ﴿ وَيَقْتُلُونَ ٱلْأَنۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ اووژل يې انبياء په ناحقه سره يعنى دغه ذلت ، سپكاوي اودالله غضب ددوئ په همدي كرووړوورته مخه كړې وه ﴿ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا۟ وَّكَانُوا۟ يَعْتَدُونَ ﴾ «داكفراوقتل په هغه سبب ووچي سرغړونه يې كوله اوووددوئ چي له حدودوبه تيريدل ( يعنى دالله اوامربه يې نه منل )

بلاغت:

پدى آيتونو كښي دبديع اوبيان ډېري بيلګي شته چي په لنډډول يې خو را اخلو:

١ - (يأمرون بالمعروف وينهون عن المنكر ) دلته دمقابلې صنعت دى.

٢- پدي كلام كښي ( اولئک هم المفلحون ) قصردصفت په موصوف پسي ده.

٣ -( تبيض وجوه وتسود وجوه ) دلته بيا د( تبيض ) اود( تسود ) ترمنځ طباق دي.

۴ - پدى كلام كښي چي فرمايې: ( ففى رحمة الله ) مجاز مرسل دي چي حال يې راوړى اومراد څني محل دى معنايې داچي ( ففى الجنة ) څكه هغه داسى ځاى دي چي رحمت پكښي نازلېږي.

۵ - ( ضربت عليهم الذلة ) پدى كښي استعاره ده څكه ذلت يې له خيمې سره مشابه كړى چي به خلګوخوره وي اوددى تفصيل په سورة البقره كښي تېرشو.

٦ -( وبآءوابغضب من الله ) دلته تنكيرد تفخيم اوهيبت لپاره دي.

فائده:

پدى قول دالله ﷻ كښي چي فرمايې ( ثم لاينصرون) جمله مستأنفه ده څكه يې نون په خپل حال پاتى دي زمخشري وايې چي دلته يې لومړى دجزاء له حكم څخه داخبارحكم ته عدول كړي لكه چي ويل

شوي وي: وروسته خبردرکوم چي دوئ به مخذول شوي اومرسته به ورسره نه کيږي اوکه په جزم يې راوړی وايي بيا به نونصرت په جګړه پوري تړلی ووپه داسی حال کښې چی نصرت مطلقاوعد(زيری)دي(۱)

تنبيه:

هغه اختلاف چي آيت شريف پدی ډول ( ولاتکونواکالذين تفرقوااختلفوا ) ورته اشاره وکړه مرادئني دعقيدې اختلاف اوددين داصولوپه هکله تفرقه ده اوهرچي دفروعو اختلاف دي لکه چي مجتهدينودمذهب امامانوکړی دارحمت دي اوپه شريعت کښي دآسانتيا اويسرموجب ګرزي لکه چي علماوودي لورته تنبيه کړي ده اوابن تيميه رحمه الله يوه ډيره قيمتي رساله چي نوم يې دي: ( رفع الملام عن الائمة الاعلام ) ليکلی هغې ته رجوع وکړه ويې لوله چي خوراښائسته اوګټوره ده.

الله تعالی فرمايي:

﴿ لَيْسُوا سَوَآءً مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ أُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَتْلُونَ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ ءَانَآءَ ٱلَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُونَ ﴿١١٣﴾ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَيَأْمُرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ وَيُسَٰرِعُونَ فِى ٱلْخَيْرَٰتِ وَأُو۟لَٰٓئِكَ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿١١٤﴾ وَمَا يَفْعَلُوا۟ مِنْ خَيْرٍ فَلَن يُكْفَرُوهُ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِٱلْمُتَّقِينَ ﴿١١٥﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَن تُغْنِىَ عَنْهُمْ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُهُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا وَأُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿١١٦﴾ مَثَلُ مَا يُنفِقُونَ فِى هَٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيحٍ فِيهَا صِرٌّ أَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ فَأَهْلَكَتْهُ وَمَا ظَلَمَهُمُ ٱللَّهُ وَلَٰكِنْ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١١٧﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ بِطَانَةً مِّن دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّوا۟ مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ ٱلْبَغْضَآءُ مِنْ أَفْوَٰهِهِمْ وَمَا تُخْفِى صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ ٱلْءَايَٰتِ إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ ﴿١١٨﴾ هَٰٓأَنتُمْ أُو۟لَآءِ تُحِبُّونَهُمْ وَلَا يُحِبُّونَكُمْ وَتُؤْمِنُونَ بِٱلْكِتَٰبِ كُلِّهِۦ وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا وَإِذَا خَلَوْا۟ عَضُّوا۟ عَلَيْكُمُ ٱلْأَنَامِلَ مِنَ ٱلْغَيْظِ قُلْ مُوتُوا۟ بِغَيْظِكُمْ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿١١٩﴾ إِن تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِن تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَفْرَحُوا۟ بِهَا وَإِن تَصْبِرُوا۟ وَتَتَّقُوا۟ لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا إِنَّ ٱللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿١٢٠﴾ ﴾ آل عمران ۱۱۳ - ۱۲۰

مناسبت اوتړاو:

څرنګه چي الله تعالی داهل کتابو بداوناکاره صفتونه يادکړل نودلته يې بياداڅرګنده کړه چي ټول يوډول نه دي په دوئ کښي مومنان اوکافران نيکان اوفاجران دواړه شته دي بيا الله ﷻ دکافرانوعذاب داسی ياد کړ چي دوئ ته به مالونه اولادونه هيڅ ګټه ونه رسوي چي دقيامت په ورځ يې له عذابه څخه وژغوري اوبيا يې داسي ارشاد وفرمايل چي ددين دښمنان په دوستي مه نيسئ څکه په داسي کولو کښي ددين اودنيا سترضرراوتاوان نغښتي دي.

---

۱- الکشاف ۱/ ۳۰۸

**لغتونه:**

( آناء ) وختونه اوشيبې ساعتونه مفرديې (اِني) لكه (معي )داسي دي چي جمع يې (امعاء)ده (يكفروه ) انكارته ويل كيږي دجحودپه معنا دي اودجزاء منع ته ځكه كفروويل شوي چي داپه منزله دپټولواوانكاردي ( صرّ) سختې يخني ته وايې دادابن عباس ﷺ قول دي اواصل يې له صرير څخه اخيستل شوي چي غږته ويل كيږي اومرادځيني هغه سخت ديخني باددي ( حرث ) كښت ته ويل كيږي اصل يې له ( حرث الارض ) څخه اخيستل شوي كله چي مځكه دكښت لپاره يويې قلبه اووخيرل شي (بطانة ) دجامى استرته ويل كيږي اودسږي بطانة معناداچي درازشريک هغه څوک چي سږي خپل رازونه ورته وايې له استرسره يې ځكه مشابه وګڼل چي هغه بدن ته خورانژدې وي ( يألونكم )كمي كوي له تاسوسره له ( ألا،يألو ) څخه اخيستل شوي اوتقصيرته وايې .(خبالا) فساداونقصان ته ويل كيږي اومخبول انسان هغه دي چي په عقل كښي يې تاوان وي ( عنتم ) تاوان ستاسى عنت سخت ضرراومشقت ته وايې ( أنامل) دګوتوسرونه.

**دنزول سبب:**

چي كله عبدالله ابن سلام اوډه ملګري مسلمانان شول نوديهودواحباروبه ويل چي په محمد ﷺ باندي يوازي زموږ اشرارو ايمان راووړ كه چيري دوئ غوره اخياراوښه كسان واى دپلرونودين به يې نه پريښود اودوئ ته به يې ويل چي په تحقيق سره تاسي كافران شوي اوزيان مووكړبيا الله ﷻ داآيت نازل كړ: ( ليسواسواء من اهل الكتاب أمة قائمة .....) داآيت ترپايه

**تفسير:**

﴿ لَيْسُوا۟ سَوَآءً ﴾ ( ندى دوئ ټول اهل كتاب سره برابر ) يعنى په بديو كښي ټول يوشان برابرنه دي دلته خبره بشپړه شوه بيا الله فرمايي: ﴿ مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَـٰبِ أُمَّةٌ قَآئِمَةٌ ﴾ ځيني داهل كتابويوه فرقه ده چي سمه ولاړه ده په حق باندي ﴿ يَتْلُونَ ءَايَـٰتِ ٱللَّهِ ءَانَآءَ ٱلَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُونَ ﴾ (چي لولي دوئ آيتونه دالله په ساعتونودشپي حال داچي دوئ سجدې كوي ) يعنى دشپې دتهجدلمونځونه كوي اولمانځه په حال كښي دالله دكلام تلاوت كوي ﴿ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ ﴾ ايمان راوړي په الله ﷻ اوپه ورځي دآخري (دقيامت ) باندي ﴿ وَيَأْمُرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ﴾ خلګوته په نيكي سره امركوي اومنع كوي يې له بدي څخه ( اوغوره مالي نه كوي ) ﴿ وَيُسَـٰرِعُونَ فِى ٱلْخَيْرَٰتِ ﴾ اوتلواركوي په ښوكارونوكښي ﴿ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ مِنَ ٱلصَّـٰلِحِينَ ﴾ اودغه كسان له صالحانوځيني دي ﴿ وَمَا يَفْعَلُوا۟ مِنْ خَيْرٍ فَلَن يُكْفَرُوهُ ﴾ اوهرڅه چي كوي له خيره پس ضائع به نكړي شي دوئ لره (ثواب ) دهغه كار( په نزد د الله ﷻ ) ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِٱلْمُتَّقِينَ ﴾ ( اوالله ښه عالم دي پراحوال) دپرهيزګارانو ) يعني په الله ﷻ باندى دهيڅ يوعمل كونكي عمل هم پټ نه دي اونه دمتقينواجردده سره ضائع كيږي بيا الله تعالى د

کافرانو وروستي پړاو داسي ښيي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَن تُغْنِىَ عَنْهُمْ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَـٰدُهُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا ﴾ بېشكه هغه كسان چي كافران شوي دي له سره به دفع نه كړي شي له دوئ څخه ني مالونه ددوئ او نه اولادونه دوئ له ( عذابه ) دالله هيڅ شي ) يعني ددوئ هغه مالونه چي دهغوئ په راټولولو كښي يې سختي ګاللي او يا هغه اولادونه چي په مينه كښي يې يو مخه ايزه ډوب وو دوئ ته به هيڅ ګټه ونه رسوي ﴿ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ أَصْحَـٰبُ ٱلنَّارِ ۚ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ ﴾ او دغه كسان ښتنتان دا ور ددوزخ دي دوئ به په هغه اور كښي تل وي ﴿ مَثَلُ مَا يُنفِقُونَ فِى هَـٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيحٍ فِيهَا صِرٌّ ﴾ ( مثال دهغه مال چي صرفوي يې ( كافران دالله په لار كښي ) پدې ژوندانه ددنيا كښي په شان دمثال دهغه بادى چي وي په باد كښي ډيره يخني ) يعنى مثال دهغو مالونو ددوئ چي دوئ يې دثنا او صفت ويلو په قصد په دنيا كښي لګوي لكه هغه تند باد غوندي دي چي سخته يخني پكښي وي ﴿ أَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ فَأَهْلَكَتْهُ ﴾ چي ورسيږي ( داباد ) كښت ديو قوم ته چي ظلم يې كړي دي پر ځانونو خپلو پس هلاک كړي دغه كښت ، او ګټه ور باندى نشي اخيستل كيداي نو همداسى دكفارو نيک عملونه خوشي ځي لكه ددغو ګناهګارانو دګناه په سبب چي يې كښت ضائع كيږي ﴿ وَمَا ظَلَمَهُمُ ٱللَّهُ وَلَـٰكِنْ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴾ ( او نه دي ظلم كړي پر دوئ باندي الله وليكن پر ځانونو خپلو ظلم كوي دوئ ) يعني الله ددوئ دكښت په هلاكولو په دوئ ظلم ندي كړي بلكه دوئ پر خپلو ځانونو دګناه په كولو ظلم كړي دي بيا الله تعالى مسلمانان له دي څخه ويرولي چي منافقين دراز شريكان جوړ كړي او خپل اسرار ور ته ووايي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ بِطَانَةً مِّن دُونِكُمْ ﴾ اي هغو كسانو چي ايمان يې راوړى دى ( اي مومنانو ) مه نيسئ تاسي دوستان دراز ( له هيڅ فرقي نه ) غير له تاسي مومنانو ) يعنى اي مومنانو تاسي منافقين په ملګرتيا او دوستي مه نيسئ چي خپل رازونه ورته وايا ست او تاسي پرته له مسلمانانو دوئ په دوستي نيسئ ﴿ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا ﴾ هيڅ كمى نه كوي له تاسو سره دفساد ﴿ وَدُّوا۟ مَا عَنِتُّمْ ﴾ دوست ګڼي دوئ ضرر ستاسي ﴿ قَدْ بَدَتِ ٱلْبَغْضَآءُ مِنْ أَفْوَٰهِهِمْ ﴾ ( په تحقيق سره ښكاره شوي دي بغض او دښمني له خولو ددوئ نه ) يعنى دوئ يوازي په زړه كښي په بغض ، نفرت او بد ايسيدلو باندي كفايت نه كوي په خوله هم هغه بيانوي ﴿ وَمَا تُخْفِى صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ ﴾ ( او هغه بغض چي پټوي يې سينې ددوئ ډيرلوي دي ) يعنى هغه بغض چي په زړه كښي يې ستاسو لپاره ساتي تردي ډيرلوى دي چي دوئ يې په خوله بيانوي ﴿ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ ٱلْـَٔايَـٰتِ ﴾ په تحقيق موږ بيا ن كړي دي تاسي ته علامې ) يعنى موږ تاسي ته هغه علامې چي په دين كښي داخلاص وجوب ښيي او له مسلمانانو سره ددوستي او موالات حكم كوي همداسى له كفارو سره ددښمني او شلون (مقاطعى )مارهينه كوي بيان كړي دي ﴿ إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ ﴾ كه يې تاسي چي هوښياران يې (عقل پكښي چلوئ ) او داد خوځوني او تحريک په ډول دي لكه چي ته يو چاته وايې : كه چيري مسلمان يې نو خلګو ته

زیان مه رسوه! ابن جریر وایې معنایې داده: که تاسو دالله ﷻ په امر اونهي پوهیږئ؟. بیاالله ﷻ ددوئ هغه حال بیانوي چې له مسلمانانوسره څومره کراهیت (کرکه) ساتی فرمایې ﴿ هَٰٓأَنتُمْ أُوْلَآءِ تُحِبُّونَهُمْ وَلَا يُحِبُّونَكُمْ ﴾ (واورئ خبردارشئ تاسي هغه کسان یې چې دوستي کوي له دوئ سره اونه کوي دوستي دوئ له تاسي سره) یعنی اې مسلمانانوتاسي پدي دوستي کولوغولیدلي یاست چې له دوئ سره دوستي کوئ اودوئ درسره دښمني کوي تاسو دوئ ته ګټه رسول غواړئ اودئ ستاسوبیخ ایستلوته تږي دښمنان دي. ﴿ وَتُؤْمِنُونَ بِٱلْكِتَٰبِ كُلِّهِۦ ﴾ (اوتاسي ایمان لرونکي یاست په ټولو کتابونو) خوله دي سره دوئ له تاسوسره بغض کوي نوداڅومره بی موقعه خبره ده چې تاسوورسره مینه کوئ اودوئ ستاسودکتاب په هیڅ توري ایمان نه راوړي؟ په دي کښي توبیخ دي چې دوئ پخپل باطل هومره ټینګ دي چې تاسوپخپل حق هومره ټینګ نه یاست. ﴿ وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا ﴾ اوکله چې یوځاي شي دوئ له تاسي سره نووایې دوئ ایمان موراوړي دي (داددوئ دخبث اومکرښښه ده چې ستاسوپه وړاندي ایمان ښکاره کوي اودمنافق عمل کوي ﴿ وَإِذَا خَلَوْاْ عَضُّواْ عَلَيْكُمُ ٱلْأَنَامِلَ مِنَ ٱلْغَيْظِ ﴾ (اوکله چې یوازي شي دوئ نوچیچي دوئ په تاسي باندي سرونه دګوتوله ډیره) قهره یعني دوئ چې ستاسي یووالي مینې الفت ته ګوري له ډیره قهره ګوتي اوغاښونه چیچي چې دوئ ونشوکړاي تاسي ته ضرر ورسوي ﴿ قُلْ مُوتُواْ بِغَيْظِكُمْ ﴾ (ووایه اې محمده دوئ ته) مړه شئ په قهر (اوبغض) خپل سره) دایوه ښیراده چې ستاسوبغض، غیظ اوغصه دي دومره اوږده شي چې بالآخره پکښي ومری.(۱) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ (بیشکه چې الله ښه عالم دي په هغو( خبروهم ) چې په سینوکښي دي) یعنی الله ﷻ په هغوپټوکرکو اونفرتونوچې دوئ یې دمسلمانانولپاره په زړونوکښي ساتي ښه خبردي بیا الله ﷻ دهغه څه بیان فرمایې چې دوئ څرنګه مسلمانانوته دابتلاګانواومحنتونودراتلو انتظاراوڅارکوي فرمایې ﴿ إِن تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ﴾ که ورسیږي تاسي ته کومه نیکي لکه دفتح، غنیمت اوښیرازي نودوئ خپه کوي ﴿ وَإِن تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَفْرَحُواْ بِهَا ﴾ اوکه ورسیږي تاسي ته کومه بدي (لکه قتل وچکالي اوياناکامي) نوخوشحالیږي دوئ په سبب دهغه (نوالله ﷻ ددوئ دزیاتي دښمني همدغه علامې وښودلي) ﴿ وَإِن تَصْبِرُواْ وَتَتَّقُواْ لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا ﴾ (اوکه صبروکړئ تاسي (ددوئ په ضررونو) اوځان وساتئ تاسي (له دوستي ددوئ نوضرربه ونه رسوي تاسي ته ددوئ مکراوفریب هیڅ شي) یعنی که تاسوددوئ په ضرر صبروکړئ اوځانونه وژغورئ (تقوي وکړئ) پخپلواقوالوافعالوکښي نوددوئ فریبونه به درته زیان ونه رسوي الله پاک ددوئ دزیان نه رسولولپاره صبراوتقويٰ شرط وګرزوله ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴾ (بیشکه چې الله ﷻ په هغوکارونوچې دوئ

۱ - دادطبری اونوروډیرومفسرینوقول دی اوځینوبیا ویلي چې دغه ددوئ تکول اوقهر ورته رابلل ښیي اومعنا داچې دوئ څه چې غواړي نشي مونډلاي نومرګ به ورته رادمخه شي. القرطبی ۱/۱۸۳

یې کوي ښه احاطه کونکي دي ) یعنی الله پاک د دوئ په تدبیرونو او چلونو ښه عالم دي تاسو به د دوئ له شرخیني وژغوري او دوئ ته به په خپلو پټو بدو نیتونو سزا ورکړي.

بلاغت:

۱-( من اهل الکتاب أمة ) جمله یې اسمیه ده دي لپاره راوړه چي په استمرار دلالت وکړي لکه څرنگه چي یې وروسته بیا مضارع په ( یتلون آیات الله ) او( یسجدون ) کښي غوره کړي چي په تجدد دلالت وکړي.

۲ - پدي کلام کښي چي فرمایي ( وأولئک من الصالحین ) اشاره دبعید(لیري) لپاره شوي څکه د دوئ منزلت لوړ او فضل یې ستر دي.

۳ -( کمثل ریح فیها صر) دلته تمثیلي تشبیه ده څکه هغه مالونه چي دوئ یې د نامه او فخر( ویاړ ) لپاره لگوي له هغه کښت سره مشابه شول چي سخته دیخني سیلۍ یې ووهي او خس خاشاک شي.

۴ -پدي قول دالله کښي چي فرمایي ( لاتتخذوا بطانة ) دانسان دراز شریکان یې دجامي له استره سره مشابه کړل چي دوی د سړي له باطن سره سروکار لري او له تن سره یې جوخت وي او تلخیص البیان وایي چي پدي کښي استعاره ده.[1]

۵ - ابوحیان وایي چي پښیمان او قهرکونکي دگوتو په چیچلو ستایل یا خو حقیقت دي او ددي احتمال هم شته چي تمثیلي مجاز وي او د دوئ له ډیره غضبه او افسوس څخه یې چي نشي گولاي مسلمانانو ته زیان ورسوي استعاره کړي وي.[2]

۶ - په آیتونو کښي دمقابلی صنعت دي لکه په ( ان تمسسکم حسنة تسؤهم وان تمسسکم سیئة یفرحوا بها ) چي نیکي یې دبدي په وړاندي او خفگان یې دخوښحالي په مقابل کښي یاد کړي لکه څرنگه چي اشتقاقي جناس هم پکښي دي او هغه بیا د( ظلمهم ) او(یظلمون ) او(الغیظ ) او(غیظکم ) او(تؤمنون ) او(آمنا ) ترمنځ دي.

لطیفه او باریکه ښکلا:

دکشاف په حاشیه کښي وایي چي الله ﷻ په حسنه کښي ( مس) تعبیر کړي ( ان تمسسکم حسنة ) او په سیئة کښي یې په اصابت تعبیر فرمایلی چي( وان تصبکم سیئة یفرحوا بها ) داددي لپاره که نیکي هرڅومره لږ هم وي چي یوازي مس او لاس وروړل شوي وي دښمنان خوابدي کیږي او بدی چي هرڅومره ژوره چي په اصابت ورته اشاره شوي درته ورسیږي هغه چي شماتت کونکي یې هم نه خوښوي او زړه یې درته خوږیږي مگر دادښمنان خوغمرازي بیخي نه کوي بلکه درباندي خوشحالیږي. او دغه دتنزیل له رازونو څخه یو راز دی.

[1] - تلخیص البیان ص ۲۱ فقط
[2] -البحر المحیط ۴۱/۳

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ (۱۲۱) إِذْ هَمَّت طَّائِفَتَانِ
مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا ۗ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ (۱۲۲) وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ ۖ فَاتَّقُوا اللَّهَ
لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ (۱۲۳) إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَن يَكْفِيَكُمْ أَن يُمِدَّكُمْ رَبُّكُم بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُنزَلِينَ (۱۲۴) بَلَىٰ ۚ
إِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا وَيَأْتُوكُم مِّن فَوْرِهِمْ هَٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُم بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ (۱۲۵) وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ
إِلَّا بُشْرَىٰ لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوبُكُم بِهِ ۗ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ (۱۲۶) لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَوْ
يَكْبِتَهُمْ فَيَنقَلِبُوا خَائِبِينَ (۱۲۷) لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ (۱۲۸) وَلِلَّهِ مَا فِي
السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ يَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (۱۲۹) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا
تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (۱۳۰) وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ (۱۳۱)
وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ (۱۳۲) ﴾ آل عمران: ۱۲۱-۱۳۲

مناسبت اوتړاو:

په قرآن کريم کښي له دي آيت نه وروسته دغزا ګانوخبري پيل کيږي اوخبره دژبې اومکالمي له شخړوڅخه دجنګ ډګرته دمقابلي کولولپاره ليږدي په آيتونو کښي داحد دغزابيان دي چي په ډيرتفصيل سره يې څيړلي اودهغه په منځ منځ کښي دبدردغزا خبرهم راغلی ترڅودوئ ته دالله نعمت هغه فتح چي له دي سره سره چي دوئ په شميره اووسله کښي لږوو وريه يادکړي اودغه آيت داحد دغزا دکيسې پيل دي اوپدي کښي شپيته آيتونه نازل شوي دي اومناسبت دآيتونوله ړومبنيوسره دادی چي الله پاک په هغوکښي مسلمانان دکفاروله دوستي څخه ويرولي وواودلته يې داياودونه وکړه چي دهغودووقومونوانصاروچي دراګرزيدلوقصد يې وکړسبب يې داووچي دوئ منافقينودي کارته هڅولي ووکوم چي ددوئ په سرکښي عبدالله ابن أبی ابن سلول ووهغه چي دنفاق سرداروونومناسبت څرګنددي. بخاري ومسلم له حضرت جابر ﷺ څخه روايت کړي چي هغه وايې زموږ په شان کښي دا آيت نازل شوچي: ( اذهمت طائفتان منكم ان تفشلا والله وليهما) ويې ويل چي موږ دوې طائفې (بنی حارث) او(بنی سلمه) وواوموږ دانه خوښووچي نه وايې نازل شوي څکه چي الله ﷻ فرمايي: ( والله وليهما).

لغتونه:

( غدوت ) دسهارپه وختونوکښي و وتلی ته ( تفشلا) دوی بی زړه شوی له فشل څخه اخيستل شوي اوبی زړه توب ته وايې ( تبوئ) ته تياروي ويل کيږي ( بوأت له منزلا) يعنی هغه لره يې دکوزيدلوځاي جوړکړ ( اذلة ) په وسله اوشميرکښي لږوالی ته وايې (فورهم ) سرعت اوچټکتياګڼدي توب په اصل کې دايشيدلوشدت ته وايې وروسته بيا دګړندي والی لپاره استعمال شوه ( مسومين)

دواوپه زيرسره ( مُعلمين ) دجنگ لپاره روزل شوي اوكه دواوپه زيرسره وي بيانوعلامه درلودونكي معنالري چي ددوئ نښه اوعلامه دبدرپه ورځ سپين پټكي اولنګوټې وي ( طرفا ) يوه ټولی اوډله ( يكبتهم ) كبت ناكامي هلاكت اوكله كله دغيظ اوسپكاوي په معناهم راځي ( خائبين ) ناكامي اومقصدته نه رسيدل دي.

دنزول سبب:

په صحيح مسلم كښي راغلي چي دأحدپه ورځ درسول الله ﷺ درباعي غاښونوڅخه مات شواو سر يې پرهارشونووينې يې پاكولې اوداسې يې ويل : هغه قوم به څرنګه خلاصون مومي چي دخپل نبی سريې ټپی اوغاښ يې ورمات كړ پداسې حال كښي چي هغه (نبی ) يې الله ﷺ ته بولی ؟ نوالله پاك داآيت نازل كړ( ليس لک من الامر شئ ).

تفسير:

﴿ وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ ﴾ اويادكړه (اي محمده !) چي راووتی ته په اول دورځي كښي له كوره خپله ﴿تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ ﴾ چي تيارول دي مومنانوته په ( احد كښي ) ځايونه لپاره دجنګ ﴿وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ اوالله ﷺ ښه اوريدونكي ( ستاسي دخبرو ) ښه عالم (ستاسي په احولو ) دي ﴿ إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا ﴾ كله چي قصدوكړدووطائفوله تاسي ددي خبري چي بې زړه شي دوئ ( له جنګه )اوبيرته وګرزي چي دوئ دواړه بنی سلمه اوبنی حارثه ووداوداهغه وخت چي رسول الله ﷺ احدته راووت اويوزر تنه اصحاب ورسره ووكله چي دكفاروولښكروته نژدي شول هغوئ چي دري زره تنه وونو( عبدالله ابن ابی ) وويل چي موږولی خپل ځانونه اولادونه وژنو؟اويودريمه دلښكرويې بيرته راستنه كړه نودغودوو انصاري ټبرونوهم دراګرزيدلوقصدوكړمګرالله ﷺ وژغورل اوله رسول الله ﷺ سره ملګري پاتي شول اودغه د الله ﷺ قول دي چي فرمايې﴿ وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا ﴾ حال داچي الله ﷺ ولی اومددګاردووئ دي ﴿ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴾ اوخاص پرالله ﷺ دي نوتوكل وكړي مومنان ( په ټولوحالاتواواموروكښي ) بيا الله تعالى دبدردغزا هغه دفتحي اوكاميابی خبرذكركوي چي زړونو يې قوي اوله دغي ماتی څخه چي په أحدكښي ور پيښه شوي تسلاشي فرمايې﴿ وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ ﴾ ( اوخامخاپه تحقيق مرسته كړي وه له تاسي سره الله ﷺ په بدركښي حال داچي تاسي كمزوري وئ ) يعني تاسوته يې په بدركښي سره له دي چي وسله اوشميره موليږوه مرسته دركړه ترڅوپه دي دپوهيږئ چي فتح اوكاميابی يوازي دالله ﷺ له لوري ده اوپه زيات شميراووسله پوري اړه نلري﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ نوووېرېږئ له الله نه لپاره ددي چي شكروكړئ تاسي ( دهغه احسان چي بري يې دركړ)﴿ إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَنْ يَكْفِيَكُمْ أَنْ يُمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُنْزَلِينَ ﴾ يادكړه ( اي محمده ! ) كله چي ويل تامومنانوته چي آياكافي به نه شي ستاسي داچي مرسته وكړي له تاسي سره رب

ستاسي په دري زره له پرښتوچي راليږلي شوي دي ( له آسمانه ) ﴿ بَلَىٰٓ إِن تَصۡبِرُواْ وَتَتَّقُواْ ﴾ هوکه تاسي صبروکړئ اوويريږئ له الله ﷻ ( امر يې ومني ) نوتاسي ته به داملکې راوليږي ﴿ وَيَأۡتُوكُم مِّن فَوۡرِهِمۡ هَٰذَا ﴾ اوراشئ ( مشرکان ) پرتاسي په دغه ساعت ( يوناڅاپه ) ﴿ يُمۡدِدۡكُمۡ رَبُّكُم بِخَمۡسَةِ ءَالَٰفٖ مِّنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِينَ ﴾ مرسته به وکړي له تاسي سره رب ستاسي په پنځوزروسره له پرښتوچي دوسلي په چلولواودجګړې په کولوبه اموخته وي[۱] ﴿ وَمَا جَعَلَهُ ٱللَّهُ إِلَّا بُشۡرَىٰ لَكُمۡ ﴾ اونه ده ګرځولې الله ﷻ دامرسته مګرلپاره دخوشحالتياستاسي (چې تاسوته زيرى وي اوستاسي ثبات وربانديې لا پياوړى کړي ﴿ وَلِتَطۡمَئِنَّ قُلُوبُكُم بِهِۦۗ ﴾ اولپاره ددي چې تسکين ومومي زړونه ستاسي پدي سره (اوبيادډښمن له زيات شميراودځان له کمزوري ونه ويريږئ) ﴿ وَمَا ٱلنَّصۡرُ إِلَّا مِنۡ عِندِ ٱللَّهِ ﴾ اونه ده مرسته په حقيقت کښي مګرله جانبه دالله ﷻ )پرته له هغه بل هيڅوک مرسته نشي کولاي ،نه پرښتې اونه بل څوک ﴿ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَكِيمِ ﴾ هغه چې ښه غالب قوي اوښه دحکمت والادي ( چې هرکارپه تدبيرسره کوي ). ﴿ لِيَقۡطَعَ طَرَفٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ ﴾ ( الله کومک درکړ) ځو ،چې هلاک کړي ځيني له هغوکسانوچي کافران شوي دي ) يعنى دغه الهي تدبير ددي لپاره ووچي يوه ډله په وژلواواسارت کښي نيولو هلاکه کړي اودشرک يوركن ونړوي ﴿ أَوۡ يَكۡبِتَهُمۡ ﴾ ياېې ذليل (خواروزار) کړي په ناکامي سره ﴿ فَيَنقَلِبُواْ خَآئِبِينَ ﴾ پس بيرته ولاړشي ( په ماتي سره) محروم اودغسي الله ﷻ په بدرکښي ورسره وکړل چې دمشرکانواوياتنه مشران يې ووژل اوياتنه نوريې دمسلمانانوپه اسارت کښي راوستل الله ﷻ مومنانوته عزت اوبري ورکړ اومشرکان يې ذليل کړل ﴿ لَيۡسَ لَكَ مِنَ ٱلۡأَمۡرِ شَيۡءٌ ﴾ (نشته تالره له امره هيڅ شي) دغه آيت اعتراض راغلي اوداحدپه کيسه کښي دي کله چې درسول الله ﷺ رباعي غاښ شهيدکړاي شونومبارک مخ يې په وينوولړل شونويې ورويل ! څرنګه به هغه قوم خلاصون ومومي چې دخپل نبى مخ يې په وينوولړل ؟اوبيا داآيت نازل شو ﴿ لَيۡسَ لَكَ مِنَ ٱلۡأَمۡرِ شَيۡءٌ ﴾ يعنى نشته تالره اې محمده دبندګانوله تدبيرڅخه هيڅ شي اوددئ امرالله ﷻ ته دي الله ﷻ دهرشي اختيارلرى ) ﴿ أَوۡ يَتُوبَ عَلَيۡهِمۡ أَوۡ يُعَذِّبَهُمۡ فَإِنَّهُمۡ ظَٰلِمُونَ ﴾ ( يابه رجوع وکړي (الله ﷻ په قبلولودتوبې سره) په دوئ بانديې يابه عذابوي الله ﷻ دوئ پس بيشکه دوئ ظالمان دي ) يعنى دڅاروواک له الله ﷻ سره دي يابه يې هلاک کړي يابه يې ماتي په برخه کړي اوياکه اسلام يې راوړ توبه به يې ومني اوکه چيرې بيا په کفرکې پاتې شول نوبه عذاب ورکړي ځکه دوئ ظالمان اودعذاب مستحق دي ﴿ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۚ

---

[۱] - چابياويل چې دمسومين معنانښي لرونکي اوعروة ابن زبير وايي چې پرښتې په برګوآسانوباندي سپاره چې سپينې لنګوټې يې په سروى شملې يې دوليوترمنځ راځړولې وى. الطبرى اوكشاف.

﴿ يَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ او خاص الله ﷻ لره دي هغه څه چي په آسمانونو کښي دي او هرڅه چي په مځکه کښي دي ببښنه کوي هرهغه ته چي اراده وفرمايې دببښني يې او په عذابوي الله ﷻ هرچاته چي اراده وفرمايې دعذاب يې او الله ﷻ ښه بخښونکي ډير رحم والادي ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً ﴾ اي هغو کسانو چي ايمان يې راوړي (اي مومنانو) مه خورئ سود په دي حال چي دوه چنده په دوه چنده وي ) پدی کښي الله ﷻ مسلمانان دسود له خوړلو څخه منع کوي او هغه دجاهليت په وخت کښي چي دوئ دوه چنده سودخوړل دهغه په هکله هم توبيخ ورکوی ابن کثيروايې چي په جاهليت کښي به کله چي دپورورکونکي موده بشپړه شوه نو پوروړي ته به يې ويل يابه پورراکوي او يا به يې په سود کوي که به يې پورورکړ خو ښه که نه نو به موده هم زياته شوه او اندازه هم چي ډيرځله به لږ مال خوراډيرشو.(١) ﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ (او ويريږئ له الله ﷻ ښايي چي په مراد به ورسيږی ) يعنی دالله له منعه شوی شيانو څخه ځانونه ژغوری ترڅوله عذابه وژغورل شی ﴿ وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ ﴾ او وويريږی له هغه اوره څخه چي تيارکړي شوي دي لپاره دکافرانو ﴿ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ ( او حکم ومنئ دالله (او حکم ومنئ ) درسول لپاره ددي چي پرتاسي رحم وکړي شي ) يعنی تاسي له نيکانو څخه شي چي په هغوئ باندي دالله ﷻ رحمت کيږي.

بلاغت:

١ - پدي کلام کښي چي فرمايي ( اذتقول ) مضارع صيغه يې دماضي لپاره حکايت راوړي ترڅوچي صورت او انځوريې په ذهن کښي حاضرشي.

٢ - ( ان يمدكم ربكم) دربوبيت عنوان غوره کول په داسي حال کښي چي مخاطبينوته يې اضافت شوي وي ددی لپاره دي چي دوئ ته بشپړه پاملرنه او کامل عنايت وښيې.

٣ - ددي کلماتو ترمينځ چي ( يغفر) او (يعذب) دي دطباق صنعت موجوددي.

۴ - پدي کلماتو کښي چي فرمايې ( اضعافا مضاعفة ) داشتقاق جناس موجوددي.

۵ - کله چي الله ﷻ فرمايې ( لاتأكلوا الربوا) دلته يې اخيستل خوړل وبلل چي بالآخره خوړل کيږي او دا مجاز مرسل دي.

تنبيه:

پدي آيت شريف کښي چي (اضعافا مضاعفة ) راغلی دادکوم قيد يا شرط لپاره نه دی بلکي دهغه حال بيان کوي کوم چي دجاهليت دوخت خلکو ورباندی تعامل درلودبل داچي ددوئ ددغه حال شناعت بيانوي چي داخوبرملاظلم دي بربنده دښمني اوتېري دي څکه دوئ به رباخوچنده اخيستله ابوحيان وايي چي: دوئ له دغه بدحالت څخه منع شوي ډيروخت به په لږ څه دپوروړي تول مال دسودخوړونکي

(١) - مختصرابن کثير١ / ٣١٨

حق جوړ شوا وپدي کلمه چي ( مضاعفة) دي دې ته اشاره کوي چي دوئ به دادوچند په مکرر ډول کال په کال زياتاوو. اوديادولووړده چي ربا اوسود په هرډول چي وي حرام دي اودغه حالت بې په منع اونهى کښي قيدنه ګڼل کيږي.

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَسَارِعُوٓاْ إِلَىٰ مَغۡفِرَةٖ مِّن رَّبِّكُمۡ وَجَنَّةٍ عَرۡضُهَا ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلۡأَرۡضُ أُعِدَّتۡ لِلۡمُتَّقِينَ ﴿١٣٣﴾ ٱلَّذِينَ
يُنفِقُونَ فِي ٱلسَّرَّآءِ وَٱلضَّرَّآءِ وَٱلۡكَٰظِمِينَ ٱلۡغَيۡظَ وَٱلۡعَافِينَ عَنِ ٱلنَّاسِۗ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿١٣٤﴾
وَٱلَّذِينَ إِذَا فَعَلُواْ فَٰحِشَةً أَوۡ ظَلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ ذَكَرُواْ ٱللَّهَ فَٱسۡتَغۡفَرُواْ لِذُنُوبِهِمۡ وَمَن يَغۡفِرُ ٱلذُّنُوبَ إِلَّا ٱللَّهُ
وَلَمۡ يُصِرُّواْ عَلَىٰ مَا فَعَلُواْ وَهُمۡ يَعۡلَمُونَ ﴿١٣٥﴾ أُوْلَٰٓئِكَ جَزَآؤُهُم مَّغۡفِرَةٞ مِّن رَّبِّهِمۡ وَجَنَّٰتٞ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا
ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ وَنِعۡمَ أَجۡرُ ٱلۡعَٰمِلِينَ ﴿١٣٦﴾ قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِكُمۡ سُنَنٞ فَسِيرُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَٱنظُرُواْ كَيۡفَ كَانَ
عَٰقِبَةُ ٱلۡمُكَذِّبِينَ ﴿١٣٧﴾ هَٰذَا بَيَانٞ لِّلنَّاسِ وَهُدٗى وَمَوۡعِظَةٞ لِّلۡمُتَّقِينَ ﴿١٣٨﴾ وَلَا تَهِنُواْ وَلَا تَحۡزَنُواْ وَأَنتُمُ ٱلۡأَعۡلَوۡنَ إِن
كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴿١٣٩﴾ إِن يَمۡسَسۡكُمۡ قَرۡحٞ فَقَدۡ مَسَّ ٱلۡقَوۡمَ قَرۡحٞ مِّثۡلُهُۥۚ وَتِلۡكَ ٱلۡأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيۡنَ ٱلنَّاسِ
وَلِيَعۡلَمَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَيَتَّخِذَ مِنكُمۡ شُهَدَآءَۗ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٤٠﴾ وَلِيُمَحِّصَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَيَمۡحَقَ
ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿١٤١﴾ أَمۡ حَسِبۡتُمۡ أَن تَدۡخُلُواْ ٱلۡجَنَّةَ وَلَمَّا يَعۡلَمِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ جَٰهَدُواْ مِنكُمۡ وَيَعۡلَمَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿١٤٢﴾ وَلَقَدۡ كُنتُمۡ
تَمَنَّوۡنَ ٱلۡمَوۡتَ مِن قَبۡلِ أَن تَلۡقَوۡهُ فَقَدۡ رَأَيۡتُمُوهُ وَأَنتُمۡ تَنظُرُونَ ﴿١٤٣﴾ وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٞ قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِهِ ٱلرُّسُلُۚ
أَفَإِيْن مَّاتَ أَوۡ قُتِلَ ٱنقَلَبۡتُمۡ عَلَىٰٓ أَعۡقَٰبِكُمۡۚ وَمَن يَنقَلِبۡ عَلَىٰ عَقِبَيۡهِ فَلَن يَضُرَّ ٱللَّهَ شَيۡـٔٗاۗ وَسَيَجۡزِي ٱللَّهُ
ٱلشَّٰكِرِينَ ﴿١٤٤﴾ وَمَا كَانَ لِنَفۡسٍ أَن تَمُوتَ إِلَّا بِإِذۡنِ ٱللَّهِ كِتَٰبٗا مُّؤَجَّلٗاۗ وَمَن يُرِدۡ ثَوَابَ ٱلدُّنۡيَا نُؤۡتِهِۦ مِنۡهَا
وَمَن يُرِدۡ ثَوَابَ ٱلۡأٓخِرَةِ نُؤۡتِهِۦ مِنۡهَاۚ وَسَنَجۡزِي ٱلشَّٰكِرِينَ ﴿١٤٥﴾ وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيّٖ قَٰتَلَ مَعَهُۥ رِبِّيُّونَ كَثِيرٞ فَمَا وَهَنُواْ
لِمَآ أَصَابَهُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَمَا ضَعُفُواْ وَمَا ٱسۡتَكَانُواْۗ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿١٤٦﴾ وَمَا كَانَ قَوۡلَهُمۡ إِلَّآ أَن قَالُواْ رَبَّنَا ٱغۡفِرۡ
لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسۡرَافَنَا فِيٓ أَمۡرِنَا وَثَبِّتۡ أَقۡدَامَنَا وَٱنصُرۡنَا عَلَى ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿١٤٧﴾ فَـَٔاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ ثَوَابَ ٱلدُّنۡيَا وَحُسۡنَ ثَوَابِ
ٱلۡأٓخِرَةِۗ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿١٤٨﴾ ﴾ آل عمران ۱۳۳ - ۱۴۸

مناسبت او تړاو:

څرنګه چي الله تعالى دصبراوتقوي په هکله مومنان وهڅول اوددي تنبيه يې ورکړه چي کله په بدرکښي الله پاک ددوئ مرسته په ملائکواوپرښتووکړه نويې داحکم وکړچي دالله درضا اوخوښي دمونډلو لپاره تلواروکړي بيا وروسته يې په تفصيل سره دأحدغزاء اودمومنانوماتي وروسته له برى وخيړله اوهغه هم پدي چي درسول الله ﷺ له امر څخه مخالفت وشواووروسته يې داوښودله چي

ابتلااوازموینبت دژوندانه سنت دی اودانبیاووقتل نه ښایي چي په زړونوکښي کمزوري پیداکړي اوبیاپرله پسي آیتونه دعبرت ځخه ډک درسونه چي داُحد په غزا کښي دي بیانوي.

لغتونه:

(وسارعوا) تلوارونکړئ ( السرآء) شتمني ( والضرآء) نیستي ( والکاظمین ) قهرخوړونکي ویل کیږي (کظم غیظه ) یعنی قهر یې پټ کړ سره له دي چي کولاي یې شول په دښمن باندي دقهرعکس العمل ځرګند کړي اوله ( کظم القِربة ) اخیستل شوي چي معنا یې ده ژئ یې ډک کړ خوله یې وروتړله.

( فاحشة ) هغه ډیربدفعل اوعمل ( خلت) تېرشوي ( سنن) دسنت جمع ده اوهغې لاري ته ویل کیږي چي درباندی تګ کیږي اوله دي ځخه دنبی ﷺ سنت دي اودلته مرادهغه پیښي دي چي دروغجنوته وررپیښي شوي دي ( قرح ) پرهارته وایې اوهغه چي په زبراوپیښ وي فراء وایې چي دقاف په زبرسره زخم اوپرهارته وایې اوپه ضمه سره یې دردته[۱] اودکلمي اصل له قراح ځخه اخیستل شوي چي خالص ته وایې لکه ( مآء قراح ) (تداولها) موړیې ګرځوو له (تداول )نه اخیستل شوي له یوځخه بل ته لیږد ، داسي ویل کیږي ( تداولته الأیدي) کله چي یوشي لاس په لاس شي ( ولیمحص) او چی پاک کړی تمحیص پاکولو اوله هره عیب ځخه چاڼ کولوته وایې چي د(تنقیه) په معنا دي ( ویمحق ) محق دیوشي لړوالي اوکمبودته چي وروترسره کیږي وایې ( اودسپوږمی محاق هم له دي ځخه دي ) ( اعقابکم) له عقب ځخه اخیستل شوي اوشاته وایې وایې ( انقلب علی عقبیه) یعنی وګرزید په پوندو خپلوهغه پخوانی ځاي ته ( مؤجلا) تاکلي موده چي ورروسته وړاندي نه کیږي ( وکأین) دتکثیرپه معنا دي اصل یې ( ايّ) وواوبیادتشبیه کاف وړباندي داخل شو(کأیّن) راغي (ربیون) رب ته یې نسبت شوي اولکه ربانیون اوهغوئ تقوي لرونکي علما دي چي دالله ﷻ عبادت کونکي وي چابیاویلی چي ( الربة) ته یې نسبت شوي چي هغه تولی اوجماعت دی ( استکانوا) خضوع کونکي اوذلیل اصل یې له سکون ځخه اخیستل شوي ځکه خاضع هم ساکن وي چي ورباندی هرځه کول کیږي نه خوځیږي.

تفسیر:

﴿ وَسَارِعُوٓاْ إِلَىٰ مَغۡفِرَةٖ مِّن رَّبِّكُمۡ وَجَنَّةٍ ﴾ اوتلوارونکړئ په طرف د(هغواعمالو) چي سبب دمغفرت درب ستاسي او(سبب ددخول ) د جنت دی﴿ عَرۡضُهَا ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلۡأَرۡضُ ﴾ چي پلنوالی دهغه (پسور) لکه پلنوالی دآسمانونواوځمکي دي لکه چي بل ځای په سورة الحدید کښي فرمایې :( عرضها کعرض السمآء والارض ) الحدید(۲۱ ) اوغرض دهغه دپراخوالي بیا ن دي نوچي دومره یې پسورروي اوږدوالی به یې څومره وي؟ !﴿ أُعِدَّتۡ لِلۡمُتَّقِينَ ﴾ تیارکړي شوي دي لپاره دپرهیزګارانو﴿ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي ٱلسَّرَّآءِ وَٱلضَّرَّآءِ ﴾ هغه کسان چي نفقه ورکوي ( مال لګوي دالله په نامه ) په آسانی اوسختي کښي یاپه شتمني

[۱] القرطبی ۴ / ۲۱۷

اوتنګسیا تکلیف کښي ﴿ وَٱلۡكَٰظِمِينَ ٱلۡغَيۡظَ ﴾ اوزغمونکي دقهردي ( سره له قدرته دانتقام اوغچ اخیستلو ) ﴿ وَٱلۡعَافِينَ عَنِ ٱلنَّاسِۗ ﴾ اوعفو کونکي دی له خلګو ( چي پري زیاتی اویاظلم وکړي ) ﴿ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴾ ( اوالله ﷻ خوښوي نیکي کونکي ) یعني هغه کسان چي پدي صفتونو متصف وي ﴿ وَٱلَّذِينَ إِذَا فَعَلُواْ فَٰحِشَةً ﴾ اوهغه کسان چي وکړي دوئ لویه ګناه ( کبیره )[1] ﴿ أَوۡ ظَلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ ﴾ اویایې په ځانونوظلم کړي وي ( په یوه ګناه کولو ) ﴿ ذَكَرُواْ ٱللَّهَ فَٱسۡتَغۡفَرُواْ لِذُنُوبِهِمۡ ﴾ ( نویادکړي دوئ الله پس مغفرت وغواړي دوئ لپاره دګناهونوخپلو ) یعنی دوئ دالله ﷻ عظمت اوهغه وعید چي دګنهګارانوپه هکله یې فرمایلی وریه یادکړي نوله ګناه څخه ځان وژغوري اوتوبه ګارشی الله ﷻ ته رجوع وکړي ﴿ وَمَن يَغۡفِرُ ٱلذُّنُوبَ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ اوڅوک دي چي مغفرت کوي د ( تولو ) ګناهونومګرالله ﷻ دلته استفهام دنفي په معنا دي یعنی دګناهونوبښنه نه کوي مګرالله ﷻ دغه جمله اعتراضیه اودبندګانودزړه خوښولواودتوبې لپاره دراوېښولوپه هکله یې فرمایلی ده اوبل ددي بیان دی چي ګناهونه که څه هم لوي وي خودالله ﷻ رحمت اوعفوزښته لویه اوزیاته ده ﴿ وَلَمۡ يُصِرُّواْ عَلَىٰ مَا فَعَلُواْ وَهُمۡ يَعۡلَمُونَ ﴾ اونه کوي مداومت دوئ پرهغه ګناه چي کړي یې ده دوئ حال دا چي دوئ پوهیږي ( چي موږ بدکړي دي ) بلکه دوئ هغه فعل پریږدي اوتوبه کاږي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ جَزَآؤُهُم مَّغۡفِرَةٞ مِّن رَّبِّهِمۡ ﴾ هم دامتقیان چي ذکرشول جزاء ددوئ مغفرت له ( جانبه ) درب ددوئ اوثواب ددوئ عفواوبښنه ده له هغوتېرشوي ګناهونوڅخه ﴿ وَجَنَّٰتٞ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ ﴾ اوجنتونه دي چي بهیږي لاندي له ونودهغوویالې ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ ﴾ چي تل به وي دوئ په هغوجنتونوکښي ، ﴿ وَنِعۡمَ أَجۡرُ ٱلۡعَٰمِلِينَ ﴾ ( اوڅومره ښه دي اجردعاملینو ) یعني جنت څومره ښه دي دهغه چالپاره چي دالله ﷻ دامرمنونکي وي بیا الله ﷻ دأحددغزاپاتی تفصیل وروسته له دي چي دسمون اورشدیوتمهیدیې کښېښودداسي بیانوي : ﴿ قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِكُمۡ سُنَنٞ ﴾ په تحقیق سره تېر شوي دي پخواله تاسي ډېرې طریقې ( دکفارودهلاکت چي له انبیاووسره به یې مخالفت کاوو ) ﴿ فَسِيرُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَٱنظُرُواْ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلۡمُكَذِّبِينَ ﴾ ( نووګرځئ ( تګ وکړئ په مځکه کښي پس وګورئ چي څرنګه ووعاقبت دنسبت کونکودددرغو(رسولانوته) یعنی ددروغجنانواخبارځان ته معلوم کړئ چي له دوئ سره څه وشول ؟ ترڅوتاسي ددوئ له هلاکت څخه پنداوعبرت واخلئ ﴿ هَٰذَا بَيَانٞ لِّلنَّاسِ ﴾ دا(قرآن ) بیان دي له پاره

---

[1] - ابن عباس ﷺ وایې چي فاحشه زناته وایې او( ظلم النفس ) بیاکتلو اودلاس ورغزولوته وایې

د(تولو) خلکو.(۱) ﴿ وَهُدًى وَمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِينَ ﴾ (او هدايت او نصيحت دي پرهيزګارانو ته) يعنی دغه دسمي لاري لاربښونه او موعظت دي او متقينو ته په ځانګړې توګه يادونه ده او چي يوازي متقين يې راوړل ددې لپاره چي هغوئ ګټه اخيستونکي دی وربانده نه نورخلک بيا وروسته الله پاک دوئ ته

دادينه اوتسل وركوي چي د احد ماتی يې دخفګان سبب نه شي فرمايي ﴿ وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا ﴾ (او مه سستيږئ او مه خفه کيږئ تاسي) يعنی له جهاد څخه مه سستيږئ او په هغه قتل او ماتی چي درته

رسيدلي مه خپه کيږئ ﴿ وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ ﴾ (او هم داتاسي غالب ياست) يعنی تاسو پردوئ سربيره ياست که څه هم دوئ په أحد کښي دربانده بريالي شول هوتاسو په بدر کښي دوئ ته سخته ماتی ورکړي وه !

﴿ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ (که يې تاسي مومنان په حقه سره) نو مه سستيږئ او مه هم خپه کيږئ ﴿ إِن

يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهُ ﴾ که ورسيږي تاسي ته زخم نو په تحقيق رسيدلي دي قوم

(دکفارو) ته (هم) زخم په شان دزخم ستاسي ﴿ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ﴾ (او دا ورځي

اړوو را اړويې (په وار) په منځ دخلکو کښي) يوه ورځ بری بله ماتې يوه ورځ دخوښي بله دغم ﴿ وَلِيَعْلَمَ

اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا ﴾ او لپاره ددی چي معلوم کړي الله ﷻ هغه کسان چي ايمان لرونکي وي) يعنی الله پاک دغه ازميښت ددي لپاره ورکړ چي وګوري څوک په سختيو کښي زغم او صبر کوي او ترڅو منافقين

او مؤمنين سره بيل کړي ﴿ وَيَتَّخِذَ مِنكُمْ شُهَدَاءَ ﴾ او بل لپاره ددي چي ونيسي الله ﷻ له تاسي شهيدان

(دالله په لاره کښي) ﴿ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ﴾ او الله نه خوښوي ظالمان يعنی متجاوزين چي منافقين هم

ددوئ له ډلي دي هغوئ چي د احد په ورځ يې درسول الله ملاتړ پرينښود. ﴿ وَلِيُمَحِّصَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا ﴾

او لپاره ددي چي پاک اوصاف کړي (له ګناه هغه کسان چي ايما ن لرونکي دي) ﴿ وَيَمْحَقَ الْكَافِرِينَ ﴾

او هلاک کړي (الله ﷻ) کافران (ورو، ورو) ﴿ أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ ﴾ آيا ګمان کوئ تاسي ددي چي ننوځي به جنت ته) استفهام انکاري دي يعنی اي مسلمانانو تاسو داګمان کوئ چي جنت ته به پرته

له امتحان او ازميښته ورشئ ﴿ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ ﴾ حال داچي معلوم کړی به نه وي الله ﷻ (په علم ظهور سره) هغه کسان چي جهادي کړي وي له تاسي څيني او معلوم کړي الله نه وي (په علم ظهور سره) صابران (په سختيو کښي) طبری وايي معنا داچي اي درسول الله ﷺ اصحابانو رضي الله عنهم آيا ګومان کوئ چي دالله عزت به درکول شي او مؤمنو بند ګانو ته به مجاهدين في سبيل

الله او په سختيو کښي صبر او زغم لرونکي او دالله لپاره زخم خوړونکي معلوم نه وي(۲) ﴿ وَلَقَدْ كُنتُمْ

---

۱ - طبری او څيني مفسرينو ويلی چی دا اشاره ماتقدم ذکره ته راغلی او معنا داچي دا څرګنده شوي حقائق او دغه دتيرو امتونو هلاکتونه په دي کښي بيان دی له چوپتيا څخه، هدايت دی له ضلالت نه او پند دي دمتقينو لپاره.

۲ - تفسير طبری

﴿تَمَنَّوۡنَ ٱلۡمَوۡتَ﴾ اوخامخا په تحقيق وې تاسي چي آرزوبه موكوله دمرګ يعنى تاسوبه ددښمن مخامخ كيدل غوښتل ترڅوشهادت موپه برخه شي ﴿مِن قَبۡلِ أَن تَلۡقَوۡهُ﴾ پخواله هغه چي تاسي پيښيدي پردغه مرګ ( يعني پخواله دي چي وشكئ شدت يې آيت شريف دهغه چالپاره چي ماتى يې كړى عتاب دي .

﴿فَقَدۡ رَأَيۡتُمُوهُ وَأَنتُمۡ تَنظُرُونَ﴾ ( نوپه تحقيق وليد تاسي دا(مرګ) حال داچي تاسي ( ورته ) كتل يعنى تاسي هغه دسرپه سترګو وليدچي ورونه مووژل كيدل اونژدي ووچي تاسي هم وژل شوي واى ،راتلونكي آيت شريف هغه وخت نازل شوچي كافرانوداآوازه خپره كړه چي محمدووژل شواومنافقينوويل: كه چيري وژل شوي وي نوراشئ چي بيرته لومړني دين ته وګرزو ﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِهِ ٱلرُّسُلُ﴾ اونه دى محمد ﷺ مګر دي ( يورسول ( دالله ) په تحقيق سره تېرشوي له ده نه پخوا( ډير ) رسولان ) اوله رسولانوڅيني څوك مړه شوي اوڅيني وژل شوي دي . ﴿أَفَإِيْن مَّاتَ أَوۡ قُتِلَ ٱنقَلَبۡتُمۡ عَلَىٰٓ أَعۡقَـٰبِكُمۡ﴾ ( آيانوكه مړشي ( محمد ) ياشهيد كړى شي ( محمد ) نوبيرته به وګرزئ تاسي پرپوندو خپلو؟) يعنى كه يې الله ﷻ ووژني اويايې كفارشهيدكړي نوتاسيّ به وروسته له ايمانه مرتدكيږئ اوكفرته به ګرزئ؟ ﴿وَمَن يَنقَلِبۡ عَلَىٰ عَقِبَيۡهِ فَلَن يَضُرَّ ٱللَّهَ شَيۡـًٔا﴾ ( اوهرڅوك چي بيرته وګرځيد په پوندوخپلو( كفرته )نوله سره به زيان ونه رسوي الله ﷻ ته هيڅ شي ) بلكه خپل ځان ته به زيان ورسوي چي دالله ﷻ قهراوغضب ته به ودريږي ﴿وَسَيَجۡزِى ٱللَّهُ ٱلشَّـٰكِرِينَ﴾ ( اوژربه جزاوركړي الله شكرګزاروته ) يعنى الله پاک به طاعت كونكوته هغه چي ثابت قدم پاتي شوي اوګرزيدلي نه دي ثواب وركړي بياالله تعالى دانبيې چي دهرساكښ لپاره يې موده ټاكلې چي يوه شيبه به وروسته وړاندى نشي نوفرمايي: ﴿وَمَا كَانَ لِنَفۡسٍ أَن تَمُوتَ إِلَّا بِإِذۡنِ ٱللَّهِ﴾ ( اونشته هيڅ يونفس لره چي مړشي مګرپه اذن (حكم ) دالله ﷻ سره يعنى دالله په اراده اومشيت سره ﴿كِتَـٰبًا مُّؤَجَّلًا﴾ ( چي ليكل شوي دي ( دامرګ ) په يوه مقرره وخت كښي ) چي نه وړاندى اونه وروسته كيږي اوپدي كښي ددوئ لپاره دجهادكوّلوهڅونه اوتحريض دي چي ددښمن له مخامخ كيدلوونه ويريږي څكه ويره تقديرنه شي بدلولي اوانسان ترڅپل اجل دمخه نه وژل كيږي اومړكيږي كه څه هم په سختوجګړو كښي ارشي ﴿وَمَن يُرِدۡ ثَوَابَ ٱلدُّنۡيَا نُؤۡتِهِۦ مِنۡهَا﴾ اوهرڅوك چي غواړي ( په عمل خپل سره بدل) ثواب ددې دنيانوموږ به يې وركړوهغه ته له هم دغه ( دنيوى بدل) ( اونه به وى ده لره په آخرت كښي برخه ، په دې كښي دهغه چالپاره تعريض دي چي دغنيمتونويې رغبت درلودبيا الله پاک دابيانوي چي ددنياموندل اوكټل دغبطي ورنه دي څكه هغه نيک اوفاجر دواړوته وركول كيږي ﴿وَمَن يُرِدۡ ثَوَابَ ٱلۡأٓخِرَةِ نُؤۡتِهِۦ مِنۡهَا﴾ اوهرڅوك چي غواړي ( په خپل عمل سره بدل ) ثواب دآخرت نووربه يې كړوموږ هغه ته له همدغه ( اخروي ثواب) بشپړسره له هغى دنيوي برخي لكه چي بل ځاي فرمايي: ( من كان يريدحرث الآخرة نزدله

فی حرثه ) (الشوری ۲۰ ) ﴿ وَسَنَجْزِى الشَّٰكِرِينَ ﴾ اوژربه جزا(ثواب) ورکړوشکرګزاروته ) یعنی موږبه دوئ ته له خپله فضله اورحمته ددوئ دشکراوعمل ثواب ورکړو ﴿ وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قَٰتَلَ مَعَهُۥ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ ﴾ (اوډیرله نبیانوڅخه ووچي ددوئ په مرسته جنګیدلی وورباني سړي ډیر) یعنی ډیروانبیاوودااعلاء کلمة الله لپاره جهادکړي چي رباني علمائې ملګری وو.(۱) اوصالح بندګان ورسره وواوځیني له دوئ ځینی ووژل شول ﴿ فَمَا وَهَنُوا لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ ( نوهیڅ قدربه نه سستیدل هغوئ له سببه دهغه تکلیفه چي رسیدلی به وودوئ ته په لاره دالله کښي ) یعنی دوئ به نه بې زړه کیدل اونه به ضعیفان کیدل له هغه وژلواوزخمونوڅخه چي دوئ ته به رسیدل ﴿ وَمَا ضَعُفُوا ﴾ اونه به ضعیفان کیدل ( په جهادکښي ) ﴿ وَمَا اسْتَكَانُوا ﴾ اونه به یې سرټیټاوودښمن ته ﴿ وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّٰبِرِينَ ﴾ اوالله خوښوي ( دالله په لاره کښي په سختیوکښي ) صبرکونکي ﴿ وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلَّا أَن قَالُوا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا ﴾ (اونه وه ویناددوئ مګرداچي ویل دوئ ای ربه زموږ مغفرت وکړه موږته ګناهونه زموږ ) یعنی دوئ سره له خپل قوت اوپه دین کښي ټینګارسره له الله ﷻ څخه دمغفرت غوښتلودعاوې کولي ﴿ وَإِسْرَافَنَا فِي أَمْرِنَا ﴾ اوله حده تیریدل زموږپدي کارزموږکښي ) هغه چي زموږ طاعت اوعبادت دي ستاله پاره ﴿ وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا ﴾ ( اوټینګ کړه قدمونه زموږ ( دجنګ په ډګرکښي ) ﴿ وَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَٰفِرِينَ ﴾ اومرسته راکړه موږته پرقوم دکافرانو ﴿ فَـَٔاتَىٰهُمُ اللَّهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْـَٔاخِرَةِ ﴾ ( نوورکړی دوئ ته الله ثواب ددنیااوښه ثواب دآخرت ) یعنی الله دوئ ته ددنیاثواب چي غنیمت (ولجه) عزت اوبری دی سره دښارونودنیولودآخرت له جزاسره یوځای چي جنت اونعمتونه یې دي ورکړل ﴿ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴾ ( اوالله خوښوي نیکي کونکي ) یعنی هغه کسان چي نیک عمل یې دي اونیت یې خالص دالله لپاره وي دآخرت ثواب یې ځکه په حسن وستایل چي دالله فضل څرګندونه وکړي اوداچي الله ته غوره دي.

**بلاغت:**

پدی مبارکوآیتونوکښي دبدیع اوبیان ډیرڅه شته چي په لاندی ډول یې لنډیزلیکو:

۱- (عرضها السموات والأرض) وجه دمشابهت اودتشبیه ادات (توري) حذف شوي نوورته بلیغه تشبیه ویل کیږي

۲ - پدی قول دالله تبارک وتعالی کښي چي فرمایې: ( سارعوا الی مغفرة ) دلته تسمیه دشي په اسم دسبب سره دی یعنی تلوار وکړئ موجباتودمغفرت ته.

۳ - پدي کلماتوکښي ( السرآء والضرآء) دطباق صنعت دي چي له بدیعي محسناتوڅخه شمیرل کیږي.

۱ - طبری وایې چی د(ربیون کثیر) معنی ډیري ډلې دی اوقتاده هم دغسی ویلي اوحسن وایې چي مراد عالمان دی.

۴- ( ومن يغفر الذنوب الاالله ) دلته استفهام او غرض ځنی نفی ده يعنی نه يې بښي.

۵ - پدی کلام کښې چي ( اولئک جزاءهم مغفرة ) دلته دبعيد اشاره ددی لپاره ده چي ددوئ منزلت ډيرلوړ او درجه يې ستره ده دفضل خاوندان دی.

۶ - ( ونعم اجرالعاملين) دلته مخصوص بالمدح حذف شوي دي اوتقديريې داسی راځي ( ونعم أجر العاملين ذلک)

۷ - پدی جملو کښې چي فرمايې ( وليعلم الله ) التفات دی ځکه هغه وروسته له ( نداولها ) راځي نوځکه له حاضرڅخه غائب ته التفات دی او غرض پکښې دجهاد دشان تعظيم اودرناوي دی.

۸ -( ومامحمد الارسول ) دلته قصردموصوف په صفت پسی دی.

۹ - پدی قول کښې چي راځي ( انقلبتم على اعقابكم ) په تلخيص البيان کتاب کښې وايې چي دا استعاره ده اومرادځنی له دينه څخه رجوع کول دی نوالله ﷺ گرځيدل له دينــه ؛ له گرزيدلو په پوندوسره مشابه کړل.[1]

فوائد اوګټي:

لومړی فائده: پدي آيتونو کښې چي پيل يې شوي دي په: ( وسارعوا الى مغفرة ) دښو اخلاقو او مکارمو ،فضيلتونو ډيری بيلګې دي لکه سخاوت ،قهرزغمل ،ښښنه کول ، له ګناهونو څخه توبه کول اوهريو يې ددومره بهترېو خاوند دی چي حصراوشميريې امکان نلري.

دوهمه فائده : پدی آيتونو کښې مغفرت ترجنت دمخه ذکرشوي دی ځکه تخليه ترتحليه وړاندي وي اوجنت ته ددخول استحقاق هغه وخت مونده کيږي چي له ګناهونو پاک شي.

دريمه فائده : دجنت عرض ( پسور) يې په ځانګړی توګه ذکرکړچي دجنت دپراخي په صفت کښې مبالغه مقصد ده نوچي عرض يې هومره وي طول به يې څومره زيات وي ؟ ابن عباس ﷺ پدی هکله وايې چي لکه اوه آسمانونه اوه مځکې يوله بله سره ونښليږي[2] هومره پراخ دی.

څلورمه فائده : هرقل باچا نبی ﷺ ته وليکل: تا زه هغه جنت ته بللی يم چي عرض يې لکه آسمانونه اوځمکې غوندی دی نواورڅه شو؟ عليه الصلوة والسلام وفرمايل : ( سبحان الله أين الليل اذاجاء النهار( چيرته ده شپه چي ورځ راشي ).[3]

پنځمه فائده : الله تعالى دآخرت کاراوعمل ته دتلواري حکم کړي اودا په ډيروآيتونو کښې لکه:

( وسارعوا الى مغفرة ) (وسابقوا الى مغفرة ) ( فاستبقوا الخيرات ) (فاسعوا الى ذكر الله ) (وفی ذلک فليتنافس المتنافسون )اوهرچي دنيوي کاراوعمل دي هغه يې په کراراوهون سره کول امرکړي دی لکه (فامشوا فی مناكبها)(وآخرون يضربون فى الارض ) نودغه باريک رازته ښه ځيرشه اوورباندي سوچ وکړه!

[1] - تلخيص البيان ص ۲۱

[2] - البحر المحيط ۳/ ۵۸

[3] - اخرجه احمد

**الله تعالی فرمايي:**

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تُطِيعُوا۟ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يَرُدُّوكُمْ عَلَىٰٓ أَعْقَـٰبِكُمْ فَتَنقَلِبُوا۟ خَـٰسِرِينَ
﴿١٤٩﴾ بَلِ ٱللَّهُ مَوْلَىٰكُمْ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلنَّـٰصِرِينَ ﴿١٥٠﴾ سَنُلْقِى فِى قُلُوبِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱلرُّعْبَ بِمَآ أَشْرَكُوا۟
بِٱللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ سُلْطَـٰنًا ۖ وَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ۚ وَبِئْسَ مَثْوَى ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿١٥١﴾ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ
ٱللَّهُ وَعْدَهُۥٓ إِذْ تَحُسُّونَهُم بِإِذْنِهِۦ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَـٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ وَعَصَيْتُم مِّنۢ بَعْدِ مَآ أَرَىٰكُم
مَّا تُحِبُّونَ ۚ مِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلدُّنْيَا وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلْـَٔاخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ۖ
وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ ۗ وَٱللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٥٢﴾ ۞ إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُۥنَ عَلَىٰٓ أَحَدٍ
وَٱلرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ فِىٓ أُخْرَىٰكُمْ فَأَثَـٰبَكُمْ غَمًّۢا بِغَمٍّ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوا۟ عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ وَلَا
مَآ أَصَـٰبَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٥٣﴾ ثُمَّ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنۢ بَعْدِ ٱلْغَمِّ أَمَنَةً نُّعَاسًا يَغْشَىٰ طَآئِفَةً مِّنكُمْ ۖ
وَطَآئِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنفُسُهُمْ يَظُنُّونَ بِٱللَّهِ غَيْرَ ٱلْحَقِّ ظَنَّ ٱلْجَـٰهِلِيَّةِ ۖ يَقُولُونَ هَل لَّنَا مِنَ ٱلْأَمْرِ مِن شَىْءٍ ۗ قُلْ إِنَّ
ٱلْأَمْرَ كُلَّهُۥ لِلَّهِ ۗ يُخْفُونَ فِىٓ أَنفُسِهِم مَّا لَا يُبْدُونَ لَكَ ۖ يَقُولُونَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ ٱلْأَمْرِ شَىْءٌ مَّا قُتِلْنَا هَـٰهُنَا ۗ قُل لَّوْ كُنتُمْ
فِى بُيُوتِكُمْ لَبَرَزَ ٱلَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ ٱلْقَتْلُ إِلَىٰ مَضَاجِعِهِمْ ۖ وَلِيَبْتَلِىَ ٱللَّهُ مَا فِى صُدُورِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِى قُلُوبِكُمْ ۗ
وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿١٥٤﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَوَلَّوْا۟ مِنكُمْ يَوْمَ ٱلْتَقَى ٱلْجَمْعَانِ إِنَّمَا ٱسْتَزَلَّهُمُ ٱلشَّيْطَـٰنُ بِبَعْضِ مَا
كَسَبُوا۟ ۖ وَلَقَدْ عَفَا ٱللَّهُ عَنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٥٥﴾ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَقَالُوا۟ لِإِخْوَٰنِهِمْ إِذَا
ضَرَبُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ أَوْ كَانُوا۟ غُزًّى لَّوْ كَانُوا۟ عِندَنَا مَا مَاتُوا۟ وَمَا قُتِلُوا۟ لِيَجْعَلَ ٱللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً فِى قُلُوبِهِمْ ۗ وَٱللَّهُ يُحْىِۦ
وَيُمِيتُ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١٥٦﴾ وَلَئِن قُتِلْتُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ أَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا
يَجْمَعُونَ ﴿١٥٧﴾ وَلَئِن مُّتُّمْ أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى ٱللَّهِ تُحْشَرُونَ ﴿١٥٨﴾ ﴾ آل عمران: ۱۴۹-۱۵۸

**مناسبت او تړاو:**

لاتراوسه پوري آيتونه دأحد دغزا پيښې بيانوي پندونه او نصيحتونه وړاندې کوي او داچې دماتې سبب څه وو؟ منافقينو څرنګه شرمونکي دريز او موقف نيولی وو او څرنګه يې د اسلامي دعوت په لار کښي خنډونه اچول چې د مسلمانانو عزائم مړژواندي کړي؟.

**لغتونه:**

(سلطانا) حجت او برهان او اصل يې قوت ته وايې همدا لامل دي چې والي ته سلطان وايې ( مثوىٰ ) دانسان هستوګنځي لکه چي وايي ( يؤي بالمكان ) كله چي د اوسيدلو لپاره ځای غوره کړي ( تحسونهم ) چي وژل تاسي دوي زجاج وايي چي ( حسّ ) په وژلو سره يې بنياد ايستلو ته وايي او اصل يې د حس په ځای باندی وار کولو ته وايي (تصعدون) اصعاد په مځکه کښي تللو ته او ليري کيدلو ته وايي

اوداصعاداوصعودتوپیردادی چې اصعادپه مستوي ځمکه تګ کول اوصعودپه لوړه ختلوته وایې (لاتلون) هیڅاته مونه کتل لکه چې ماتی خوړلی دتیښتی په حال کښې منډې وهي اواصل یې له (لی العنق) څخه اخیستل شوي دي چې دالتفات په وخت کښې غاړه کږولوته وایې (اُخراکم) وروسته ستاسي (اثابکم) سزایې درکړه (اَمنة) اطمئنان (یغشی) پټه یې کړه لاندي یې کړه (ولیمحص) تمحیص پاکولواوچاڼ کولوته وایې (استزلهم) په ګناه کښې اچول اوښویولوته وایې (غُزّی) دغازي جمع ده هغه چې دالله ﷻ په لاره کښې وتلی وي.

دنزول سبب : کله چې رسول الله ﷺ مدینې منورې ته راستون شواوپه اُحدکښې اصحابانوته هغه څه رسیدلی ووکوم چې رسیدلی وونوداصحابانورضوان الله علیهم له ډلي څخه یوچاویل: داسی ولی وشول ؟اوپه تحقیق سره چې الله پاک راسره دمرستي ژمنه اووعده کړی وه نو الله داآیت نازل کړ: (ولقدصدقکم الله وعده...) تردي ځایه پوری چې فرمایې (منکم من یریدالدنیا) یعنی هغه غیښي ویشتونکي چې دأحد په ورځ یې سنګر پریښود.[1]

تفسیر:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن تُطِيعُواْ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ (ای هغوکسانوچې ایمان یې راوړي دي (ای مؤمنانو) که اطاعت وکړئ تاسي دهغوکسانوچې کافران شوي دي ) یعنی که تاسودکافرانواو منافقینوداوامرواطاعت وکړئ ﴿ يَرُدُّوكُمْ عَلَىٰٓ أَعْقَٰبِكُمْ ﴾ (نوبیرته به وګرزوي دغه (کفار) تاسي پرپوندوستاسي ) یعنی کفرته به مووااړوي ﴿ فَتَنقَلِبُواْ خَٰسِرِينَ ﴾ نووبه ګرزئ تاسي زیانکاران یعني خسران ته به واوړئ اوتردی سترخسران چیرته دی چې ایمان په کفربدل کړئ ابن عباس رضي الله عنه وایې: چې کله له اُحدنه مسلمانان راوګرزیدل نو منافقینو به ورته ویل که چیري رښتونی پیغمبر(نبي ) وای هسي به نه وړپیښیدله نوراوګرزئ خپلووروڼوته ! ﴿ بَلِ ٱللَّهُ مَوْلَىٰكُمْ ﴾ بلکه الله (مرسته کونکي دوست لرونکي ) ستاسي دي ) یعنی الله ښه مرستندوئ اومددګاردي ,تردي چې د دوئ پیروي کوئ دالله ﷻ پیروي وکړئ ﴿ وَهُوَ خَيْرُ ٱلنَّٰصِرِينَ ﴾ اوهم دي خوراښه دټولو مرسته کونکودي ) نوتاسي له بل چاڅخه مدداومرسته مه غواړئ بیا الله تعالی مؤمنانوته زیري ورکړچې ددښمنانوپه زړونوکښې به ویره واچوی دبې ویل: ﴿ سَنُلْقِى فِى قُلُوبِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلرُّعْبَ ﴾ ژربه وغورځووپه زړونود هغو کسانوکښې چې کافران شوي دي هیبت اوویره ﴿ بِمَآ أَشْرَكُواْ بِٱللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ سُلْطَٰنًا ﴾ په سبب دشریک نیولو د دوئ له الله سره هغه شي چې ندی نازل کړي (الله ) په (شریک نیولو ) دهغه کوم برهان اودلیل ) .

﴿ وَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ﴾ اوځای دهستوګنی ددوئ اورددوزخ دی) ﴿ وَبِئْسَ مَثْوَى ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوبدځای دهستوګنی دظالمانودی داوردوزخ پس دوئ په دنیاکښې ویرول شوي اوپه آخرت کښې به

[1] - اسباب النزول للواحدی ص۷۲

عذاب اخته شوي په حدیث شریف کښي راځي: (نصرت بالرعب مسیرة شهر) ماته دیوې میاشتي (دمزل کولو په مسافه د کافرانو) دویرولو نصرت اوبری راکول شوي دي. ﴿ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ ٱللَّهُ وَعْدَهُۥٓ ﴾ (اوخامخا په تحقیق رښتیا کړه تاسي ته الله وعده خپله) یعنی هغه د مرستي وعده چي یې کړې وه په هغه یې درسره وفا وکړه ﴿ إِذْ تَحُسُّونَهُم بِإِذْنِهِۦ ﴾ په هغه وخت کښي کله چي وژل تاسي کافران په حکم د الله سره (یعنی کله چي مو کافران ریبل اوپخپلو تورو موهغوئ د الله په اذن سره پوپناکول ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ ﴾ ترهغه وخته پوري چي بې زړه شوي تاسي او (پخپلو منځونو کښي) سره مخالف شوئ په امرد(ځاي) کښي(هغه چي په غره کښي وو) ﴿ وَعَصَيْتُم مِّنۢ بَعْدِ مَآ أَرَىٰكُم مَّا تُحِبُّونَ ﴾ (یعنی نافرماني وکړه تاسي (له امر د رسول الله نه) له هغه وروسته چي دروښود (الله) تاسي ته هغه شي چي ستاسي خوښ وو) یعنی وروسته د هغه چي بریالیتوب ستاسي په برخه وو. روایت کیږي چي نبی ﷺ پنځوس تنه غشي ویشتونکي په غره دپاسه ودرول اوحکم یې ورته وکړچي له مسلمانانو څخه به دفاع کوي ورته ویل یې: (لاتبرحوا أماكنكم حتي ولورأيتمونا تخطفتنا الطير) تاسي خپل ځایونه مه پریږدئ آن تردي هم که تاسي ووینئ چي مرغان زموږ غوښي خوري ! اوکله چي دواړه لښکري دجنګ په ډګرکښي سره مخامخ شوي نودمشرکانو آسانو ددي توان نه درلودچي دزیاتوغشواوریدلوله امله تینګاروکړي مشرکانو ماتي وخوړه اوکله چي غشي ویشتونکو داحال ولیدویې ویل: ولجه، ولجه اوډپاتی شونود راتولولو لپاره راکوز شول یوازي ددوئ مشر(عبدالله ابن جبیر)رضی الله عنه سره له لسوتنوپاتی شواومشرکان دغره دشاله پلوه راغبرګ شول اودوئ یې شهیدان کړل بیا وروسته یې مسلمانان دشاله لوري تعقیب کړل اوپه توروبې وهل چي یووار بري په ماتي بدل شواودغه دالله تعالی قول دی چي فرمایې ﴿ وَعَصَيْتُم مِّنۢ بَعْدِ مَآ أَرَىٰكُم مَّا تُحِبُّونَ ﴾ یعنی له بري وروسته ﴿ مِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلدُّنْيَا ﴾ خیني له تاسي هغه دي چي خوښوي دنیا یعنی غنیمت اودوئ هماغه دي چي غریې پریښود ﴿ وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلْءَاخِرَةَ ﴾ (اوځیني ستاسي هغه دي چي خوښوي آخرت) یعنی دالله ثوابونه اوهغوئ هغه شهیدان دي چي لس تنه اوله خپل مشرسره یوځاي شهیدان شول ﴿ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ﴾ بیا (الله ﷻ) وګرزولي تاسي له کافرانو څخه (په تیښته سره) لپاره ددي چي وازمویې تاسي) یعنی تاسي یې په ماتي محکوم کړي چي ستاسي ایمان وازمویي. ﴿ وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ ﴾ اوهرومروپه تحقیق عفوه وکړه (الله تاسي ته سره له عصیانه ستاسي اوپدي کښي دي خبرې ته اشاره وه چي ګناه ددي استحقاق درلودچي تردي زیات زیان دراړول شوي وای خو الله ﷻ عفووکړه څکه فرمایي: ﴿ وَٱللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ (اوالله څښتن دلوي فضل دي په مؤمنانو باندی) یعنی په ټولو وختونو او حالاتو کښي الله ﷻ پرمؤمنانو باندي داحسان اونعمت خاوند دي ﴿ إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُۥنَ عَلَىٰٓ أَحَدٍ ﴾ (یاد کړئ هغه وخت) چي

تلئ منډي وهلی تاسي اونه موکتل هیچاته ( یو بل ته نه دریدلئ ) ﴿ وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ فِي أُخْرَىٰكُمْ ﴾ ( حال داچي رسول الله محمد ﷺ ) بللي تاسي وروسته ستاسي ) یعنی او محمد ﷺ په تاسي پسی له شاچیغي وهلي ویل يې: ( اليّ عبادالله الي عباد الله ) اي دالله ﷻ بندګانو زما په لور راشئ زما په لور راشئ زه دالله رسول یم څوک چي په کفارو حمله کوي جنت دهغوئ لپاره دي ! خو تاسي دتیښتي په هکله هوډ کړي وو ﴿ فَأَثَٰبَكُمْ غَمًّۢا بِغَمٍّ ﴾ ( نو سزا يې درکړه تاسي ته یو غم په سبب دبل غم ) یعنی تاسي چي درسول الله ﷺ له حکم څخه مخالفت وکړ ددي غم په سبب يې په بل غم اخته کړئ[1] ﴿ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوا۟ عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ ﴾ لپاره ددي چي خفه نشئ تاسي په هغه شي چي پاتي شوله تاسي ( له غنیمت څخه ) ﴿ وَلَا مَآ أَصَٰبَكُمْ ﴾ اونه په هغه شي چي ورسید تاسي ته ( دجنګ اوماتي څخه غرض دلته دغم دحکمت بیان دی هغه داچي دپاتی شوي خواشیني اودرسیدلی ربړاو زیان خفګان مو هیر شي اودادالله درحمت نښه ده ﴿ وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ ( او الله ښه خبر داردی په هغه شي چي تاسي يې کوئ ) یعنی مخلص له نورو څخه پیژني ﴿ ثُمَّ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنۢ بَعْدِ ٱلْغَمِّ أَمَنَةً نُّعَاسًا ﴾ ( بیايې نازل کړه پر تاسي باندی وروسته له دی غمه أمن ، پرکالی (خوب) چي دابیادالله یو احسان اوفضل ووچي تاسي ته يې سکینه او اطمینان درپه برخه کړ تر څوله دښمن څخه بیغمه شئ څکه ویریدونکي ته خوب نه ورځي امام بخاري له انس ﷺ څخه روایت کوی چي ابو طلحة ﷺ وویل : مونږ پداسی حال کښي چي په أحد کښي دجنګ په ډګر کښي پرکالی لاندی کړو ویل يې توره به مي له لاسه لویدله اومابه راخیستله بیابه لویدله مابه راواخیستله بیا الله پاک فرمايي چي دادتولو لپاره نه وه بلکي داخلاص منو کسانو لپاره وه منافقین په ویره او هیبت کښی وو ﴿ يَغْشَىٰ طَآئِفَةً مِّنكُمْ ﴾ چي لاندي کړه یوه طائفه له تاسي چي مؤمنان وو ﴿ وَطَآئِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنفُسُهُمْ ﴾ اوبله طائفه وه ( له تاسي چي منافقان وو ) په تحقیق په فکر کښي غورځولي وودوئ نفسونو ددوئ ( یعنی اوبله ډله هغه وه چي په ځانونو يې مانی منلی وه نور هیڅ غم اودرد ور سره نه وو پرته ( دځان له ژغورنی دوئ منافقان وودوئ دویري اوخوف سبب هماغه دمشرکانو خبرورکول ووچي بیرته به جنګ ته راګرزي نومسلمانان د تیارسئ په حال کښي کښیناستل اوالله وربا ندی پرکالی راوستله بیده شول خو منافقین له دي ویري چي کفاربه بیرته راو ګرزي له سترګویې خوب تښتیدلی وو ﴿ يَظُنُّونَ بِٱللَّهِ غَيْرَ ٱلْحَقِّ ظَنَّ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ﴾ ( چي ګومانونه به کول دوی په الله باندی (ګمان ) ناحقه لکه ( ګمان ) دجاهلیت ) ابن کثیر وايي داکسان په دي باور ووچي اوس دفیصلې وخت دی نورنو داسلام اومسلمانانو کیسه پای ته ورسیده اوهم داسی دشکمنو مذبذبه خلګو حال وي چي کله یوه سخته صدمه ورسیږي دوئ ته هم داسی ګومانونه پیدا کیږي[2] ﴿ يَقُولُونَ

---

[1] - طبری وايي چي (با) د(علی) په معناده او ترجمه يې داسی راځي چي ستاسي دعصیان او دپیغمبر له امر څخه په مخالفت یو غم په بل غم درکول شو او لکه چي (فی جذوع النخل) هلته (فا) د(علی) په معنا ده ابن کثیر او ابن قیم همدغه قول ته ترجیح ورکړی ده.

[2] - مختصر ابن کثیر ۱/ ۳۳۰

هَل لَّنَا مِنَ ٱلۡأَمۡرِ مِن شَيۡءٖ ﴾ وایې دوئ آیاشته موږ لره له امره څه برخه ؟ یعنی زموږ خو په لاس کښې هیڅ نشته که زموږ اختیاروایې موږ به د جنګ لپاره راوتلی نه وای ﴿ قُلۡ إِنَّ ٱلۡأَمۡرَ كُلَّهُۥ لِلَّهِ ﴾ ووایه ای محمده دوئ ته چې ) بیشکه امرټول خاص الله لره دی ) اړوی یې څرنګه چې یې اراده شي ( هرشي د الله په حکم کیږي ) ﴿ يُخۡفُونَ فِيٓ أَنفُسِهِم مَّا لَا يُبۡدُونَ لَكَ ﴾ پټوي دا (منافقان ) په نفسونو (زړونو) خپلو کښې هغه خبرې چې نه یې دربښکاروي تاته (اي محمده ) ﴿ يَقُولُونَ لَوۡ كَانَ لَنَا مِنَ ٱلۡأَمۡرِ شَيۡءٞ مَّا قُتِلۡنَا هَٰهُنَا ﴾ ( وایې ( دغه منافقان یوتربله ) که چیرې وي موږ لره له امره یوشي نونه به وووژل شوي موږ دلته کښې ) یعنی که زموږ خپل واک وایې نوبه نه وو راوتلی خو موږ په زوره را ایستل شوي یو اوداهغه قول تفسیر دي چې دوئ به پټوي په زړونو خپلو کښې زبیر ﷺ وایې په موږ باندې خوب رانازل شوي ووما د (معتب بن قشیر) خبره واوریده چې ویل یې : ( لوکان لنامن الامرشئ ماقتلناههنا )([1]) ﴿ قُل لَّوۡ كُنتُمۡ فِي بُيُوتِكُمۡ لَبَرَزَ ٱلَّذِينَ كُتِبَ عَلَيۡهِمُ ٱلۡقَتۡلُ إِلَىٰ مَضَاجِعِهِمۡۖ ﴾ نووایه ای محمده دوئ ته ! که وئ تاسي په کورونو خپلو کښې (نو) خامخابه راوتلي ووهغه کسان چې مقررشوی ووپه دوئ باندې وژل طرف دخایودپریوتلوخپلوته ) یعنی دالله له تقدیرڅخه تیښته اوخلاصون نشته . ﴿ وَلِيَبۡتَلِيَ ٱللَّهُ مَا فِي صُدُورِكُمۡ ﴾ اودپاره ددې چې وازمویې الله هغه شی چې په سینوستاسي کښې دی ( له اخلاص اونفاق څخه ﴿ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِي قُلُوبِكُمۡۚ ﴾ ( اولپاره ددې چې ښکاره کړي هغه شي چې په زړونو ستاسي کښې دي ) یعنی پاک اوچان یې کړي ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ ( اوالله ښه عالم دي په هغوخبروچې په سینوکښې پرتې دی ) یعنی الله په پټورازونواودسینوپه خوندی ساتل شویوخبرو خبرداردي چې خیردی اوکه شربیا الله هغه کسان ذکرکوی چې په أحد کښې یې ماتې خوړلی اوفرمایې:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَوَلَّوۡاْ مِنكُمۡ ﴾ بیشکه هغه کسان له تاسي چې وګرزیدل دوئ ( له جنګ څخه ﴿ يَوۡمَ ٱلۡتَقَى ٱلۡجَمۡعَانِ ﴾ ( په هغې ورځ چې مخامخ شول سره دواړه پوځونه ) یعنی دمسلمانانواودمشرکانودلي ﴿ إِنَّمَا ٱسۡتَزَلَّهُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ بِبَعۡضِ مَا كَسَبُواْۖ ﴾ بیشکه هم داخبره ده چې ښویولي وودوئ شیطان په سبب (دشامت ) دځیني هغوګناهونوچې کړي وودوئ ) اوهغه مخالفت دامردرسول الله ﷺ وو ﴿ وَلَقَدۡ عَفَا ٱللَّهُ عَنۡهُمۡۗ ﴾ اوخامخاپه تحقیق سره عفوه کړی دی الله دوئ ته له ګناه څخه یې تیرشوي دي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٞ ﴾ بیشکه الله ښه مغفرت کونکی ښه تحمل کونکی دی) یعنی مغفرت یې پراخ دي اوخوک چې ځینی سرغړونه وکړي حلیم دي سمدستي یې سزا نه کوي بیا الله پاک په منافقینوپسی دقول اوعمل له

---

[1] - تفسیرالقرطبی ۴ / ۲۴۲

اقتداء کولو څخه منع فرمایلی ده وایي﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ (اي هغو کسانوچي ایمان یې راوړی دی ( اي مؤمنانو ) لکه کافران داسی مه کیږئ ) یعنی لکه منافقین غوندي﴿ وَقَالُواْ لِإِخْوَٰنِهِمْ إِذَا ضَرَبُواْ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (او ویل به دوئ ( په حق دورونو خپلو کښي کله چي به سفرته وتل دوئ په ځمکه کښي ) یعنی دوئ به دخپلو منافقینو په هکله چي به سفرته تللی وو داسی ویل ﴿ أَوْ كَانُواْ غُزًّى ﴾ یا به وو دوئ غزاکونکی ( په لاره دالله کښي ) ﴿ لَّوْ كَانُواْ عِندَنَا مَا مَاتُواْ وَمَا قُتِلُواْ ﴾ (که چیري وي دوئ په نزدزموږ کښي نونه به وو مړه شوي دوئ او نه به قتل کړي شوي وو الله تعالی ددوئ په ردکښي فرمایي: ﴿ لِيَجْعَلَ ٱللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً فِى قُلُوبِهِمْ ﴾ (دپاره ددې چي وګرزوی الله (داګومان ) حسرت (ارمان ) په زړونو ددوئ کښي ) یعنی دوئ به داویل ترڅوچي دغه فاسد اعتقاد ددوئ په زړونو کښي افسوس پاتي شي﴿ وَٱللَّهُ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ ﴾ (او الله ژوندی کول او مړه کول کوي) دا ددوئ په فاسد اعتقاد باندی رد دی یعنی الله یې وژنی او ژوندی کوی په کورکښي کیناستل مرګ نشی منع کولای ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ ( او الله پرهغو ټولو شیانو چي تاسي یې کوئ ښه لیدونکي دی پرهغو به جزادرکړي ﴿ وَلَئِن قُتِلْتُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ او خامخا که ووژل شوئ تاسي په لاره دالله کښي﴿ أَوْ مُتُّمْ ﴾ یامړه شوئ په داسی حال کښي چي تـاسـو له دوئ سـره د جنګ قصد درلـود ﴿ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴾ (نو خامخا مغفرت له جانبه دالله او رحمت خیردي له هغو(مالونو ) چي دوئ یې جمع کوي ) یعنی په دنیاکښي ترپاتی کیدلو او دمالونو تر راټولولو دالله مغفرت بهتردی ﴿ وَلَئِن مُّتُّمْ أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى ٱللَّهِ تُحْشَرُونَ ﴾ او که مړه شوئ تاسي یا ووژل شي تاسي نو خامخا به الله ته راجمع کړی شي تاسي) یعني که په خپله کمپله مړه شوي یا دجنګ په ډګرکښي ووژل شوي نوستاسو مرجع الله ته دی تاسو ته به پخپلو اعمالو جزادرکړي نو هغه څه غوره کړئ چي الله ته مونږ دي کړی او دهغه د رضا موجب وی لکه فی سبیل الله جهاد او دهغه په طاعت باندی عمل کول شاعروایي:

فان تکن الأبدان للموت انشئت ❁ فقتل أمرئ بالسیف فی الله افضل . که چیري بدنونه د مرګ لپاره پیدا اوي ؟ نو دسړی وژل کیدل په توره دالله په لارکښي افضل دی.

**بلاغت:**

١ - ( یردوکم علی اعقابکم ) پدی کښي استعاره ده څکه معنا یې ده چي ګرزوی موله ایمان څخه کفرته او پخوایي هم مثال تېرشوی دی.

٢ - په مابین دلفظ د(آمنوا) او(کفروا) کښي همدارازد(یخفون ) او( یبدون) او( فاتکم) او(اصابکم) ترمنځ دطباق صنعت دی چي دبدیعي محسناتو څخه ګڼل کیږي.

۳-( وبئس مثوی الظالمین )ابو السعودوايي دلته يې هسی ونه ويل چي (وَبِئس مثواهم) بلکه ظاهر يې دضمیر پر ځای غوره کړچي ددوئ په شان کنبي تغليظ اوبل ددې خبری سپيناوي وشي چي دوئ ظالمان دی ځکه دوئ وضع دشي په غيرموضع کنبي کوی اومخصوص بالذم محذوف دی چي اصلا: (بئس مثوی الظلمين النار) دی.[1]

۴-( ذوفضل علی المؤمنين ) دلته تنکيردتفخيم لپاره دي اوپدی قول کنبي چي: ( علی المؤمنين ) يې وويل اوعليهم يې نه راوور دلته اظهاردضمارپرځای دتشريف لپاره راغلی اودحکم علت بيانوی.

۵-کله چي فرمايي( يظنون بالله غيرالحق ظن ) ددي کلماتوترمينځ داشتقاق جناس موجوددي.

۶-( واذا ضربوا فی الارض ) پدي کنبي استعاره ده ځکه په بيدياکنبي سفرکونکي يې دسينداوبحر له لامبو وهونکوسره تشبيه کړي اودسيندلامبوزن ته ضارب ځکه وايي چي هغه لاس اوپښي وهي چي ځان ته لاره وباسي همداخبره تلخيص البيان راوړی ده.[2]

گټي اوفائدي:

لومړی فائده : له هغوکسانوچي په أحدکنبي زمری غوندی ثابت قدم وويويي(انس بن نضر ) دحضرت انس کاکاووکله چي مسلمانان مات شول اومنافقينوداآوازه خپره کړه چي محمد ووژل شونوده وويل : ای الله دي کسانو( مسلمانانو) چي څه وکړل زه ددوئ څخه عذر درته وړاندی کوم ،اوبيزاري څرگندوم له دي کسانو (مشرکانو) څخه چي څه يې وکړل اوبياکنبلي توره راوړاندی شوسعدبن معاذورسره مخامخ شوده ورته وويل چيري ځي ؟ زمادي په الله قسم وي چي دجنت بوی أحدله هغې خواراځي نووړاندی ولاړاوشهيدشو کفارو يې مثلت وکړهيچانه پيژانده يوازي خوريې دگوتوپه سرونوو پيژاند اوپه تن کنبي يې څه دپاسه اتيازخمونه اوپرهارونه جوړشوي وو.[3]

دوهمه فائده : ابن کثيرله ابن مسعود څخه روايت کوي چي دأحدپه غزا کنبي ميرمنودنارينه وله شادمشرکينودزخميانو اجهاز(وژل) کول که لوړه قسم مي کړي واي اميدمي درلودچي پکنبي رښتونی به وم داچي هغه ورځ هيچاهم ددنياغوښتنه نه درلوده ترڅوچي الله داآيت نازل کړ( منکم من يريدالدنياومنکم من يريدالآخرة ) کله چي رسول الله اصحابانو(دغره دوت غيشی ويشتونکو) مخالفت وکړاوله امر څخه يې سرغړونه وکړه نورسول الله له نهوتنوسره پاتی شوچي رسول الله يې لسم ووکله چي (مشرکانو ) رسول الله محاصره کړنورسول الله داسی وويل په هغه چادي رحمت وي چي دغه ( مشرکان ) له موږ څخه وشړي ترهغويې داويل څواوه تنه مړه شول بيا يې وکتل چي دحضرت حمزه مبارکه گيډه يې څيرلی ( اوهندې ) يې اينه (ځيگر)په غاښونو ژبېنلی-وه چي دخوړلوتوان يې نه درلوداورسول الله ورباندی سخت خواشينی شواويالمنځونه يې ورباندي وگذارل.

---

[1] - ابوالسعود۱/۲۹۲

[2] - تلخيص البيان ص۲۲

[3] - انظرقصته فی البخاری

## الله تعالى فرمايي:

﴿ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ
وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ ﴿١٥٩﴾ إِن يَنصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ وَإِن
يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا الَّذِي يَنصُرُكُم مِّن بَعْدِهِ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٦٠﴾ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَغُلَّ وَمَن يَغْلُلْ
يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١٦١﴾ أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللَّهِ كَمَن بَاءَ
بِسَخَطٍ مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿١٦٢﴾ هُمْ دَرَجَاتٌ عِندَ اللَّهِ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿١٦٣﴾ لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ
عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ
وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿١٦٤﴾ أَوَلَمَّا أَصَابَتْكُم مُّصِيبَةٌ قَدْ أَصَبْتُم مِّثْلَيْهَا قُلْتُمْ أَنَّىٰ
هَٰذَا قُلْ هُوَ مِنْ عِندِ أَنفُسِكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٦٥﴾ وَمَا أَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ فَبِإِذْنِ اللَّهِ وَلِيَعْلَمَ
الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٦٦﴾ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُوا وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ادْفَعُوا قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّاتَّبَعْنَاكُمْ هُمْ
لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِم مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ ﴿١٦٧﴾ الَّذِينَ
قَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوا لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا قُلْ فَادْرَءُوا عَنْ أَنفُسِكُمُ الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٦٨﴾ ﴾

آل عمران: ۱۵۹ - ۱۶۸

## مناسبت او تړاو:

همداسی لا آيتونه د(أحد ) دغزا خبرې کوی الله پاک دمسلمانانو ماتی بيان کړه اوهغه دغم خپګان اوپريشانی چي يوه په بل پسي ورته ورسيده نوددوئ لپاره يې ددرملنې ځای اودرمل ورو ښودل اوپدې آيتونوکښي چي اوس يې تفسيرلولودحکيمانه قيادت ستاينه کوي سره له دې چي ځينواصحابانودرسول الله ﷺ له اوامروڅخه مخالفت وکړخودرسول الله ﷺ دښوصفاتو ،مهربانی اوزړه سواند توب دانتيجه وه چي دوئ ته يې په سخته وينا خطاب ونکړبلکه په نرمه لهجه اوپسته ژبه يې ورته خبره وکړه څکه نوزړونه دده ددعوت اوبلنی په خواوشاراټول شول دده قيادت يې ومانونودا آيتونه دنبوي اخلاقواودالله ﷻ دهغه ستراحسان بيان کوي چي دداسی مهربانه دحکمت خاوند قائد بعثت يې په نړۍ ولوراوه اوهم داسی دکيسې نوری مهمې پيښې بيانوي.

## لغتونه:

(فظا) بدخويه واحدی وايې چي هغه غليظ ته وايې.( غليظ القلب) سخت زړه چي څه شي وربانډی اغيزنکوي.(انفضوا) تيت اوپرک شوي وو( فض )اصل ماتيدلوته وايې لکه چي وايې (لايفضض الله فاک ) يعنی خوله دی الله مه ماتوه ( يغل ) له غلول څخه اخيستل شوي اوخيانت ته وايې اصل يې په پټه يوشي اخيستلوته وايی لکه چي وايې: ( فلانی په غنيمت کښي غلول وکړ) يعنی څه يې تری پټ کړل

(باء) وگرزیدو (سخط) سخت قهر اوغضب ته وایې (مأویٰ) دهستوګنې ځای (یزکیهم) دوی به پاک کړي (من) منت اواحسان ته وایې (فادرأوا) دفع کړئ اوله دې څخه دی (ویدرء عنها العذاب).

دنزول سبب:

یوسورخادردبدردغزاپه ورځ له غنیمت څخه ورک شوځینواصحابانووویل: ښایې نبی ﷺ به اخیستي وي نوالله ﷻ داآیت نازل کړ: (ماکان للنبی ان یغل...) [1] داآیت ترپایه.

تفسیر:

﴿ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ ٱللَّهِ لِنتَ لَهُمْ ﴾ (نوپه سبب درحمت الله (چې پرتاشوي دي (ای محمده) نرمي کوي ته دوئ ته) یعنی په سبب دهغه رحمت دالله ﷻ چې ستاپه زړه کښې یې خوندی کړی دی ته له اصحابانوسره نرمي کوي سره له دې چې دوئ ستاله حکم څخه سرغړونه کوي اوستاله امرڅخه یې مخالفت کړی دی ﴿ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ ٱلْقَلْبِ لَٱنفَضُّواْ مِنْ حَوْلِكَ ﴾ اوکه وای ته (ای محمده) بدخوي سخت زړه نواروموبه تارپه تارشوي وو (اصحاب) له چاپیره ستاڅخه) یعنی که چیری ته په طبیعت کښې پوچ اوپه زړه کښې سخت وای له دوئ سره دی په غلظت اوجفامعامله کولای ستاله خواوشابه تښتیدلي وواوځرنګه چې فظاظت په کلام کښې اوغلظت اوقساوت دزړه له خواصوڅخه وودواړه یې نفی کړل ﴿ فَٱعْفُ عَنْهُمْ وَٱسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِى ٱلْأَمْرِ ﴾ (نوعفو (اوبخشش) وکړه له دوئ نه (ددوئ له تجاوز نه پرتا) اومغفرت وغواړه (له الله نه) دوئ ته (د تقصیراتوددوئ) اومشوره وکړه له دوئ سره) په ټولوامورو کښې چې خلک په تاپسې اقتداء وکړي، حسن رحمه الله وایې چې: هرقوم چې مشوره کړې هغوئ هرومروهغه ددوئ په ګټه لورې ته (الله) رهبري کړی دی.[2] اورسول الله ﷺ به له اصحابانوسره ډیرڅله مشوره کوله ﴿ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ﴾ نوکله چې دې ټینګه اراده وکړه (اي محمده) دیوکاردکولو) نوتوکل (اعتماد) وکړه په الله باندی اووسپاره خپل کارهغه ته ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُتَوَكِّلِينَ ﴾ بیشکه الله خوښوي توکل کونکي چې خپل امورهغه ته وسپاري ﴿ إِن يَنصُرْكُمُ ٱللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ﴾ که مرسته وکړي له تاسي سره (الله) نونشته (هیڅ) غالب پرتاسي باندی ﴿ وَإِن يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا ٱلَّذِى يَنصُرُكُم مِّنۢ بَعْدِهِۦ ﴾ (اوکه مرسته ونه فرمایې له تاسي سره نوڅوک دي هغه چې مرسته به وکړي له تاسي سره وروسته له هغه (خذلان) دالله ؟ یعنی که الله ستاسي دخذلان اومعاونت نه کولواراده وکړی بیانوستاسو مرستندوئ نشته یعنی دبدرمرسته اودأحد ماتې دالله په خوښه اواراده وه عزت اوبری، ماتې اوسپکاوي دالله ﷻ په لاس کښې دی ﴿ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴾ (اوخاص پرالله دی پس توکل وکړي مؤمنان) اوهغه ته دی پناه یوسي ﴿ وَمَا كَانَ لِنَبِىٍّ أَن يَغُلَّ ﴾ اونه ښایې هیڅ نبی ته چې څه شي پټ

[1] - اسباب النزول للواحدي ص۷۲

[2] - الطبری ۷ / ۳۳۴

کړي ) يعنى داخبره شرعًا او عقلاً سمه نه ده چي يو نبي له انبياوو څخه په غنيمت کښي غلول وکړي دلته نفى دشان لپاره ده نه نفى دفعل معنايې داچي ددي هيڅ تصور لا نشي کيداى څه خو چي فعل يې واقع شي ﴿ وَمَن يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ ﴾ ( او هر څوک چي څه شي پټوي نو را به شي ( داپټونکي ) په هغه سره چي ده پټ کړي وي په ورځي دقيامت کښي ) يعنى هغه به يې په غاړه را اخيستى وي تر څو د خلکو په وړاندى رسواشي ﴿ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ ﴾ بيا به پوره ورکړى شي هر نفس ته (جزاء) دهغه عمل چي کړى وي ده ﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ ( او پر دوئ به ظلم ونکړي شي ) يعنى عادلانه جزا به پرته له زياتوالى او کمبود څخه ورکول شى نه به د ګنهګار عذاب څه زيات شى او نه به د عبادت کونکى ثواب څه کم شي ﴿ أَفَمَنِ ٱتَّبَعَ رِضْوَٰنَ ٱللَّهِ كَمَنۢ بَآءَ بِسَخَطٍ مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ آيا نو هغه څوک چي متابعت کوي دالله په شان دهغه چادى چي بيرته راشى په قهر سره له طرفه دالله تعالى ؟ يعنى آيا نو دى لکه هغه څوک داسى دي چي دالله دقهر او غضې مورد وګرځي معنا داچي برابر نه دى هغه څوک چي دالله رضاغواړى او طاعت يې کوي او هغه چي عصيان او سرغړونه کوي او دالله قهر او غضې مستحق وي ﴿ وَمَأْوَىٰهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴾ او ځاى دده دوزخ دى ، او بد ځاى دور تلودى ( دا دوزخ ) ﴿ هُمْ دَرَجَـٰتٌ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ دوئ خاوندان دمتفاوتو درجودى په نزد الله ﷻ طبرى وايې چي ددوئ منزلونه او درجې مختلفې دى څوک چي دالله ﷻ رضاغواړى کرامت او ډير ثواب يې شته او څوک چي دالله دقهر مستحق وي سپکاوي خوارى او دردناک عذاب به ورکول کيږي(١) ﴿ وَٱللَّهُ بَصِيرٌۢ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴾ او الله بنه ليدونکي دي په هغو شيانو (هم ) چي دوئ (يې) کوي نو به جزا ورکړي. بيا الله تعالى هغه ستر نعمت چي دخاتم المرسلين بعثت دى داسى بيانوي ﴿ لَقَدْ مَنَّ ٱللَّهُ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ ﴾ (خامخا په تحقيق احسان کړى دى الله پر مؤمنانو باندى کله چي يې مبعوث کړ په دوئ (مؤمنانو) کښي رسول له جنس ددوئ نه ) هو په خداى قسم چي په تحقيق سره الله په مؤمنانو نعمت کړي چي دوئ ته يې عربى استازي (پيغمبر) ددوئ له جنس څخه چي دوئ ته ښه معلوم ؤ راواستاوو ، الله پاک دمؤمنانو يادونه په ځانګړى توګه وکړه چي هغوئ دده په بعثت نفع اخيستونکي وو که نه هسى خو رسول الله رحمت للعالمين دى ﴿ يَتْلُوا۟ عَلَيْهِمْ ءَايَـٰتِهِۦ ﴾ ( لولى پر دوئ باندى آيتونه دالله ) چي نازل شوي وحى ده ﴿ وَيُزَكِّيهِمْ ﴾ او له ګناهونو يې پاکوي ﴿ وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلْكِتَـٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ ﴾ او ښيې دوئ ته کتاب ( قرآن ) او حکمت (نبوي پاکيزه سنت ) ﴿ وَإِن كَانُوا۟ مِن قَبْلُ لَفِى ضَلَـٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ او شان دادى وو دوئ له دې نه پخوا هرو مرو په ګمراهې ښکاره کښي بيا له تاريکې څخه نورانيت ته ولېږديدل او تر ټولو امتونو افضل او غوره شول ﴿ أَوَلَمَّآ أَصَـٰبَتْكُم مُّصِيبَةٌ ﴾ ( آيا کله چي در ورسيد تاسي ته ( په

١ - الطبرى ٧ / ٣٢٧

أحدكښي له كفاروڅخه ) يومصيبت ) چي اوياتنه مووؤل شول ﴿ قَدْ أَصَبْتُم مِّثْلَيْهَا ﴾ ( په تحقيق سره رسولى ووتاسي ( كفاروته په بدركښي ) دوه چنده له دي غمه ) چي اوياتنه مووژل اوياتنه موپه اسارت ونيول ﴿ قُلْتُمْ أَنَّىٰ هَٰذَا ﴾ نوويل تاسي له كومه دا(غم راغى موږته) ؟ يعنى ولې موماتي وخوړه اودمرستې وعده راكول شوى وه ؟ دلته دتقريع (تكولو)موجب ددوئ داخبره ده چي ( أنىٰ هذا ) څكه دوئ په خپله دماتې سبب وو ﴿ قُلْ هُوَ مِنْ عِندِ أَنفُسِكُمْ ﴾ ( ووايه ( اى محمده دوئ ته ! ) چي دامصيبت او تكليف ) له جانبه دنفسونوستاسي دي ) يعنى دمصيبت سبب ستاسود پيغمبرله امرڅخه معصيت اودولجې اوغنيمت حرص وو ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ ( بيشكه الله په هرشي باندى (چي اراده وفرمايې ) ښه قادردى ) يعنى هغه څه كوى چي خوښه يې شي دهغه دحكم په وړاندې هيڅ شي خنډ كيدلاى نشى اونه يې قضاپه شاتمبولى شي ﴿ وَمَا أَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ فَبِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ اوهغه (غم ) چي دررسيدلى دى تاسي ته په هغې ورځې كښي چي سره يوځاى شودوه پوځونه پس هغه په اذن (حكم) دالله سره وو ) يعنى هغه ورځ چي دوه پوځونه دمسلمانانواومشركانوسره يوځاى اوتاسي ته غم ورسيدودادالله په قضااوقدراوازلى ارادې باندى دحكمت نه ډكه فيصله وه ترڅومؤمنان له منافقانو څخه جلاكړي ﴿ وَلِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ اولپاره ددي چي معلوم (ښكاره ) كړي (الله) مؤمنان هغه چي صبر، استقامت اوپه سنگركښي تينگارېې درلود ﴿ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُوا ۚ وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ادْفَعُوا ﴾ اوبل لپاره ددي ووچي معلوم ( ښكاره ) كړى (الله) هغه كسان چي نفاق يې كړى وو او وويل شودغو (منافقينو)ته چي راځئ غزاوكړئ په لاره دالله كښي اويامدافعه وكړئ ) يعنى چي معلوم كړي الله منافقين لكه عبدالله ابن ابى ابن سلول اوودده ملگرى هغوئ چي دأحدپه په ورځ له رسول الله څخه بيرته راستانه شول اوددرى سوه تنه په شاوخواكښي ووموؤمنانورته وويل چي راشئ له مشركانوسره جنگ وكړئ اويا پخپله ډله باندى زموږ شميرزيات كړئ ﴿ قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّاتَّبَعْنَاكُمْ ۗ ﴾ نوويل دى(منافقانو ) كه موږ پوهيدلاي چي درسره جنگ كيږي نوهرومروبه موږ ستاسي متابعت كړى ووخوموږ داگومان نه كووچي جنگ دي پيښ شي ﴿ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ ۚ ﴾ دوئ كفرته په دغې ورځي كښي ( چي دغه خبره يې كوله ) ډيرنژدى وو له دوئ نه په نسبت سره دايمان ﴿ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِم مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ ۗ ﴾ وايي دوئ په خولوخپلوسره هغه چې نشته (پرې تصديق )په زړونوددوئ كښي ﴿ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ ﴾ اوالله ښه پوه دى په هغه څه چي پټوى يې دوئ له نفاق اوشرك څخه ﴿ الَّذِينَ قَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوا ﴾ ( هغه منافقان ) چي ويل يې په (حق) دورونوخپلو كښي حال داچي دوئ پخپله ناست وو ) يعنى بل داچي معلوم كړي الله هغه منافقين چي دوي پخپله ناست دواوددوئ په شان ورونوته يې ويل: ﴿ لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا ۗ ﴾ كه دوئ ( دأحد غازيانو ) زموږخبرې منلي

وای نونه به وووژل شوي يعنی ويل به يې که مؤمنانو زموږ نصيحت منلی وای او زموږ په شان راستانه شوي وای هلته به دوئ وژل شوي نه وو ﴿ قُلْ فَٱدْرَءُوا۟ عَنْ أَنفُسِكُمُ ٱلْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ (وواېه (اي محمده ! دوئ ته ) نوليري کړئ تاسي له خپلو ځانونو څخه مرګ که يي تاسي رښتيني ) يعنی دي منافقينوته ووايه که چيري نه وتل ،له مرګ څخه څوک ژغوری نو تاسو له خپلو ځانو نو څخه مرګ دفع کړئ که رښتياوي يونکي ياست پدي دعوی کښي او غرض له دي څخه توبيخ او ددوئ چپ کول دي چي مرګ خامخا راتلونکي دي که څه هم تاسو په لوړ و مضبوطو برجونو کښي ناست ياست.

بلاغت:

۱ -( ان ينصرکم الله )او( ان يخذلکم الله ) ددي دواړو ترمنځ تقابل صنعت دی چي دبديعی محسناتو څخه ګڼل کيږي.

۲ – پدی کلام کښي چي فرمايي (وعلى الله فليتوکل) جاراو مجرور ړومبی شوي چي حصرافاده کړي.

۳-( وماکان لنبی ان يغل ) دلته نفی دشان دی، نه دفعل څکه هغه ابلغ ګڼل کيږي يعنی نه بنايي اونه سمه ده چي نبی ﷺ څه پټ کړي.

۴ – پدی قول کښي چي ( افمن اتبع رضوان الله کمن بآء بسخط من الله ) ابوحيان وايي چي دايوه بديعه خوندوره استعاره ده چي دالله شريعت يې لکه هغه دليل غوندی ګرځولی چي څوک وربا ندی لاره مومی هغه چي متابعت يې کوی اوګنهګاريې له هغه چاسره مشابه کړي چي ديوشی دپيروي کولو امرورته وشي خو هغه يې پيروي نه کوي او له هغه پرته راو ګرزي[۱]

۵- ( بسخط من الله ) تنکير دتهويل لپاره دی يعنی دومره سترقهراو غصه چي وصف يې نشي کيدای.

۶– پدی جمله کښي چي الله پاک فرمايي: ( هم درجات ) دلته دمضاف حذف شوي يعنی ( ذودرجات متفاوتة ) څکه دمؤمن درجه لوړه او دکافر ښکته ده.[۲]

۷– پدی جملو کښي چي: ( للکفر..وللايمان ) او( يبدون...ويخفون ) د طباق صنعت دی.

۸ –( اصابتکم مصيبة ) دلته اشتقاقی جناس دی او هغه له بديعی محسناتو څخه ګڼل کيږي.

تنبيه:

پدی آيت کښي چي فرمايي: ( فبما رحمة من الله لنت لهم ) ددي دلالت دي چي زموږ نبی په مکارم الاخلاق سره ځانګړی شوي دی اوعجيبه خوداده چي رسول الله ﷺ ترټولو خلګو زيات دسترتوب نښي او خويونه درلودل خوله دی سره سره بياهم تواضع ته زيات نژدي وو هغه ترټولو خلګو په نسب کی اشرف او په حسب کی زيات وو عمل يې پاکيزه او په سخاوت اوکرم کښي نوميالی په بيان کښي ترټولو فصيح وواو اګرد دسترتوب اوعظمت دواعی اوبلونکي دی خوبيايې تواضع دومره وه چي جامه به يې پخپله

---

[۱] - البحر المحيط

[۲] - تلخيص البيان ص ۲۲

كندله پنې ، ځيلې به يې رغولې په خره به يې سورلي كوله په مځكه به كښيناستل او ودمريي دعوت او بلنه به يې منله (صلوات الله وسلامه عليه) هغه ، روښانه (بل )څراغ او دښوخويونو فضائلو اومكارمو (نيكو خويونو )څپاند سمندر وو (اللهم صل وسلم وبارک عليه ) .

**فائده:**

په الله پاک باندی توكل كول له دوو سببونو خوراسترمقام دی يوداچي الله ورسره مينه كوي چي فرمايي ( ان الله يحب المتوكلين ) اوبل داچي دالله په ساتنه كښي يې ضمانت شوی چي فرمايي ( ومن يتوكل على الله فهوحسبه ) .

## الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ قُتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمْوَٰتًۢا ۚ بَلْ أَحْيَآءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ﴿١٦٩﴾ فَرِحِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ
وَيَسْتَبْشِرُونَ بِٱلَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا۟ بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١٧٠﴾ ۞ يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ
ٱللَّهِ وَفَضْلٍ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٧١﴾ ٱلَّذِينَ ٱسْتَجَابُوا۟ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ مِنۢ بَعْدِ مَآ أَصَابَهُمُ ٱلْقَرْحُ ۚ لِلَّذِينَ
أَحْسَنُوا۟ مِنْهُمْ وَٱتَّقَوْا۟ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٢﴾ ٱلَّذِينَ قَالَ لَهُمُ ٱلنَّاسُ إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدْ جَمَعُوا۟ لَكُمْ فَٱخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَٰنًا
وَقَالُوا۟ حَسْبُنَا ٱللَّهُ وَنِعْمَ ٱلْوَكِيلُ ﴿١٧٣﴾ فَٱنقَلَبُوا۟ بِنِعْمَةٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوٓءٌ وَٱتَّبَعُوا۟ رِضْوَٰنَ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ
ذُو فَضْلٍ عَظِيمٍ ﴿١٧٤﴾ إِنَّمَا ذَٰلِكُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ يُخَوِّفُ أَوْلِيَآءَهُۥ فَلَا تَخَافُوهُمْ وَخَافُونِ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٧٥﴾ وَلَا يَحْزُنكَ ٱلَّذِينَ
يُسَٰرِعُونَ فِى ٱلْكُفْرِ ۚ إِنَّهُمْ لَن يَضُرُّوا۟ ٱللَّهَ شَيْـًٔا ۗ يُرِيدُ ٱللَّهُ أَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِى ٱلْءَاخِرَةِ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٦﴾ إِنَّ
ٱلَّذِينَ ٱشْتَرَوُا۟ ٱلْكُفْرَ بِٱلْإِيمَٰنِ لَن يَضُرُّوا۟ ٱللَّهَ شَيْـًٔا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٧﴾ وَلَا يَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَنَّمَا نُمْلِى لَهُمْ
خَيْرٌ لِّأَنفُسِهِمْ ۚ إِنَّمَا نُمْلِى لَهُمْ لِيَزْدَادُوٓا۟ إِثْمًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿١٧٨﴾ مَّا كَانَ ٱللَّهُ لِيَذَرَ ٱلْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ
حَتَّىٰ يَمِيزَ ٱلْخَبِيثَ مِنَ ٱلطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى ٱلْغَيْبِ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَجْتَبِى مِن رُّسُلِهِۦ مَن يَشَآءُ ۖ فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦ ۚ
وَإِن تُؤْمِنُوا۟ وَتَتَّقُوا۟ فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٩﴾ وَلَا يَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ هُوَ خَيْرًا لَّهُم ۖ بَلْ
هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ۖ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا۟ بِهِۦ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۗ وَلِلَّهِ مِيرَٰثُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١٨٠﴾ ﴾

آل عمران ۱۶۹ - ۱۸۰

## مناسبت اوتړاو:

لاتراوسه پوری داحد دغزاپيښي پرله پسی په آيتونو كښي راخي اودمنافقينواسرارا و شرمونكي دريزونه لوڅوي اوددي ستري غزا له واقعاتوڅخه دپنداوعبرت درسونه بيانوي .

**لغتونه:**

( **يستبشرون**) خوشحالى كوي اصل يې له (**بشرة**)څخه اخيستل شوي ځكه كله چې انسان خوښحاله شي دخوښي اثريې په مخ كښي ښرګندوي ابن عطيه وايي استفعل پدى ځاى كښي دبشارت دطلب په معنانه دي بلكي دمجردفعل په معنادى لكه چې په ( **واستغنى الله** ) كښي ( **القرح**) په زبرسره زخم اوپه پيښ سره يې دردته وايي پخواهم تېرشو( **حسبنا**) له حساب څخه اخيستل شوي اودكفايت په معنى دى( **حظا**) برخه اونصيب ته وايي په خيراوشردواړوكښي استعماليږي خوكه چيري مطلق ذكرشي دخيرلپاره دي ( **نملى** ) موږبه يې وځندوو له املاء څخه راغلى اوتأخيرياځنډ ته وايي قرطبى ليكى چې مرادله املاء څخه دلته اوږدژوند اوپراخه روزى ده.([1])( **يميز**) جلاوالى ته وايي اوله ( **ماز ، يميز**) څخه راغلى اوله همدي بناڅخه داهم دي چې ( **وامتازوا اليوم ايها المجرمون**) ( **يجتبى** ) غوره كوي (**سيطوقون**) له طوق څخه اخيستل شوى اوغاړه ګۍ ته وايې يعنى هسى درسره ملګرى دى لكه چې طوق له غاړى سره.

**دنزول سبب:**

الف: له ابن عباس ﷺ څخه روايت شوي چې رسول الله وفرمايل كله چې ستاسووروڼه په أحد كښي شهيدان شول نوالله ددوئ ارواګانى دشنومرغانوپه ججوروكښي واچول چې دجنت په ويالوګرزي له ميوو څخه يې خورى اوبياهغه دسروزروقنديلونوته ورځي چې دعرش په سيورى كښي ځوړندى كله چې دوئ خپل پاک ستره خوراک ، څښاک اوهستوګن ځاى وموندنوويل يې څوک به زموږ ورونوته داحال ورسوي چې موږ په جنت كښي ژوندى اوخوراک راكول كيږى ترڅودوئ جهادپرى نږدي اودجګړې په وخت كښي بى زړه نشي پس الله ﷻ وويل ستاسودغه حال به زه دوئ ته ورسوم اودا آيت نازل شو( **ولاتحسبن الذين قتلوافى سبيل الله امواتا**)([2])دآيت ترپايه.

ب: له جابرﷺ بن عبدالله ﷺ څخه روايت شوي چې رسول الله راسره يوځاى شوراته ويل يې اي جابره ولى داسى غمجن اوپريشانه يې ماورته وويل اي دالله استازي پلارمي شهيدشوعيال يې پاتى شواوپورورباندى وو. رسول الله وفرمايل: آياهغه زيري درنكړم چې پلاردي له الله سره (څنګه) يوځاي شوماورته وويل هوراكړه يا رسول الله ويل يې : بيشكه الله ستاپلار ژوندى كړ او مخامخ يې ورسره خبرى وكړي (۱) اوله هيچاسره الله مخامخ خبرى ندى كړى مګردپردي ترشا ،( الله ) ورته وويل : اى عبدالله غواړه چې دريې كړم هغه ويل اى ربه دا غواړم چې دنياته ستون شم اوستاپه لاركښي دوهم ځل وجنګيږم الله تبارک وتعالى ورته وفرمايل چې دا فيصله شوي چې دوئ بيرته دنياته نه ستنيږي هغه وويل: اى ربه زماحال وروسته كسانوته ورسوه بياالله نازل كړل ( **ولاتحسبن الذين قتلوا فى سبيل الله امواتا**).([3])

---

[1] - القرطبى ۴ /۲۲۸

[2] -اسباب النزول للواحدي ص ۷۳ القرطبى ۴ /۲۲۸

[3] - اخرجه ابن ماجه والترمذى، القرطبى ۴ /۲۲۸

تفسير:

﴿ وَلَا تَحۡسَبَنَّ ٱلَّذِينَ قُتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمۡوَٰتَۢا ﴾ اوله سره گومان مکوه پرهغوکسانو چي وژل شوي دوئ په لاره دالله کښي دمړو ،داسي چي نه حس لري اونه په نعمتونو ګوري ﴿ بَلۡ أَحۡيَآءٌ عِندَ رَبِّهِمۡ يُرۡزَقُونَ ﴾ بلکه ژوندي دي په نزد درب خپل رزق ورته ورکولي شي ) يعنی دوئ ته په تلپاتی جنت کښي دنعمتونوروزي ګهيخ اوبيګاه ورکولي شي واحدی وايې چي ترټولوصحيح خبره دشهداوو دژوندپه باب هغه ده چي رسول الله ﷺ څخه روايت شوي چي : ( ان ارواحهم فی اجواف طيورخضر و انهم يرزقون ويأکلون ويتنعمون ) ﴿ فَرِحِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضۡلِهِۦ ﴾ پدي حال کښي چي خوشحاله دي دوئ په هغه شي باندی چي ورکړي دی دوئ ته الله له فضله خپله ) يعنی دوئ به دجنت په نعمتونوکښي وی اوپدې خوشحال دي چي په نعمت اوغبطه کښي دی ﴿ وَيَسۡتَبۡشِرُونَ بِٱلَّذِينَ لَمۡ يَلۡحَقُواْ بِهِم مِّنۡ خَلۡفِهِمۡ ﴾ (اوخوشاليږي دوئ ( په راتلو ) دهغوکسانوباندی چي لانه دي رسيدلی دوئ ترهغو پوري وروسته ددوئ نه ) يعنی دوئ خوشاليږي پخپلو مجاهدينوورونوباندی هغوئ چي لاتراوسه په جهادکښي مړه نه دي که چيري شهيدان شي دوئ به هم پداسي نعمت کښي وي﴿ أَلَّا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ ﴾ پدې شان سره چي نه به وي هيڅ قسم ويره په دوئ باندی اونه به دوئ هيچيری غمجن کيږي ) يعنی نه به په آخرت کښي ورباندی ويره وي اونه به ددنيا په پاتی کيدلو غمجن وي ځکه دوئ دجنت په نعمتونوکښي دي.

﴿ يَسۡتَبۡشِرُونَ بِنِعۡمَةٖ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَضۡلٖ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ ( خوشاليږي دوئ په نعمت سره له (جانبه ) دالله او(دده ) په فضل سره او( پدي چي ) بيشکه الله نه ضائع کوي اجرد مؤمنانو ) دلته يې استبشارمکرررااوړ ترڅو هغه متعلق يې چي فضل اونعمت دي بيان شی معناداچي دوئ خوشاليږي دالله په هغه ورکړی سترکرامت اوهغه نعمتونه اوثوابونه چي يې ورباندی لورولی نعمت هغه ددوئ په طاعت استحقاق او فضل يې بيا هغه داجرزياتوالی دی﴿ ٱلَّذِينَ ٱسۡتَجَابُواْ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ مِنۢ بَعۡدِ مَآ أَصَابَهُمُ ٱلۡقَرۡحُ ﴾ هغه کسان چي حکم يې منلی دي دالله او( حکم يې منلی دی ) درسول الله ) پس له هغه چي رسيدلی وودوئ ته زخم ( تکليف اومشقت ) ابن کثيروايې چي داخبره ( دحمراء الاسد ) دورخي ده.[1] اوهغه داچي مشرکانوچي څومره تکليف مؤمنانوته ورساووهغه خووبياکله چي ښارونوته راغلل نوپښيمانی يې کوله چي ولی يې دمديني دخلګويومخ ايزه فيصله ونکړه اوکله چي داخبررسول الله ته ورسيده نوامريې وفرمايه چي په مشرکانوپسي له شاووزی اوهغوئ ته داخرګنده کړی چي توان اوطاقت يې شته اوهغوئ وترهوی رسول الله له هغه چاپرته چي په أحد کښي يې ګډون کړی ووبل چاته دوتلواجازه نه ورکوله نومسلمانانوسره له دي چي پرهارژلی وينې څينې بهيدې اوستومان وودالله اورسول الله ﷺ دامراطاعت يې وکړ.[2] ﴿ لِلَّذِينَ أَحۡسَنُواْ مِنۡهُمۡ وَٱتَّقَوۡاْ أَجۡرٌ عَظِيمٌ ﴾ شته لپاره

---

[1] - حمراء الاسد دمديني منوري څخه اته ميله ليري يو ځای دی

[2] - مختصرابن کثير۱ / ۳۳۸

دهغو كسانو چي نيكي يې كړى له دوى نه (د رسول الله د حكم په منلو سره) چي پرهيزګاري يې كړى ده (له مخالفته) اجر لوى يعنى چي سره له زخمونو او تكليفونو يې بيا هم غزا ته مخه كړي ستر اجر يې په برخه دى ﴿ ٱلَّذِينَ قَالَ لَهُمُ ٱلنَّاسُ إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدْ جَمَعُوا۟ لَكُمْ فَٱخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَٰنًا ﴾ (دوى هغه كسان دي چي وويل دوى ته (ځينو) خلكو چي بيشكه خلګ (د مكي) په تحقيق سره راټول شوي دي ستاسي (د جنګ لپاره) نو وويريږئ له دوى ځيني پس (دغو ويرولو) لا زيات كړ ايمان د دوى) يعنى هغه كسان چي په دوئ كښي د مشركينو ملګرى وو داسي آوازه خپره كړه چي قريش وډيرى لښكرى ستاسي د جنګ لپاره تولى كړى دى په ځانونو بيريږئ خو دوئ لا زيات زړور شول ﴿ وَقَالُوا۟ حَسْبُنَا ٱللَّهُ وَنِعْمَ ٱلْوَكِيلُ ﴾ (او ويل دوئ بس دى موږ ته الله او ښو مره ښه كارجوړونكي دي (الله) يعنى دوئ وويل الله زموږ كافى، ساتونكي او كارجوړونكي دى هغه د پناه وړ دى او ورپورې او دهغه چاچي وربانديي توكل وكړي ښه مرستندوى دي ﴿ فَٱنقَلَبُوا۟ بِنِعْمَةٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَضْلٍ ﴾ نو بيرته راوګرځيدل (د امؤمنان) په نعمت (د سلامتي) (له جانبه) د الله او په فضل د اجر او ثواب له الله نه ﴿ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوٓءٌ ﴾ چي ونه رسيده د ئ ته هيڅ بدى ﴿ وَٱتَّبَعُوا۟ رِضْوَٰنَ ٱللَّهِ ﴾ (او تابعان شول دوئ د رضامندي د الله) يعنى دوئ ته د الله رضا وركول شوه چي په دارينو كښي نيكمرغي ده ﴿ وَٱللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَظِيمٍ ﴾ او الله ښښتن د فضل ډيرلوي دي (په بندګانو) ﴿ إِنَّمَا ذَٰلِكُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ يُخَوِّفُ أَوْلِيَآءَهُۥ ﴾ بيشكه دا سړي شيطان دي چي ويروي تاسي له دوستانو خپلو (كفارو) څخه چي درته وايي: ﴿ إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدْ جَمَعُوا۟ لَكُمْ ﴾ ﴿ فَلَا تَخَافُوهُمْ وَخَافُونِ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ نو مه ويريږئ تاسي له كفارو! او وويريږئ له ماڅخه كه يې تاسي مؤمنان (په حق سره) زه ستاسي د بريا ليتوب متكفل يم له دوئ څخه مه ويريږئ له ماڅخه وويريږئ زما د احكامو ترک مه كوئ كه موږ ما له امر څخه سرغړونه كوله هلاک به شئ اودلته مراد له شيطان څخه (نعيم بن مسعود الاشجعي) دى هغه چي ابوسفيان راواستاوو چي د مسلمانانو عزائم مات كړي او دوئ بى زړه او وويروي ابوحيان وايي چي دايې شيطان ته ځكه منسوب كړ چي داټول څه د شيطان له وسوسې بى لاري كولو او تدبير څخه پيدا شوي دى.[1] ﴿ وَلَا يَحْزُنكَ ٱلَّذِينَ يُسَٰرِعُونَ فِى ٱلْكُفْرِ ﴾ او غمجن دي نكړى تا (اي محمده) هغه كسان چي منډي وهي دوئ په (طرف) د كفر پدي كښي رسول الله ﷺ ته ډاډينه اوتسلا ده يعنى اي محمده د دي منافقينو په خبرو او كړو مه خواشيني كيږه اوددوئ په هغه دوكوا فريبونو چي د اسلام او مسلمانانو سره يې كوي باک مه كوه! دوئ د كفر لوري ته منډي وهي ﴿ إِنَّهُمْ لَن يَضُرُّوا۟ ٱللَّهَ شَيْـًٔا ﴾ بيشكه دوئ به له سره هيڅ ضررنه رسوي الله ته دهيڅ شي (بلكي ضرر رسوى ځانونو خپلو ته) ﴿ يُرِيدُ ٱللَّهُ أَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ ﴾ (اراده لرى الله د دي چي مقرر نه كړي د دوئ لپاره هيڅ برخه په آخرت كښي (د ثواب) ﴿ وَلَهُمْ

---

[1] - مختصر ابن كثير ۱/ ۳۴۰

عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ اومقرردی دوئ لره عذاب ډیرلوي ( سره دثواب له حرمانه ) دوئ به ددوزخ په اورکښې وی ﴿ إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ بیشکه هغوکسانوچې پیرودلی يې دي کفرپه ایمان سره له سره به ضررنه رسوي دوئ الله ته هيڅ شي اومقرردی دوئ لره عذاب دردناک یعنی همداچې مخکې ذکرشول دامنافقين هغه څوک دی چې کفريې په ایمان رانیولی اودوئ به په دغه ارتداداوکفرالله ته څه زیان ونه رسوي دوئ لره په دوزخ کښې دردناک عذاب دی ﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ لِّأَنفُسِهِمْ ﴾ اونه دي ګومان کوی هغه کسان چې کافران شوي دي چې بیشکه داچې مهلت ورکوموږ دوئ ته خيردی له پاره د(۱)ځانونود دوئ ﴿ إِنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ لِيَزْدَادُوا إِثْمًا ﴾ بیشکه همداخبره ده چې تل مهلت ورکوونږ دوئ ته لپاره ددي چې زياته کړي دوئ ګناه ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴾ او(مقرر) دي دوئ لره عذاب سپکوونکی ﴿ مَّا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ﴾ ( نه دی الله چې پريږدي مؤمنان په هغه حال ( داختلاط ) چې يئ تاسي ( ای خلګو ) پرهغه ترڅوچې جلاکړی (الله ) ناپاکه له پاکه ځینی ) داالله هغه وعده ده چې خپل استازی ته يې ورکوي چې هغه ته به مؤمن له منافق څخه وربيلوي اومعناخوداده چې هيڅکله به الله مؤمنان اومنافقان هسی ګډسره نه پريږدی ترڅووربانډی ازموينښت راولی اوداکسان له هغه نوروڅخه بيل اوجلاشي لکه چې دأحد په غزاکښې وشومؤمنان اومنافقين څرګندشول ابن کثيروايي چې اروموبه داسی يومحنت راځي چې هلته به د الله دوست اودښمن دواړه څرګنديږي هلته به صابرمؤمن له منافق فاجرڅخه ګوښې شی لکه دأحد په غزاکښې (۱) ﴿ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ ﴾ ( اونه دي الله چې خبرکاندي تاسي په غيب باندی ) طبری وايي چې: ترټولو بهتره خبره ددې په تفسيرکښې داده چې نه دي الله چې تاسودخلګوپه زړونوخبردارکړي ترڅوو پيژني چې دا منافق اودامؤمن دي خوپه ازموينښتونواومحنتونويې سره جلاکوي لکه دأحد په ورځ چې په سختي اودالله له دښمن سره په غزاکولويې وازمويل ﴿ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِن رُّسُلِهِ مَن يَشَاءُ ﴾ ( وليکن الله غوره کوي له رسولانو خپلوڅخه چې اراده وفرمايي ) اوهغه بيايه پټورازونوخبروي لکه چې رسول الله يې دمنافقينوپه حال خبرکړ ﴿ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ﴾ ( نو ايمان ولرئ تاسي په الله اوپه رسولانودالله ) يعنی داسی صحيح ايمان ولرئ چې يوازي الله عالم الغيب دی اورسول الله چې کومي خبری دغيبوڅخه بيانوي بيشکه هغه دالله ﷻ وحي ده ﴿ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴾ اوکه په ايمان قائم پاتی اوسئ اوپرهيزګاري وکړئ پس تاسوته ډيرلوئ اجردي ( په جنت کښې) ﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَّهُم ﴾ ( داګومان دي نکوي له سره هغه کسان چې بخيلی کوی دوئ په هغه شي چې ورکړی دی دوئ ته الله له فضله خپله چې دابخل خيردی دوی

۱- مختصرابن کثير ۱/ ۳۴۰

لره ) څرنګه چي الله پاک مؤمنانو ته پخپلو ځانونو دجهاد لپاره ښه زياته هڅونه اوتحريض ورکړ دلته دالله په لاره کښي دمال دښندلو تحريض دي همداسې سخت وعيد دهغه چالپاره دی چي په خپل مال کښې بخل کوی هغه دي هسې ګومان نه کوي چي دامال راټولول اودهغه په باب کښي بخل کول ورته ګټه رسوي بلکه تاوان يې په دين اودنيا کښې زيات دی ﴿ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ﴾ بلکه ( دابخل ډيربد ) شردی دوئ ته نه هسې لکه چي دوئ ګومان کوي ﴿ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُواْ بِهِۦ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ ( ژربه په ورځ دقيامت په غاړه کښي ورته اميل کړل شي هغه چي بخيلي کړی دی دوئ په هغه شي کښې ) دوئ ته به ورباندي عذاب ورکول کيږي لکه چي په بخاری شريف کښي يوحديث راوړی چی: چاته الله ﷻ مال ورکړی اوهغه يې زکات نه باسی دقيامت په ورځ به يې دغه مال الله پاک يوسترښامارو ګرځوی اوترغاړه به يې جاروزی ترژامو به يې ونيسي اوبيابه وابې چی زه ستامال يم زه ستاخزانه يم اوبيارسول الله دا آيت ولوستل ﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ ﴾ دآيت ترپايه ﴿ وَلِلَّهِ مِيرَٰثُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ ( اوخاص الله ﷻ لره دی ميراث دآسمانونواودځمکي ) يعنی ټول هغه څه چي په کائناتوکښی دي دالله ﷻ ملک دی له فناڅخه وروسته به هرڅه حقيقی مالک ته پاتی کيږی ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ اوالله پرهغو کارونو(هم) چي تاسي يې کوئ ښه خبردار دی.

بلاغت:

په البحرالمحيط کښي راوړی چي پدی آيتونو کښي دبلاغت اوبديع دمحسناتوفنونه راغلی چي له هغې جملې څخه يو يې اطناب دی چي دالله ﷻ پدی قول کښي راغي چي فرمايي: ( يستبشرون ) او( لن يضروا ) اوهمدارنګه دالله ﷻ دسپيڅلی اسم په راوړلوځوځايه داطناب صنعت دی لکه څرنګه چي په ( أمواتابل أحيآء ) کښي دطباق صنعت دي همدارنګه په ( الكفر بالايمان ) جمله کښي اوپدی کلام کښي چي فرمايي ( اشتروا الكفر ) استعاره ده لکه چي په دي کلام کښي ( يسارعون فى الكفر ) اوهمداډول په دي کلام کښي ( الخبيث والطيب ) څکه چي مؤمن اومنافق ځينی مراددی لکه چي په ډيروځايونو کښي حذف هم راغلی دی.[1]

فائده:

د الله پاک دغه قول چي: ( حسبنا الله ونعم الوكيل ) داهغه کلمه ده چي حضرت ابراهيم ﷺ هغه وخت وويله چي په اورکښي يې وغورځاوو سيوطي په اکليل نومي کتاب کښي ليکي چي ددغي کلمې لوستل دغم او پريشانۍ يا( ستروکارونو )په وخت کښي مستحب دی.

---

[1] - البحرالمحيط ۳ / ۱۲۹

**الله تعالی فرمایي:**

﴿لَقَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوا وَقَتْلَهُمُ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ
وَنَقُولُ ذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ﴿١٨١﴾ ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِلْعَبِيدِ ﴿١٨٢﴾ الَّذِينَ
قَالُوا إِنَّ اللَّهَ عَهِدَ إِلَيْنَا أَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُولٍ حَتَّىٰ يَأْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَأْكُلُهُ النَّارُ قُلْ قَدْ جَاءَكُمْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِي
بِالْبَيِّنَاتِ وَبِالَّذِي قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوهُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٨٣﴾ فَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِكَ جَاءُو
بِالْبَيِّنَاتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتَابِ الْمُنِيرِ ﴿١٨٤﴾ كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَنْ
زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ ﴿١٨٥﴾ ۞ لَتُبْلَوُنَّ فِي
أَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا
أَذًى كَثِيرًا وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ﴿١٨٦﴾ وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ
لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ فَنَبَذُوهُ وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ ﴿١٨٧﴾ لَا تَحْسَبَنَّ
الَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَا أَتَوْا وَيُحِبُّونَ أَنْ يُحْمَدُوا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِنَ الْعَذَابِ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٨٨﴾
وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٨٩﴾﴾ آل عمران: ۱۸۱ - ۱۸۹

**مناسبت او تړاو:**

وروسته له هغه چي قرآنکریم د أحد دغزا هغه ستري پیښي وړاندی اوپدي ترڅ کښي يې د منافقینو دسیسې اودوکې بیان کړی ددوئ هغه ناکاره نیتونه چې داسلام اومسلمانانو سره يې دخیانت درلودل اویایې دمسلمانانو عزائم سست (ومړی) کول چي له جهادڅخه پاتی شی له دي وروسته الله تعالی دیهودو دوکې او فریبونه اوپلیت چل اول چي داسلامي دعوت سره يې جګړه اعلان کړی وه اوهغه هم دمسلمانانو په زړونو کښي دشکوکو او شبهاتو په اچولو اونورو ډول ډول دِسیسو په کار ولو رسواکړل ترڅو مسلمانان له دوئ څخه هم داسی لکه له منافقینو څخه وویروي داآیتونه دیهودانو اوددوئ دشرمونکی دریزونو څخه چي دوئ دالله په وړاندي غوره کړي وو غربزي الله پاک يې په بدواوناروا تورونو باندی لکه بخل اوفقر تورن کاوو اوبیادهغوئ عهد ماتول اودانبیاوو وژل اوپه هغه امانت کښي چي الله ورته سپارلی و وخیانت کول یادوي اوآیتونه ددغه ملعون قوم نور جرمونه اوګناوي بیانوي.

**لغتونه:**

( عهدالینا ) وصیت يې کړی موږ ته ( بقربان ) په قرباني او قرباني هغه حیوانات دی چي دثواب لپاره حلالیږي ( البینات ) څرګندې نښانې اومراد ځینی معجزې دی ( الزبر ) د (زبور) جمع ده اوهغه بیا کتاب ته وایې لکه کتاب دمکتوب په معنا دی همداسې زبور دمزبور په معنا راځي لکه چي رکوب دمرکوب په

معناوي زجاج وايي چي زبوردحکمت خاوندهرکتاب ته ویل کیږي ( زحزح)ليري کيدل د(زح)تکراردا چي په تلواره ليرى کړل شي ( فاز) په مراد ورسيدواوله هغه چي ويريدو وژغورل شو. ( الغرور) خطاايستل ( متاع ) هغه چي ورباندى ګټه اوخوند اخيستل کيږى اوبيافناکيږي ( لتبلون ) تاسوبه وازمويل شئ ( عزم الأمور) درايي ثبات اودلته مرادځينى سمه رايه ده هغه داچي هرهوښيارسړي په هغه عزم کوي ( بمفازة ) ځاى دخلاصون له فوزڅخه اخيستل شوي لکه چي وايي: (فازفلان )يعنى نجات يې موند.

دنزول سبب:

ابن عباس ﷺ وايي چي يوه ورځ ابوبکرصديق ﷺ ديهودويوکور (مدراس) ته ورننوت که ګوري چي يهودان ديوسړي لورته راټول شوي چي هغه ته بي( فنحاص بن عازوراء ) ويل هغه ددوئ له احباراو علماوڅينى ووابوبکر ﷺ ورته وويل : افسوس پرتا له الله څخه وويريږه اومسلمان شه زمادى په الله قسم وي ته پدي ښه پوهيږي چي محمد ﷺ دالله له لوري استازى دى چى دالله له لورى په حق رااستول شوي اوتاسويې په تورات اوانجيل کښي صفات لوستلي دي فنحاص وويل : اي ابوبکره موږ الله ته اړنه يو الله فقيردي موږ هغه ته دومره زاري نه کوولکه چي دي يې موږته کوي موږ له هغه څخه بې پروايوکه چيرى هغه بډاي واى نوبيابه يې له موږ څخه پورنه غوښتل لکه چي ستاسي ملګري ګومان کوي ، تاسي له ربا اوسودڅخه منع کوئ اوموږته يې راکوئ که غنى واى موږ ته به يې سودنه راکول ابوبکر ﷺ ته غصه ورغله اوفنحاص يې سخت په چپلاخه وواهواوورته يې وويل زمادى په خداى لوړه وي که زموږ اوستاسي ترمنځ عهدنه واي ته به مي وژلى واى ته دالله دښمن يې فنحاص رسول الله ﷺ ته ورغي اوورته ويل يې: اى محمده ملګرى دى راسره هسې وکړل ماته وګوره ! رسول الله ﷺ وويل اى ابوبکره دڅه لپاره دى داسى وکړل هغه وويل اى دالله پيغمبره دغه دالله دښمن ډيره سخته خبره وکړه دي ګومان کوي چي الله فقيردي اودوئ بډايان دي نوماته دالله ﷺ په هکله داسې خبرې کولوغصه اوغضب راووست هغه مي په مخ وواهو( فنحاص ) له دي وروسته له داسى خبري کولوڅخه منکرشو نوالله دده په ردولواودابوبکر ﷺ په تصديق کښي داآيت نازل کړ ( لقدسمع الله قول الذين قالوا ان الله فقيرونحن اغنيآء )[1] داآيت ترپآيه

تفسير:

﴿ لَّقَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ ﴾ خامخاپه تحقيق اوريدلى ده الله خبره دهغوکسانوچي ويلى يې ووبيشکه الله فقيردى اوموږغنيان يو ) دادالله ددښمنانويهودوهغه ملعونانوخبره ده چي ګومان يې کاووه الله فقيردي ځکه له موږڅخه پورغواړى داپه هغه وخت کښي چي داآيت نازل شو( من ذاالذي يقرض الله قرضا حسنا) (البقرة : ۲۴۵ ) نودوئ به ويل چي الله فقيردي له موږڅخه پورغواړى لکه چي به يې ويل ( يدالله مغلولة ) ( البقرة : ۲۴۹)قرطبى وايي دادوئ ددى لپاره نه ويل چي ګواکي داسى عقيده يې درلوده بلکه دضعيفواوکمزوروومسلمانانودتشکيک لپاره يې داسى

[1] - اسباب النزول للواحدى ص ۷۶ ومختصرابن کثير ۱ / ۳۴۲

کول اوهم داچي درسول الله ﷺ تکذیب یې کړی وی یعنی دوئ داملندي پدې وهلی چې محمدوایې چې الله له موږڅخه قرض (پور) غواړی(۱) ﴿ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوا۟ وَقَتْلَهُمُ ٱلْأَنۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ (ژربه موږ لیکلي وساتوهغه خبرې چې دوئ ویلی دي (اولیکلی به وساتو) وژل (دنیکونو) ددوئ انبیاوولره په ناحقه سره ) یعنی موږ به ژرلیکونکي پرښتوته امروکړوچي دوئ څه وایې د دوئ په عملنامو کښې یې ولیکي اوددوئ هغه ستره گناه چې دپیغمبرانووژل دي هم ولیکي مرادله وژلود انبیاووڅخه ددوئ خوښه اورضاده په هغووژلودنیکونوددوئ انبیاوولره﴿ وَنَقُولُ ذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلْحَرِيقِ ﴾ اووبه وایوموږ(دوئ ته چې ) وڅکئ عذاب داور سوځیدونکي ) یعنی الله به په آخرت کښې دملائکوپه خوله دوئ ته ووایې چې دسوځیدونکی اورعذاب وڅکئ ﴿ ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ ﴾ (داعذاب ) په سبب دهغه دی چې پخواالیږلی دي لاسونوستاسي) له گناهونوڅخه ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّٰمٍ لِّلْعَبِيدِ ﴾ ( اوبیشکه چې الله نه دي ظلم کونکي په بندگانو ) یعنی الله پاک خوعادل دی ظلم په خلگونه کوي مرادد‌لته دادي چې داعذاب ستاسي دگناهونوپه سبب دي اودالله له لوري له تاسوسره عدالت دی زمخشري وایې چې دادعدالت غوښتنه ده چې گناهگارته سزااودیندار (محسن ) ته ثواب ورکول شي .

(۲) ﴿ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ عَهِدَ إِلَيْنَآ ﴾ (هغه کسان چې وایې بیشکه الله پیغام کړي دی موږته ) یعنی دوئ هغه کسان دی چې وایې الله موږ ته په تورات کښې وصیت اوحکم کړي دی﴿ أَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُولٍ حَتَّىٰ يَأْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَأْكُلُهُ ٱلنَّارُ ﴾ ( چې ایمان به نه راوړوموږ په هیڅ رسول ترهغه پورې چې راوړی موږته ( هسی) قرباني چې اورېې خوري ) یعنی موږبه په هیچاترهغوپورې ایمان نه راوړو ترڅوچې دهغه قرباني دآسمان اورونه سوځوي اودادوئ له لوري په الله پاک باندی افتراء ده ځکه هغه ورته هسې نه وو ویلي﴿ قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِى بِٱلْبَيِّنَٰتِ وَبِٱلَّذِى قُلْتُمْ ﴾ (ووایه اي محمده دوئ ته چې ) په تحقیق راغلی ووتاسي ته (ډیر) رسولان پخواله ماپه ښکاره ووممعجزواوپه هغه شي سره چې ویلی دی تاسي ) یعنی ای محمده دوئ ته دتوبیخ په توگه اوددوئ دروغ څرگندولولپاره هسی ووایه چې تاسوته خوترماله مخه پیغمبران په څرگندومعجزواودلائلوسره راغلی ووچې ددوئ دنبوت په رښتنولی یې او په هغه څه چې تاسویې ادعاکوئ دلالت کاوو﴿ فَلِمَ قَتَلْتُمُوهُمْ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ (نوولی ووژل (نیکونو ستاسي )هغوئ که یې تاسي صادقان ) ؟ یعنی که پخپله دعوی کښې تاسي صادقان یی چې په الله ایمان لرئ اوپه انبیاووباورلري نو ولی مو ووژل ؟ بیاالله پاک رسول الله ﷺ ته دداداو تسلاپه دول فرمایې:﴿ فَإِن كَذَّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ ﴾ پس که نسبت ددروغو وکړي دوئ تاته (ای محمده ) نومه خپه کیږه (ځکه ) پس په تحقیق نسبت ددروغوکړي شوی ووډیرودرسولانوته پخواله تاچې راغلی وو) یعنی ددوئ نیکونودپخوانیوانبیاووتکذیب هم کړي

---
۱ -تفسیرکبیرامام رازی
۲ - الکشاف۱/ ۳۴۴

وونوستالپاره په هغوانبیاووپسي ښه اقتداء ده ﴿ جَآءُو بِٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ راغلی وودوئ په ښکاره ومعجزو ﴿ وَٱلزُّبُرِ وَٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُنِيرِ ﴾(اوپه کتابودشرعي احکامو) اوپه کتاب روښان (بیانونکي دحلال اوحرام) هغه چي په حکمتونواوپندونودک وولکه تورات اوانجيل ﴿ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ ٱلْمَوْتِ ﴾ هریونفس څکونکي دمرګ دی لکه چي بل ځای الله تعالی فرمایي:( کل من علیها فان )[ الرحمن ۲۶ ] ﴿ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ اوبیشکه هم داخبره ده چي پوره به درکرل شي تاسي ته اجرونه ستاسي په ورځ دقیامت کښي ﴿ فَمَن زُحْزِحَ عَنِ ٱلنَّارِ وَأُدْخِلَ ٱلْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ﴾ اوهرڅوک چي لیري کړي شي له اوره د دوزخ اوداخل کړي شوجنت ته نوپه تحقیق مرادیې وموند( بریالی شو) اوتل ترتله نیکمرغی اونعمت بې په برخه شو ﴿ وَمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَآ إِلَّا مَتَٰعُ ٱلْغُرُورِ ﴾ ( اونه دی ژوندون لږ(ددنیا )مګرپنګه دغولیدلو ) یعنی دنیا دفناځای دی اوناپوه مغروروربانده نفع اخلی ابن کثیروایي چي په آیت کښي ددنیادشان دکموالی اودهغې دپناکیدلو رازپروت دی.(١ ) ﴿ لَتُبْلَوُنَّ فِىٓ أَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ﴾ ( قسم دي چي خامخابه وازمویل شئ تاسي هرومروپه مالونو خپلو او په ځانونوخپلو) یعنی تاسوبه پخپلومالونوپه فقراومصیبوتونو وازمویل شئ همدارازبه پخپلو ځانونوبه په امراضواومشکلاتوامتحان شئ ﴿ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ وَمِنَ ٱلَّذِينَ أَشْرَكُوٓا۟ أَذًى كَثِيرًا ﴾ ( اوخامخابه واورئ تاسي بالضرور له هغوکسانوچي ورکړي شوي دوئ ته کتاب له تاسي څخه پخوااوله هغو کسانوچي شریکان نیسی ( په الله پوري ) ضررډیر) یعنی تاسوبه له یهودوواونصاراوواو له نورومشرکانو څخه چي ستاسي دښمنان دی ډیرڅه ضرروړینئ دادالله ﷻ له لوری مؤمنانوته ددي اخباردي چي هغوئ ته به د مشرکینواوفاجرانوله لوري ربړونه اوتکالیف رسیږي اودوئ ته بی کله چي دا وړپېښېږي دصبراوزغم امرکړي څکه چي جنت په تکلیفونوکښي نغښتی دی نوبې وویل :﴿ وَإِن تَصْبِرُوا۟ وَتَتَّقُوا۟ ﴾) ( اوکه صبراوپرهیزګاري وکړئ) یعنی په تکلیفونوصبروکړئ اوله الله څخه پخپلوافعالواقوالوکښي وویریږئ ﴿ فَإِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ ﴾ ( نوبیشکه دا(صبراوتقوی ) دهمت له کارونوڅني ده) داښایې چي تاسي ورته ملاوتړئ څکه دالله مأموربه دی ﴿ وَإِذْ أَخَذَ ٱللَّهُ مِيثَٰقَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ ( اویادکړه ( اي محمده) هغه وخت چي واخیست الله عهدمحکم له هغو کسانوڅیني چي ورکړی شوی دي دوئ ته کتاب ) یعنی له یهودانوڅخه بې په تورات کښي ټینګ عهد واخیست ﴿ لَتُبَيِّنُنَّهُۥ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُۥ ﴾ چي خامخابه بیانوئ تاسي هرومرو(داکتاب) خلګوته اونه به بې پټوئ تاسي ابن عباس ﷺ وایي دادیهودوپه باب دي له دوئ څخه ټینګ عهداخیستل شوي چي درسول الله تعریفات به خلګوته ورښیې خودوئ هغه پټ اوشانه بې

---

١ - مختصرابن کثیر١ / ٣٤٣

وغورځول(۱) ﴿ فَنَبَذُوهُ وَرَآءَ ظُهُورِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهِۦ ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ نوو غورځاوو دوئ ( دغه عهد ) وروسته له شاو وخپلو او وايې خيست ( په عوض دهغه ) قيمت لږ (ددنياله مال نه ) ﴿ فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ ﴾ (نو بد اخيستل ددوئ دي دا اخيستل ) يعنى ددوئ دغه پيرل ډيرپه تاوان کښې دي ﴿ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَآ أَتَوا ﴾ له سره گومان مه کوه ( اى محمده ) په هغو کسانو چې خوشحاليږي په هغه کارچې دوئ کړي (چې ستا په هکله بشارتونه يې پټ کړي) ﴿ وَّيُحِبُّونَ أَن يُحْمَدُوا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا ﴾ او مينه کوي دوئ پدې چې وستايل شى دوئ په هغه کارچې نه وي کړى دوئ ، له تمسکه په حق او دوئ گمراهان دي ﴿ فَلَا تَحْسَبَنَّهُم بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ ﴾ پس له سره مه گڼه دوئ په ځاى دخلاصيدلو له عذابه (دالله) ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ او مقرردى دوئ لره عذاب درد رسوونکى. ابن عباس ﷺ وايې: چې دا داهل کتابو په باب کښې نازل شوي رسول الله ﷺ ورځخه يو شي وپوښتل هغوئ ځني پټ کړ او بل څه يې په ځواب کښې ورته وويل او پدي خوشحاله شول چې هغه ورکړى شوي حکم يې کله چې ځني وغوښتل شوپټ کړ.(۲) ﴿ وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ﴾ او خاص الله لره دى سلطنت دآسمانو او ځمکي ( نو څرنگه به هغه فقيرو گڼل شي ؟ ) دا آيت په هغو کسانو باندى ردکوي چې ويل به يې: الله فقير او موږ بډايان يو ﴿ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ (او الله په هرشي باندى ( چې اراده يې وکړي ښه قادردي ) او ددوئ په عذاب ورکولو هم.

## بلاغت :

په دى آيتونو کښې دبيان او بديع ډيرې ښکلاوي شته چې په لاندې ډول يې لنډيز ليکو:

۱ – پدې کلام کښې چې: ( ان الله فقيرونحن اغنيآء ) يهودانو دالله په هکله داجمله دمبالغې لپاره په تاکيدي تورو سره راوړه او خپل ځان ته يې دغنانسبت هسى وکړچې گويا تاکيد ته يې هيڅ اړه نشته لکه چې بډايې او غنا ددوئ هسې صفت وي چې هيڅوک هم پکښې اختلاف نه لري چې تاکيد ته يې ضرورت پيښ شي نو دا دهغوئ په کفر او عصيان کښې دتمرد او سرغړوني نښه ده.

۲ – ( سنکتب ماقالوا) پدې جمله کښې عقلي مجاز دى ځکه معنايې ده چې ژرده زمونږ پرښتې به يې وليکي الله تعالى خويې پخپله نه ليکي بلکه دليکلو امرورته فرمايې ځکه نو دفعل نسبت کول الله ته مجازا شوي دي.

۳ – پدې کلام کښې چې الله تعالى فرمايې ( ذلک بماقدمت أيديکم ) دلته مجازمرسل دي دجزء په راوړلو سره دکل اراده مطلب ده ځکه ډيرکره وړه په لاسونو سره ترسره کيږي.

---

۱ - التسهيل لعلوم التنزيل ۱ / ۱۳۶

۲ - الکشاف ۱ / ۳۴۵

۴ - پدی جمله کښي چي: ( تأكله النار) دلته دخوراک نسبت اورته کول داستعارې په توګه دی ځکه حقيقت خوخوراک دانسان اوحيوان صفت دي همدارازپه دي جمله کښي استعاره ده چي فرمايي: ( ذائقة الموت ) ځکه دڅکلوحقيقت خودانسان احساس دی.

۵ - (متاع الغرور ) زمخشری وايي چي دنيايي له هغې متاع سره چي پيرودونکي ته يې دتېرايستلولپاره ښائسته کړي وی مشابه کړي ترڅوهغه وغولوي او غولونکي اوښائسته کونکي شيطان دي داهم داستعاري له ډول څخه ګڼل کيږي.(۱)

۶ - ( فنبذوا وراء ظهورهم .....واشتروا به ثمنا قليلا) همدارازدلته غورځول اوپيرودل ( اخيستل ) استعارې دي ځکه په يوحکم باندی عمل نه کول يې له هغه څه سره چي شاته وغورځول شي مشابه کړی اودغسی يې دالله دآيتونوپه پټولوباندی بدي اخيستل چي لږقيمت يې بللی اودوئ يې په عوض کښي اخيستي له پيرودلوسره مشابه بللی دي.

۷ - لکه چي په دي مبارکوآيتونوکښي دبديعی محسناتوڅخه دطباق صنعت پدي کلموکښي راغلی لکه( فقير ) او(اغنيآء) همدارازدمقابلې صنعت لکه( زحزح عن النار)او(أدخل الجنة ) اوبل په ( لتبيننه ) ...ولاتكتمونه ) همداسی مغايرجناس راغلی پدی کلام کښي چي : ( قول الذين قالوا) او(كذبوک فقدكذب )

فائده:

.دفعال صيغه په دي آيت کښي چي: ( وماربک بظلام ) دمبالغې لپاره نه بلکه دنسبت لپاره ده اولکه نجار، عطار، اوتمارغوندی راځي.

تنبيه:

بيشکه چي الله ددنياعيش اونعمت په متاع الغرورسره وستايوځکه ددنياخوندونه اوشهوتونه دتل ترتله اواوږدې بقاپه هيله وي خوهغه باندی سړي تېروزي اوژريږي وغولوی اوراوبې غورځوي نوځکه صالحينواسلافوويلي چي دنيامتروکه متاع ده ژرده چي ورکه ويرانه شي نوله دغې متاع څخه ګټه واخلئ اوځوموتوان وی دالله دطاعت عمل پکښي ترسره کړئ. والله المستعان.

الله تعالى فرمايي:

﴿ إِنَّ فِي خَلْقِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱخْتِلَٰفِ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ لَءَايَٰتٍ لِّأُوْلِي ٱلْأَلْبَٰبِ ﴿١٩٠﴾ ٱلَّذِينَ يَذْكُرُونَ ٱللَّهَ
قِيَٰمًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَٰذَا بَٰطِلًا سُبْحَٰنَكَ فَقِنَا
عَذَابَ ٱلنَّارِ ﴿١٩١﴾ رَبَّنَآ إِنَّكَ مَن تُدْخِلِ ٱلنَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُۥ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴿١٩٢﴾ رَّبَّنَآ إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا
يُنَادِي لِلْإِيمَٰنِ أَنْ ءَامِنُواْ بِرَبِّكُمْ فَـَٔامَنَّا رَبَّنَا فَٱغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّـَٔاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ ٱلْأَبْرَارِ ﴿١٩٣﴾ رَبَّنَا
وَءَاتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَىٰ رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ ٱلْمِيعَادَ ﴿١٩٤﴾ فَٱسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّي لَآ أُضِيعُ

۱- الكشاف ۱/ ۳۴۵

عَمَلَ عَامِلٍ مِّنكُم مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ بَعْضُكُم مِّن بَعْضٍ فَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَأُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَأُوذُوا فِي سَبِيلِي
وَقَاتَلُوا وَقُتِلُوا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ثَوَابًا مِّنْ عِندِ اللَّهِ وَاللَّهُ
عِندَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ (۱۹۵) لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي الْبِلَادِ (۱۹۶) مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ
الْمِهَادُ (۱۹۷) لَٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نُزُلًا مِّنْ عِندِ اللَّهِ وَمَا عِندَ
اللَّهِ خَيْرٌ لِّلْأَبْرَارِ (۱۹۸) وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَمَن يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُمْ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِمْ خَاشِعِينَ لِلَّهِ لَا
يَشْتَرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا أُولَٰئِكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ (۱۹۹)
يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (۲۰۰) ﴾ آل عمران ۱۹۰ـ۲۰۰

**مناسبت او تړاو:**

الله تعالی دغه آیتونه د توحید، الوهیت او نبوت د دلائلو په بیانولو پیل کړی او همدارنګه د وحدانیت، قدرت، خلق او ایجاد په دلائلو پای ته رسولي دي ترڅو انسان د بعث او نشور په هکله وربا ندې استدلال وکړي او دا ګواکي مسک الختام دی. څرنګه چي دد‌ې عظیم الشان او ستر (مسطور) کتاب څخه مقصد د خلګو د زړونو او روحونو رانښکون دی چي د ټول مخلوق څخه یې د حقیقي مالک الله معرفت ته بوزي نو آیتونه د زړونو څلا او روښنایي د توحید، الوهیت کبریا او جلال په دلائلو سره د کوی او نظرونه د مځکې او آسمان په ملکوت کښي په تدبر او تفکر کولو سره ګوماري ترڅو انسان د زړه له اخلاصه د الله په وحدانیت او څرګند قدرت اعتراف وکړي پداسې حال کښي چي د منظور کتاب د دغو پراخو کائناتو په باب سوچ کوی وروسته له هغه چي د الله ﷻ د مسطور کتاب (قرآن کریم) هغه ډیرې اشارې چي د منظور کتاب آیتونو ته یې کوی لولي کومې چي د حواسو په کاراچولو د حقائقو پېژندګلوی او معرفت ته یې رابولی ﴿ وَكَأَيِّن مِّنْ آيَةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ (۱۰۵) ﴾ یوسف.

**لغتونه:**

(الالباب) عقول (باطلا) چټي عبث بې حکمته (سبحانک) پاکې ده تا لره د الله پاکي بیانول (اخزیته) چي تاذلیل او رسوا کړې (کفّرعنّا) محوا او پټ کړی له موږ څخه (الابرار) د (بر) او یا (بار) جمع ده هغه چا ته وایې چي په شریعت یې منګولی لګولی وی (فاستجاب) ویې منله (نزلا) میلمستیا هغه څه چي د میلمانه لپاره تیاریږي (رابطوا) په سنګرونو کښي د دښمن څارنه کوئ.

د نزول سبب یې: له ام سلیم رضی الله عنها څخه روایت کیږي چي هغه وایې: ما رسول الله ته وویل زما په یاد نه دی چي الله دی د هجرت په باب د میرمنو (ښځو) څه یادونه کړی وي نو الله ﷻ دا آیت نازل کړ: (فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنكُم مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ ).[1]

[1]- الطبری ۷ ـ ۴۸۸ و اسباب النزول ص ۸۰.

تفسیر:

﴿ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ (بیشکه په پیداکولو دآسمانونو او مځکې کښې ) سره له محکم والی او ابداع ) ﴿ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ﴾ او په اختلاف دشپې او ورځې کښې ) چې یو په بل پسې تل ترتله راځي ﴿ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴾ (هرومرو دلائل دی (دالله دقدرت) لپاره دخاوندانو د (خالصو عقلونو ) یعنی پدی کښې دصانع په وجود او دهغه په ستر قدرت باندی څرګندې نښې او علامې دی او داپرته له هغه چاچې دعقل خاوندان او کائناتو ته په سوچ او تفکر ګورې بل چاته نه معلومیږې ددوئ کتل دتدبر او استدلال کتل وی نه لکه چارپایان چې یوازی کتل کوی او سوچ تدبر نلري وروسته الله پاک هغه کسان ستایې: ﴿ الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِهِمْ ﴾ (دغه (عاقلان ) هغه کسان دی چې یادوي الله په ولاړه او په ناستې او په اړخونو خپلو (چې پراته وی ) یعنی دوئ الله په خوله او په زړه په ټولو حالاتو کښې یادوي یوه شیبه هم دالله له یاده نه غافلیږی څکه ددوئ دزړه اطمئنان دالله په ذکر دی او زړه یې دالله په مراقبت کښې غوپه وی ﴿ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ ( او فکر کوی دوئ په پیدایښت دآسمانونو او ځمکې ( او مافیهما ) کښې ) یعنی داعجیب مصنوعات او غریب موجودات الله پنځولی نووایې: ﴿ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَٰذَا بَاطِلًا ﴾ (ای ربه زموږه ! ندې پیداکړی تادامخلوقات عبث (بې حکمته ) ﴿ سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴾ نسبت دپاکې دی تاته ( له ټولو عیبونو ) نوو ساته موږ له عذابه داور (ددوزخ نه ) ﴿ رَبَّنَا إِنَّكَ مَن تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ ﴾ اې ربه زموږ بیشکه ته چې هرڅوک اورته داخل کړی نو په تحقیق رسوا کړ تاهغه (ای ربه ) یعنی هغه دې په بې ساري ډول سپک او دخلګو په وړاندی رسوا کړ ﴿ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴾ او نشته ظالمانو (کافرانو ) ته هیڅ مددګاران ( دعذاب په دفع کښې ) دلته مراد له ظالمانو څخه کافران دی لکه چې ابن عباس ﷺ او جمهور مفسرینو ویلی دی او په سورة البقره کښې یې داسې یادونه شوې ده چې: ﴿والکافرون هم الظالمون﴾ ﴿ رَّبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلْإِيمَانِ ﴾ ای ربه زموږ بیشکه موږ واوریده (غږ) دیوه آوازکونکی ( چې محمد دی ) بلل یې خلک ! ایمان ته ﴿ أَنْ آمِنُوا بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا ﴾ ( چې ایمان راوړئ ! په رب خپل نو ایمان راوړ موږ په رب خپل ) یعنی دغه بلونکي داسې ویل چې ای خلګو ستاسې په رب ایمان راوړئ او دهغه په وحدانیت شاهدی ووایاست نو موږ دهغه خبره ومنله او دهغه پیروی مووکړه ﴿ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا ﴾ ای ربه زموږ نو مغفرت وکړه موږ ته ګناهونه (لوی ) زموږ ! او لیری کړه له موږه ګناهونه (واړه) زموږ ! یعنی ای ربه زموږ ګناهونه پټ کړه او موږ مه رسوا کوه او په خپل فضل او رحمت سره زموږ ګناهونه محو کړه ﴿ وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ ﴾ ( او وفات کړه موږ ( پداسې حال کښې چې داخل اوسو ) سره له ډلې دنیکانو ) یعنی له نیکانو سره موصل کړه ابن عباس ﷺ وایې چې مراد له ( ذنوب ) څخه کبائر ګناهونه

اومرادله (سیئآت) څخه صغائردی اوددې خبرې تائید پدی هم کیږي چي: ﴿ان تجتنبوا کبائر ما تنهون عنه نکفرعنکم سیاتکم﴾ نوبیاتکرارنه راځي ﴿رَبَّنَا وَءَاتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَىٰ رُسُلِكَ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ ٱلْمِيعَادَ﴾ ای ربه زمونږ اوراکړه مونږ ته هغه چي وعده دی کړی ده تاله مونږ سره (په ژبه د رسولانو) یعنی مونږ ته هغه څه (جنت) راکړه چي درسولانو په ژبه دی راسره وعده کړی ده دا دابن عباس ﷺ قول دی دندا تکرارد بشپړې خضوع دڅرګندولو اوتضرع لپاره دی ﴿وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ﴾ (اومه رسواکوه مونږ په ورځې د قیامت کښي !) لکه چي کفاردی رسواکړی ﴿فَٱسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّى لَآ أُضِيعُ عَمَلَ عَـٰمِلٍ مِّنكُم مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ﴾ پس قبول کړې دوئ لره (دادعاوې) رب ددوئ (پدې شان چي) بیشکه زه نه ضائع کوم عمل دهیڅ عمل کونکي له تاسی نارینه وي (داعامل) اوکه ښځه وی حسن وایې چي دوئ به همیشه ویل ربنا ربنا ترڅو چي الله ﷻ دعاومنله.(۱) ﴿بَعْضُكُم مِّنۢ بَعْضٍ﴾ (۲) (څکه چي) ځینی ستاسو دی له ځینو نورو) یعنی نارینه له ښځواوښځي له نارینه وودي نوڅرنګه چي اصل مومشترک دی اجراومکافات موهم ګډ اوشریک دی ﴿فَٱلَّذِينَ هَاجَرُوا۟ وَأُخْرِجُوا۟ مِن دِيَـٰرِهِمْ﴾ اوهغه کسان چي هجرت کړی دی دوئ (لپاره ددین) اوایستلی شوی دی دوئ له کورونو خپلو څخه ﴿وَأُوذُوا۟ فِى سَبِيلِى﴾ اوضرررسول شوی دی دوئ ته په لاره زماکښي ددین په سبب ﴿وَقَـٰتَلُوا۟ وَقُتِلُوا۟﴾ اوجنګونه یې کړی دی (له کفاروسره) اووژل شوی دی (په غزاکښي زماپه لاره کښي) ﴿لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّـَٔاتِهِمْ﴾ (نوخاماخابه لیری کړم هرومروله دوئ نه ګناهونه ددوئ) یعنی زه به پخپل مغفرت اورحمت سره ددوئ ګناهونه محوکړم ﴿وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّـٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَـٰرُ ثَوَابًا مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ﴾ اوخاماخابه داخل کړم هرومرو دوئ په جنتونو کښي چي بهیږي له لاندی د(مانیواونو) دهغو ویالې (جزادنیکیوبه ورکړومونږ دوئ ته) په جزاورکولو (نیکو) سره دادوئ دنیکواعمالو په سبب سره ﴿وَٱللَّهُ عِندَهُۥ حُسْنُ ٱلثَّوَابِ﴾ اوالله په نزدده دي ښه ثواب (نیکه جزا) چي هغه جنت دی اوپکښي هغه څه دی چي نه خوسترګو لیدلی نه غوږونو اوریدلی دی اونه دچاپه زړه باندی تېرشوي دی بیاوروسته الله ﷻ ددی تنبیه ورکوی چي کفارکه په دی دنیا کښي په نعمتونو اوخوښیوکښي لامبي خو دا هسی نعمت دی چي زوال مومی فرمایې: ﴿لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فِى ٱلْبِلَـٰدِ﴾ نه دې تېرباسي له سره تا (ای اوریدونکي) تلل راتلل دهغوکسانو چي کافران شوی دی (اوتصرف ددوئ) په ښارونوکی چي دذوئ دمالونو ګټلو اورتبو حاصلولو لپاره ځي راځي ﴿مَتَـٰعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ ۚ وَبِئْسَ ٱلْمِهَادُ﴾ دافائده ده لږ پس (له مرګه) ځای ددوئ دوزخ دی اوبدځای دهستوګنی دی (دادوزخ) ﴿لَـٰكِنِ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّـٰتٌ تَجْرِى مِن

---

۱- القرطبی ۴ / ۳۱۸

۲- طبری وایې چي ځینی ستاسوله ځینونورودی په مرسته، ملت اودین کښي اوهغه چي سوروليکل د جلالين رايه اوڅرګنده (ظاهر) ده.

﴿تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَـٰرُ خَـٰلِدِينَ فِيهَا﴾ ليکن هغه کسان چي ويريږي دوئ له ربه خپله شته دوی لره جنتونه چي بهيږي له لاندې ( دونو او مانيود ) هغو ويالې تل به وی دوئ په هغو جنتو کښي ﴿نُزُلًا مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ﴾ پدې حال کښي چي (دغه جنتونه ځای دی ) ميلمستيادی (له جانبه ) دالله ﷻ ﴿وَمَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ لِّلْأَبْرَارِ﴾ (او هغه شئ ( باقی شئ ) چي په نزد دالله ﷻ دي خيردی لپاره دنيکانو ) يعنی هغه ثواب او عزت کرامت چي دنيکانو او اخيارو لپاره دالله ﷻ په نزدشته هغه تردی تللو راتللو دفجارو او اشرارو چي زائل کيدونکی دی غوره دی بيا الله پاک دځينو اهل کتابو کسانو دايمان خبره راوړی فرمايي: ﴿وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ ٱلْكِتَـٰبِ لَمَن يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْكُمْ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِمْ﴾ او بيشکه ځينی داهل کتاب خامخا هغه څوک دی چي ايمان لری په الله او پرهغه ( قرآن ) چي نازل کړل شوی دی تاسی ته ( ای مسلمانانو) او پرهغه تورات او انجيل چي نازل کړل شوی دی دوئ ته لکه عبدالله بن سلام او ملګری يې او يا نجاشی او پيروان تابعان يې ﴿خَـٰشِعِينَ لِلَّهِ﴾ حال داچي ويريدونکی (متواضع ) دی الله لره يعنی تذلل او خضوع لری ﴿لَا يَشْتَرُونَ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ نه پيری ( اخلی دوئ په آيتونو دالله قيمت لږ ﴿أُو۟لَـٰٓئِكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ (همدغه کسان ( مقرردی ) دوئ لره اجراو ثواب ددوئ په نزددرب ددوئ ) يعنی دوئ ته ددوئ دايمان ثواب مضاعف ورکوی لکه چي الله فرمايي: ﴿إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ﴾ بيشکه چي الله ډيرژردی حساب دده (يعنی ډير ژرحساب اخلی) ځکه چي په ټولو معلوماتو علم لری او دهرچا عذاب او ثواب ورته ښکاره دی چي څومره وړه ده ابن عباس ﷺ او حسن وايي چي داآيت دنجاشی په باب نازل شوی کله چي نجاشی وفات شو دهغه دمړينې خبرحضرت جبرائيل ﷺ رسول الله ﷺ ته ورساوو نو رسول الله ﷺ اصحابانو ته وويل: پورته شئ او په نجاشی ورورباندی مولمونځ وګذارئ ! نو ځينې اصحابانو ځينو نورو ته وويل: رسول الله ﷺ موږ ته حکم کوی چي دحبشو په يو تن باندی دجنازې لمونځ وګذارو؟ نو الله داآيت نازل کړ(وان من اهل الكتاب لمن يؤمن بالله)[1] بيا الله تبارک وتعالی دامبارک سورت پدې وصيت باندی چي ددارينو نيکمرغی او سعادت پکښي خوندی شوي پای ته رسوی فرمايي: ﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱصْبِرُوا۟﴾ ای هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو ) صبر کوئ ( په سختيو د طاعاتو او مصيبتونو د مشکلاتو ) ﴿وَصَابِرُوا۟﴾ او ټينګ اوسئ په صبر دکفارو په مقابل کښي دجنګ په کراوونو او تکليفونو کښي ﴿وَرَابِطُوا۟﴾ او محکم اوسئ (په اسلامي سرحداتو کښي) تيارسئ اوسئ دغزا او مقابلې لپاره ﴿وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ (او وېريږئ له الله لپاره ددې چي په مرادورسيږئ ) يعنی له الله ﷻ څخه وويريږئ او داوامرو مخالفت يې مه کوئ ترڅو موددواړو جهانونو نيکمرغی په برخه شي.

[1] - البحر المحيط ۳ / ۱۴۸ و القرطبی ۴ / ۳۲۲

بلاغت: دا آیتونه د بدیع او بیان ډیر توکی لری چي په لاندي توګه یې لوستلای شو:

۱- د اطناب صنعت دی چي دا کلمه (ربنا) یې پنځه ځلی مکرر راوړی دی او غرض ځینی په تضرع کښي مبالغه او زیاتوب دی.

۲- پدې قول د الله تعالی کښي چي فرمایي: (السموات ....والارض) د طباق صنعت دی لکه چي په (اللیل والنهار) او (قیاماً وقعوداً) او (ذکر ....وانثی) کښي هم دغه صنعت لیدل کیږي.

۳- پدې کلام کښي چي فرمایي: (ما وعدتنا علی رسلک) ایجاز بالحذف دی ځکه اصل یې:
(ما وعدتنا علی السنة رسلک) دی او همدا رنګه نو موړی صنعت پدی قول کښي چي (ویتفکرون في خلق السموات والارض ربنا) یعنی (قائلین ربنا).

۴- مغایر جناس پدې کلماتو کښي: (آمنوا فامنا) او (عمل عامل) او (منادیاً ینادي) راغلی دی.

۵- (لایات لاولی الالباب) دلته تنکیر د تفخیم لپاره دي او لام د(انّ) په خبر کښي د تأکید د زیاتوالی لپاره راغلی دی.

۶- پدی قول د الله کښي چي فرمایي: (لایغرنک تقلب الذین کفروا) تقلب یې له تګ ځخه استعاره کړی هغه تګ چي ځوک یې د مکاسبو د موندلو لپاره کوی. والله اعلم.

فوائد او ګټې:

لومړی فائده: ځرنګه چي الله د مخلوق په هکله تفکر ځانګړی کړ دادې لپاره چي د خالق په شان کښي له تفکر کولو ځخه منع راغلی ده حدیث شریف دی چي فرمایي: (په مخلوق (جوړښت) کښي سوچ کوئ او په خالق کښي یې مه کوئ ځکه تاسو د الله ورقدر نشئ پیژندلای) او دا پدی چي د الله د ذات اوصفاتو کنه او (حقیقت) ته ځوک رسیدلای نشی ځینو علماوو ویلی دی چي د الله په ذات کښي ذکر کونکی داسی دی لکه ځوک چي د لمر سترګي ته ګوری (چي ورته کتلای نشی) ځکه د الله په مثل هیڅ شی نشته.

دوهمه فائده: حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها له داسی ترټولو عجیبه حال احواله د رسول الله ﷺ ځخه وپوښتله شوه چي هغې لیدلی دی هغې وویل ټول حالات عجیبه وو یوه شپه زما په نوبت چي راغی تن یې زماله تن سره ولګیداو بیا یې وویل: ما پریږدئ چي دخپل خدای عزوجل عبادت وکړم ما ورته وویل والله ستاله نژدیوالی ستاله خوښی سره مینه لرم نو هغه داوبوزي ته چي په کور کښي وو ورغی اودس یې تازه کړ ډیري او به یې تو یې نکړي بیا ودرید ولمونځ یې ګذارل او په ژړاشو تر ځو چي ډیره یې لمده شوه بیا یې سجده وکړه او دومره یې وژړل چي مځکه لمده شوه بیا په اړخ پریوت هم یې ژړل آن تر دې چي بلال راغی او د سهار د لمانځه اذان یې کاوو ورته ویل یې: یارسول الله ﷺ ولي ژاړې؟ الله خو ستا پخواني او راتلونکي ګناهونه بخښلي دي رسول الله ﷺ ورته وویل: (ویحک) ای بلاله څه شی به ماله ژړا ځخه رامنع کړی په تحقیق سره په ما باندی نن شپه دا آیتونه نازل شوی دی (ان في خلق السموات والارض) د آیتونو تر پایه بیا یې وویل! افسوس د هغه چا په حال چي دا ولولي او تفکر پکښي ونکړي. [1]

د الله ﷺ په مرسته د آل عمران سورت تفسیر بشپړ شو

[1] - اخرجه ابن مردویه ابن کثیر ۱ / ۳۴۸ وګوره.

## دالنسآء سورت مدني دی اویوسل شپږآیتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

دالنسآء سورت مدني داوږدو سورتونوڅخه یوسورت دی اوپه شرعی احکامو مشتمل دی هغه چې دمسلمانانوکورنۍ اوبهرنی چارې تنظیموی داسورت لکه نورمدنی سورتونه تشریعی پلوته پاملرنه کوی اوپدې کښې هغه مهم اموړچې په میرمنوپسی تعلق لري راغلی اوهمدارازدکورنۍ ، کهول ، دولت اوټولنی مهم احکام پکښې بیان شوی دی خوترټولوستره برخه یې هغه احکام دی چې دښځوسره سروکارلري نوځکه یې سورت النسآء بولی !

دامبارک سورت دښځواویتیمانوحقوق راوړی په ځانګړی توګه دیتیمونجونوحقوق هغوئ چې داولیاوو- اوصیاووپه غیږکښې اوسی نوددوئ حقونه یې په میراث ، کسب اوکار اووادہ کولوکښې خوندی ساتلی اودجاهلیت له ناروادودونواوظالمونیمه خوارواجونوڅخه یې ژغورلی دی.

* دمیرمنوموضوع داسي څیړي چې کرامت یې ساتي احترام یې پرځای کوي هغې ته دهغې حقوق کوم چې الله ﷻ ورکړی لکه ولور(مهر ) میراث اوښه ګوذاره اوچال چلندورسپاری.

* لکه چې په تفصیلی توګه دمیراث احکام په عادلانه ډول ذکرکوی هغه چې نیاو(عدالت ) اومساوات پکښې وي اوداسي دناروا(محرماتو ) ښځوکه دنسب له خواوی یادرضاع ( تی رودلو) له خواوی بیان کوي.

* په دی سورت کښې دزوجیت ( میره ارتینی ) تعلقات تنظیمیږي اوداسي څرګندوي چې دایوازی دتن اوجسد علاقه نه بلکی دانسانیت تړون اوعلاقه ده اودغه مهر(ولور) مزدوری اوبیه نه بلکی هسی سوغات دی چې دمیني مزي مرغلین کويٌ اوملګرتیاتل ترتله اوزړونه پیوندوی.

* بیادمیره حق په ښځه اودښځې حق په میره په ګوته کوی اوداسی لارې چارې میره ته وربښي چې دکورنی ژوند دسمون لپاره ورته اړتیاوی کله چې ددوئ ترمنځ اختلاف اومشکلات راپیښ شی دمیرړ دقوام معناسپړی چې داهغه قوام دی هغه چې دراعی اورعیت ترمنځ وي.

* وروسته بیادکورنۍ له دائرې څخه دټولنی دائرې ته لیږدی اوپه هرڅه کښې داحسان اونیکۍ ماړبینه کوی اوداڅرګندوی چې داحسان بنسټ یودبله ترحم ، نصیحت اوپیرزوینه ، امانت اوپه عدالت راکړه ورکړه ده ترڅوچې ټولنه په قوی ارکانواومظبوتوتاداوونوودریږي.

* له کورنی سمون اواصلاح څخه وروسته آیتونه دبهرنی امن لپاره له دښمن سره دمقابلې داستعداد او تیاری نیولولپاره حکم کوي هغه چې دامت استقراراوسوکالی پکښې نغښتي ده.

* بیاوروسته دمعاملاتوځینی قوانین دمسلمانانواودوستواویادښمنودولتونوترمنځ تاکی.

* وریسی دجهاد امرصادروی چې په منافقینوباندی ټینګ اوسخت ګوذارونه وشي څکه دوئ داسی دبدمرغې بوټي اودشرارت زړی دی چې تري ویره په کارده لکه چې په سورت کښې ددوئ خطرونه اودوکې ، چلونه بیان شوی دی.

* همداسی یې داهل کتابوخطراتولوري ته مسلمانان متوجه کړی چې په خاصه توګه دیهودانودریزیې دانبیاووکراموپه وړاندی جوت کړی دی.

* په پای کښې سورت د نصاراوو گمراهې ته کتنه کوی چې د حضرت مسیح ﷺ په هکله یې د رلوده اوتردی اندازې یې دهغه په باب لاره ورکه کړی وه چې یوځل یې عبادت پیل او بیا یې په دار ځړولو(١)
په داسی حال کښې چې دوئ ایمان درلودهغه الله او دعبادت وړدی او د تثلیث آند او فکرهم د دوئ اختراع وه نو لکه بت پرست مشرکان داسی وگرزیدل او دا آیتونه دوئ ته له دې گمراهیو ځخه دراگرزیدلو بلنه ورکوی تر څو د توحید صافه ستره سپیڅلې عقیده خپله کړی الله پاک فرمایې:

﴿وَلَا تَقُولُوا ثَلَٰثَةٌ ۚ انتَهُوا خَيْرًا لَّكُمْ ۚ إِنَّمَا اللَّهُ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ [النساء : ١٧١]

## تسمیه او نومول یې:

دغه سورت ځرنگه چې زیاتره برخه یې د ښځواړوند احکام رااخلی چې په داسی زیات ډول په نوروسورتونو کښې نشته ځکه نو ورته د (سورة النسآء الکبری ) نوم ورکړل شوی او دا دهغه سورت په مقابل کښې چې (سورة النسآء الصغری )یې بولی او هغه بیا هغه سورت دی چې په قرآنکریم کښې د (الطلاق ) په سورت پیژندل کیږي.

## الله تعالی فرمایې:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَٰحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَآءً ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ
الَّذِي تَسَآءَلُونَ بِهِۦ وَالْأَرْحَامَ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا ﴿١﴾ وَءَاتُوا الْيَتَٰمَىٰٓ أَمْوَٰلَهُمْ ۖ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ ۖ وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَهُمْ
إِلَىٰٓ أَمْوَٰلِكُمْ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا ﴿٢﴾ وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَٰمَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَ ۖ
فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَٰحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُمْ ۚ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰٓ أَلَّا تَعُولُوا ﴿٣﴾ وَءَاتُوا النِّسَآءَ صَدُقَٰتِهِنَّ نِحْلَةً ۚ فَإِن طِبْنَ لَكُمْ عَن
شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيٓـًٔا مَّرِيٓـًٔا ﴿٤﴾ وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ أَمْوَٰلَكُمُ الَّتِي جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ قِيَٰمًا وَارْزُقُوهُمْ فِيهَا وَاكْسُوهُمْ وَقُولُوا لَهُمْ
قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴿٥﴾ وَابْتَلُوا الْيَتَٰمَىٰ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ فَإِنْ ءَانَسْتُم مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوٓا إِلَيْهِمْ أَمْوَٰلَهُمْ ۖ وَلَا تَأْكُلُوهَآ إِسْرَافًا
وَبِدَارًا أَن يَكْبَرُوا ۚ وَمَن كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۖ وَمَن كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ ۚ فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ أَمْوَٰلَهُمْ فَأَشْهِدُوا
عَلَيْهِمْ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ حَسِيبًا ﴿٦﴾ لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَٰلِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَآءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَٰلِدَانِ
وَالْأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ ۚ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴿٧﴾ وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَٰمَىٰ وَالْمَسَٰكِينُ
فَارْزُقُوهُم مِّنْهُ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴿٨﴾ وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَٰفًا خَافُوا عَلَيْهِمْ
فَلْيَتَّقُوا اللَّهَ وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ﴿٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَٰلَ الْيَتَٰمَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ
وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ﴿١٠﴾ ﴾ النساء ١-١٠

١- یعنی دوئ هم داسی گومان کاووچې په دار شواو رښتیا وایې چې: (اذا صُلب الاله بفعل عبدٍ يهودیٍ فما هذا الاله ؟).

## لغتونه:

(بث) تيت اوخپاره کړی دی لکه (وزرابي مبثوثة) - (الارحام) د(رحم )جمع ده په اصل کښې دجنين (ماشوم )دموريه نس کښې هستوګنځي ته وايي اوبيايي په خپلوي باندی اطلاق کيږي (رقيبا) ساتونکی خبردارپه اعمالو(حوبا) ګناه او(تعولوا) چې تاسوبه ظلم وکړئ مائل به شی ويل کيږي. (عال الميزان ) کله چې يوه خواکوږشي اوهمدارنګه ( عال الحاکم ) معنی داچې ظلم يې وکړ (صدقاتهن) ددوی مهرونه صداق مهرته وايي اوصدقة جمع ده (نحلة) سوغات (السفهاء) کم عقله خلک اودلته مراد ځيني مبذرين دی (آنستم) که موولیدې اولکه چې ويل کيږي ( آنس الشئ ) يعنی ويې ليدل شي (بدارا) په تلوارسره يعنی چې په تلوارسره يې خوری چې مباداييتيم لوئ شی اوبيا به يې ورته سپاري. (سديدا) له سدادڅخه اخيستل شوی اواستقامت ته وايي.

### دنزول سبب يې:

أ : عروة ابن الزبير وايي چې هغه له حضرت عائشې رضی الله عنهاڅخه ددې آيت په هکله چې فرمايي (وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ) [النساء: ۳ ] وپوښتل هغې ورته وويل: ای دخورزويه ! داهغه يتيمه ده چې دولی په تصرف کښې وی اوله هغه سره يې مال ګډوی دهغې مال اوجمال يې خوښيږی غواړی چې په نکاح يې واخلی پرته له دی چې بشپړولور په عدل سره ورته ورسوی لکه چې بل څوک يې دې ته ورکوی نوله دې څخه دوئ منع شول ترڅو عدل وکړی اوهغوئ (يتيمو ) ته خپل ولورپه ښه شان ورسوي نودوئ ته امروشوچې له دې يتيمې پرته نورې ښځې چې زړه يې غواړی په نکاح واخلی اوخلګوله رسول الله ﷺ څخه ددې آيت له نزول څخه وروسته فتوی غوښتله چې بيا داآيت نازل شو: ﴿ وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ ﴾.[ النساء : ۱۲۷] دآيت ترپايه.(۱).

ب : مقاتل بن حيان روايت کوی چې دغطفان دقبيلې يوتن چې (مرثدبن زيد ) نوميده دخپل يتيم وراره مال ورته پاتې ووهغه يې وخوړدا آيت نازل شو: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا ﴾ [النساء:۱۰] (۲) دآيت ترپايه.

### تفسير:

الله تبارک وتعالی دالنسآء سورت په يوعام خطاب چې ټول بشريت ته متوجه دی پيل کړهغوئ يې ديوه الله عبادت ته راوبلل هغه چې هيڅ شريک نلری اودوئ ته يې تنبيه ورکړه چې الله دقدرت اووحدانيت خاوندی ويې فرمايل: (﴿ يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ ﴾ ای خلګو(تل ) وويريږئ له ربه خپله ! هغه رب چې پيدايې کړئ تاسی له نفسه يوه نه چې آدم ﷺ دی )(وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا ) او پيدايې کړه له دې نفسه جوړه دده (چې حواء ده ) ﴿ وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً ﴾ اوخپاره يې کړل له دی

---

۱- اخرجه البخاری ومسلم

۲- القرطبی ۵ / ۵۳ واسباب النزول ص ۸۳.

دوارونه سرى اوښځې د يرې ﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ ﴾ اووويريږئ له الله هغه چې سوال کوئ تاسي يوتربله (په نامه ) دده سره (يعنى واياست چې (اسألك بالله) اويآداچې( انشدك بالله ) اووويريږئ له پريکولودخپلوئ ښځه ﴿ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا ﴾ بيشکه الله دى پرتاسى ساتونکى) ستاسوپرټولو احوالو او اعمالو خبرداردي ) هو، الله پاک دلته دآيت په پيل اوپای کښې په تقوى اوپرهيزګارى ټينګاروکړددې لپاره چې دالله هغه سترحق ته چې په بندګانويې لرى اشاره وشى اوداچې الله تعالى په آيت کښې تقوى اوصله رحمې ديوځاى راوړلوارشادوفرمايه ترڅودغې انسانې رابطې په اهميت دلالت وکړې چې خلک ټول له يو اصل څخه پيدا شوى او دوى په انسانيت اونسب کښې سره ورونه دى که خلک پدى وپوهيږې نوبه په امن اونيکمرغى کښې ژوندسباکوى اوداسى ويرانونکې اوخونړى جنګونه به چې وچ اولامده سوزوې واړه اوزاړه وژنې له سره نکوى بياالله تعالى ديتيمانو يادونه کوې اوهسى توصيه کوى چې له دوئ سره بايد غوره چال چلندوشي اودمالونويې سمه پالنه اوساتنه وکړل شى فرمايې: ﴿ وَآتُوا الْيَتَامَى أَمْوَالَهُمْ ﴾ اوورکړئ يتيمانوته مالونه ددوئ ( کله چې دوئ بلوغ ته ورسيږې) ﴿ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ ﴾ اوبدل مه اخلئ تاسى خبيث (حرام ) ديتيمانومال ) په طيب (حلال ستاسومال) باندى ﴿ وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ ﴾ ( اومه خورئ تاسى مالونه ددوئ له مالونو خپلوسره ) يعنى ديتيمانومالونه له خپلوسره مه ګډوئ چې بيايې يوځاى خورئ (﴿ إِنَّهُ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا ﴾ بيشکه داديتيمانو مال خوړل لويه ګناه ده) ځکه چې يتيم پاملرنې اوحمايت ته اړوى هغه نوبيکسه بې سراوسامانه اوضعيف دى اوپه ضعيف باندى ظلم کول دالله ﷻ په نزدستره ګناه ده وروسته له دى بيا الله تعالى ديتيمې نجلى له په نکاح کولوڅخه په داسى حال کښې چې مهر مثل ورنکړې دځان ژغورلوارشادفرمايې : ﴿ وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ ﴾ ( اوکه وويريږئ تاسى چې وبه نکړى شئ تاسي عدل اوانصاف په حق ديتيمانوکښې ) يعنى که چيرې له يوستاسى سره په کورکښې ستاسي ترپالنې لاندې يتيمه وې اوتاسي پدې ويريږئ چې مهرمثل به ورنکړى شي نود هغې له نکاح کولوڅخه تيرشئ نورې ښځې په نکاح واخلئ الله خودرباندى تنګسيانه دى راوړې(۱) ﴿ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ ﴾ نوپه نکاح سره واخلئ تاسى (نورې ) هغه ښځې چې خوښې وى تاسى ته له ښځودوه دوه اودرې درې اوڅلورڅلور ﴿ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً ﴾ نوکه بيا وويريږئ چې عدل به ونکړى شئ دښځو تر منځ کښې په نفقه نوبت اونوروکښې نويوه ( اصيله )کوئ ﴿ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ﴾ ياهغه مينځې چې مالکان شوى دى دهغوښى لاسونه ستاسي ( يعنى چې تاسى يې مالکان ياست ځکه چې دهغوئ هغه حقوق نشته کوم چې داصيلوښځووى. ﴿ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَلَّا تَعُولُوا ﴾ دانکاح بنه نژدى ده دې ته چې ظلم ونکړئ

۱- طبري داغوره کړى چې معنايې کوې که تاسوويريدلاى چې ديتيمانوپه هکله به عدل ونکړاى شى اودارنګه ويريدلاى چې دميرمنوترمنځ به عدل ونکړاى شى خوکوم تفسيرچې موږ وليکل دابن کثيرغوره اوله شان نزول سره سم دى.

تاسو (یعنی نکاح دیوې اصیلې یا د دېرو وینځو) ﴿ وَءَاتُوا۟ ٱلنِّسَآءَ صَدُقَـٰتِهِنَّ نِحْلَةً ﴾ او ورکوئ تاسی ښځو لره مهرونه ددوئ په ورکړه دخوښې سره ﴿ فَإِن طِبْنَ لَكُمْ عَن شَىْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا ﴾ نو که راضی شوی دا (ښځې) تاسی ته په (ښښنه) له کوم شی له دې (مهر په خوشالی) دنفس خپل ﴿ فَكُلُوهُ هَنِيٓـًٔا مَّرِيٓـًٔا ﴾ نو خورئ تاسی دغه شي پداسی حال کښی چې خوندور، حلال ، بی ضرره وي ﴿ وَلَا تُؤْتُوا۟ ٱلسُّفَهَآءَ أَمْوَٰلَكُمُ ٱلَّتِى جَعَلَ ٱللَّهُ لَكُمْ قِيَـٰمًا ﴾ (اومه ورکوئ تاسی مبذرینو یتیمانو ته مالونه خپل هغه چې گرځولی دی الله دپاره ستاسی سبب دگذارې) چې دوئ بې ضائع کړي ابن عباس ﷺ وایې چې سفهاء عبارت له ماشومانو او ښځو څخه دی او طبری وایې چې: سفیه ته خپل مال مه ورکوه هغه چې په بیکاره تدبیر سره یې بایلی هغه که ماشوم وی او که سړی نارینه وی او که ښځه وی ([1]) ﴿ وَٱرْزُقُوهُمْ فِيهَا وَٱكْسُوهُمْ ﴾ او روزې ورکوي دوئ ته په دی مالونو کښی او جامې ورکوئ دوئ ته ﴿ وَقُولُوا۟ لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴾ او ووایئ دوئ ته خبره نیکه (پسته خوږه او معقوله) یعنی دوئ ته تسلی ورکړئ چې دا گردستاسی مال دی کله چې پوهان هوښیاران شي دا تاسو ته در کول کیږي ﴿ وَٱبْتَلُوا۟ ٱلْيَتَـٰمَىٰ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغُوا۟ ٱلنِّكَاحَ ﴾ او وازموېئ تاسی یتیمان تر هغه پوري کله چې ورسیږي دوئ (حدد) نکاح ته (چې د بلوغ وخت دی) ﴿ فَإِنْ ءَانَسْتُم مِّنْهُمْ رُشْدًا فَٱدْفَعُوٓا۟ إِلَيْهِمْ أَمْوَٰلَهُمْ ﴾ نو که وموندہ تاسی له هغونه هوښیاری نو وسپارئ تاسی دوئ ته مالونه دهغوئ) یعنی که تاسو دهغوئ صلاح د دین او مال په هکله ولیده نو سمدستې ددوئ مالونه وروسپارئ ﴿ وَلَا تَأْكُلُوهَآ إِسْرَافًا وَبِدَارًا أَن يَكْبَرُوا۟ ﴾ (او مه خورئ تاسی دا دیتیمانو ناپوهانو مالونه) په اسراف او تلوار سره) یعنی له ضرورت څخه زیات ، په تلوار سره پداسی شان چې تاسی غوارئ تر پخوا له دی چې دوئ لوئ شي او ستاسی له لاسونو څخه یې وکاږي هغه وخورئ او ولگوئ ﴿ وَمَن كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ﴾ (او هر څوک چې وی مالدار نو ښایې چې ځان پاک وساتي (دیتیمانو له مالونو) او په وصایت باندی مزدوري وانخلی ﴿ وَمَن كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِٱلْمَعْرُوفِ ﴾ او هر څوک چې وی فقیر نو خوري دی له دی مال څخه په معروف (له دستور سره سم دمزدوري په اندازه) سره ﴿ فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ أَمْوَٰلَهُمْ فَأَشْهِدُوا۟ عَلَيْهِمْ ﴾ نو کله چې ورکړئ (وسپارئ) تاسی دغو یتیمانو ته) مالونه ددوئ نو شاهدان ونیسئ تاسی پر دوئ باندی) تر څو چې بیا انکارونکړي چې تسلیم کړی یې نه دی ﴿ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ حَسِيبًا ﴾ او کافی دی الله پدې حال کښې چې ښه حساب کونکي دی بیا الله تبارک وتعالی د نارینه او ښځینه د میراث برخه بیانوي فرمایې: ﴿ لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ ٱلْوَٰلِدَانِ وَٱلْأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَآءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ ٱلْوَٰلِدَانِ وَٱلْأَقْرَبُونَ ﴾ (شته نارینه وو لره (هم لوئ وي که واړه) نصیب ددوئ له هغه ماله چې پرې ایښي وی مور او پلار او خپلوانو او شته ښځو لره (هم

---

[1]- الطبری ۷/ ۵۲۵ .

لويې دي اوكه وړې ) برخه له هغه ماله چې پرې ايښي وي مور او پلار او خپلوانو ) د دوئ تول دوراثت په حق كښې سره برابردی كه څه هم داندازې توپيرېې شته دنزول سبب يې داووچې ځينی عربو به ښځو او ماشومانو ته دميراث حق نه وركاوو او ويل به يې چې هغه څوك دميراث حق لری چې جګړه كوی او كورنۍ ژغوری نو الله دجاهليت حكم په پورتنی آيت باطل كړ ﴿ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ ﴾ هغه چې لږ وي له دې ماله او كه ډيروی ﴿ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴾ نصيب مقرركړی شوي دی (له طرفه دالله نه ) يعنی داسی برخه چې الله پخپل مبين كتاب كښی په عادلانه شريعت كښې ټاكلی ده ﴿ وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينُ فَارْزُقُوهُم مِّنْهُ ﴾ او كله چې حاضرشی په وخت دويش (دميراث كښې ) خاوندان دخپلوئ ( چې وارثان نه وي ) او يتيمان او مسكينان وی نو روزي وركوئ تاسی دوئ لره له هغه (ميراثه ) ددوئ دخوشحالولو لپاره ﴿ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴾ ( او ووايئ تاسی دوئ ته خبره معروفه ( خوږه معقوله ) يعنی داچې ورته ووايا ست داديتيمانو ماشومانو مال دی او موږ يې مالكان نه يو ﴿ وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا خَافُوا عَلَيْهِمْ ﴾ او ودې ويريږي ( ديتيمانو پرضياع ) هغه وصيان كه پريږدي دوئ پس له ( مرګه ) خپل اولادضعيفان (نو ) ويريږي به دوئ په دغو ( اولادونو چې وروسته له موږ به دوئ هم داسی شی ) يعنی ای وصي خپل واړه ماشومان وروسته له خپله مرګه په نظركښی ولره له دې يتيمانو سره هغسی معامله وكړه څرنګه چې ته دخپلو اولادونو لپاره انتظاركوي ﴿ فَلْيَتَّقُوا اللَّهَ وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ﴾ ( پس ودې ويريږي دوي له الله ﷻ څخه او ودې وايې دوئ ته خبره سمه خوږه ) يعنی دوئ ته دې داسی دمهربانی څخه ډكه پسته خبره لكه چې خپلو اولادونو ته يې كوي وكړي ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا ﴾ بيشكه هغه كسان چې دوئ خوری مالونه ديتيمانو په ظلم سره ( بې له شرعی اذنه ) ﴿ إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ﴾ خبره داده چې دوئ خوري په ( ډكو ) ګيډو خپلو سره اور ) يعنی دغه مال به ددوئ په ګيډو كښې دقيامت په ورځ بليږي ﴿ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ﴾ او ژر به ورسيږي (ننه به وځي ) دوئ او رسخت ته هغه سترد سعير اورته.

بلاغت:

پدې آيتونو كښې دبلاغت او بيان چې كومې ښكلاوي دي په لاندې ډول بيانيږي:

۱- دطباق صنعت چې پدی هردوو كلماتو كښې جلاجلا شته دی لكه (غنيا او فقيرا) او (قل او كثر) او (رجالاء ونساء) او (الخبيث - الطيب) ترمنځ.

۲- مغايرجناس لكه په: (دفعتم ... فادفعوا) او (قولوا قولا) كښې.

۳- داطناب صنعت چې فرمايې: (فادفعوا إليهم اموالهم ...فاذا دفعتم إليهم اموالهم) او پدی كلام كښې (للرجال نصيب مما ترک الوالدان... وللنساء نصيب مما ترک الوالدان والاقربون) .

۴ - مرسل مجاز چې فرمايي: (وآتوا اليتامى أموالهم) چې دادماكان په اعتبارسره دی يعنی دوئ چې پخوا يتيمان وو اوهمدارنګه پدې كلام كښې چې (ياكلون في بطونهم نارا) څكه داپه اعتبار دمايؤل اليه سره لكه چې بل ځای راځي: (اني أراني اعصر خمرا) يعنی زه وينم نچوړكوم دانګورو چې بيا شراب جوړشی.

۵ - لطيفه مقابله لكه چې الله تعالى فرمايي: (ومن كان غنيا فليستعفف ومن كان فقيرا فلياكل بالمعروف).

۶ - دايجاز صنعت لكه چې په ځوځايونوكښې راځي دمثال په توګه: (رجالاً كثيرا ونساء) يعنی ونسآء كثيرات.

فوائداوګټې:

لومړی فائده: څرنګه چې الله پاک دامبارک سورت پدی كلماتوپيل كړی چې دوئ يې له يوه نفس څخه پيداكړی پدې كښې ډيره ښايسته سريزه اودمطلع براعت دی چې پدې سورت كښې دنكاح احكام، دميراث اوزوجيت حقوق اودمصاهرت، رضاع (تي رودلو) اونورشرعي حكمونه خونديې دي.

دوهمه فائده: غالباكله چې خطاب په (ياآيهاالناس) سره وي هغه دكافرانواوياكافرانواونورو لپاره وي نووروسته ځينی دوحدانيت اوربوبيت دلائل راځي لكه: (يا ايها الناس اعبدوا ربكم) او (يا ايها الناس ان وعد الله حق) اوكله چې خطاب دمؤمنانولپاره وي نووروسته ځينی دنعمتونويادونه وی لكه چې دلته راغلی دغه خبره دالبحر المحيط مؤلف ليكلی ده[1]

دريمه فائده: څرنګه چې دګيډو ذكر يې كړی اوخوراک خوارومروپه ګيډه كښې وی دادتأكيداومبالغې لپاره لكه چې څوک وايي: (ابصرت بعينى وسمعت بأذنى) اولكه داالله تعالى داقول چې: (ذلكم قولكم بافواهكم).

څلورمه فائده: ديتيمانودمالونونسبت الله پا ک اوصياووته وكړ. اوسره له دې چې داخوديتيمانوخپل مالونه دی ددې لپاره چې دامت ترمنځ دتكافل تنبيه وكړی اوداچې ددوئ څونه وشی چې ويې ساتی اوضائع يې نكړی څكه دناپوه مبذر په ضائع كولوكښې دګردي ټولنې لپاره ضرروی.

دزوجاتودتعدد په هكله څوخبرې:

دزوجاتودتعدد(څووالی) مسئله دژوندانه دپيښواړتياده داهسی تشريعي حكم نه دی چې يوازی اسلام راوړی بلكه اسلام هغه په داسی حال كښې موندلی چې قيوداوشرائط يې نه درلودل اوبه غيرانسانی توګه دود اورواج ووهغه يې په ښكلی ډول وپييل اودځينو نابيره حالاتولپاره يې درمل كړهغه حالات چې ټولنه يې په رنځ رنځوره وه په حقيقت كښې دتعدد رواوالی اوتشريع داسلام له مفاخرواوياړونوڅخه يووياړدی څكه ويې كړای شو هغه اجتماعي مشكله مسئله حل كړی كومه چې ترټولومشكلاتوسخته اوستونزمنه وه چې امتونه اوټولنې ورباندی اخته اوپرانستل يې ورته ممكن نه ووټولنه دټلې په شان ده چې بايددواړه پلې يې سره برابرې وی نو ناورين به هلته پيښ شی كله چې

---

[1] - البحرالمحيط ۳ / ۱۵۳.

دښځوشمیردنارینه وودوه چنده شي هلته به څه کوي ؟ آیاښځه به دنکاح له نعمت څخه محروموي اوهغوئ ته به داحق نه ورکوي چې مورجوړه شي ؟ څودرزالت اوزنالاره ونیسي ؟ اوکه داچې داغوته ستونزه په داسې ډول وسپړل شي چې دمیرمنې کرامت دکورنۍ سپیځلتیااود ټولنې سموالی پکښې رادبره شي زمونږ ددې خبرې دشاهدترټولونژدې مثال دادی چې په جرمنی کښې له دوهمې نړیوالې جګړې څخه وروسته پیښ شول هلته ترنارینه وودښځوشمیرخوځله زیات شواودهرزلمي په مقابل کښې درې نجونې وی داهسې داجتماعي حالت یواختلال وونودقانون جوړونکي به ددې مواجهت اومخامخوالی څنګه کوی ؟ اسلام همدغه ستونزه پخپل عالمشمول قانون اوتشریع سره حل کړې خو مسیحیت لاس ترزنې ورته حیران ناست دی چې نه پرمخ اونه شاته درومي اوروپایي سړی ته دهغه دین دتعدد اجازه نه ورکوی خوهغه دخپل ځان لپاره دسلګونوښځواشنایي اوملګرتوب دپلیتې لپاره رواګني پلار خپله پیغله لورله خپل آشناسره وینی اووربانديي خوشحالیږي آن تردې چې ددوئ دواړولپاره ټولی ددوئ دخوښی آرامی لارې چارې پخپله سموی اوداګواکی منل شوی دوداورواج ګرځیدلی دی چې دولتونه یې دې ته اړکړي چې ددواړوجنسونونارروا اړیکې په قانوني توګه ومنی هغوئ داخلاقی انحطاط دروازه دواړه پلې پرانستلی ده اودوئ ګواکی داصل په توګه دزوجاتوتعددته غاړه ایښی خوداشنایي اواندیوالی ترپردې لاندې هغه چې حقیقی زواج دی خولیکل شوی نه وی اونارینه کولای شی هغه ښځه هروخت چې وغواړي وشړی پرته له دې چې هیڅ حق اوحقوق ورکړي ددوئ ترمنځ یوازې دتن اوشهوت اړیکې وی نه دکورنۍ اونه هم دمیړه اومیرمنې علاقه اوتړاو، نودتعجب خبره داده چې یوڅوک دزوجاتوتعددپه حلاله توګه منع کوي اوپه حرامه توګه ورته اجازه ورکوي چې په نتیجه کې یې میرمن اوښځه دانسانیت له مرتبې څخه حیوانیت ته راښکته کړې ده

الله تعالی فرمایي:

﴿ يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ ۖ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ ۚ فَإِن كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۖ وَإِن
كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ ۚ وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ إِن كَانَ لَهُ وَلَدٌ ۚ فَإِن لَّمْ يَكُن لَّهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ
أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ الثُّلُثُ ۚ فَإِن كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ ۚ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِي بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۗ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ
أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا ۚ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١١﴾ ۞ وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ
إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ ۚ فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ ۚ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَا أَوْ
دَيْنٍ ۚ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَإِن كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُم
مِّن بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۗ وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَالَةً أَوِ امْرَأَةٌ وَلَهُ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ فَلِكُلِّ
وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ فَإِن كَانُوا أَكْثَرَ مِن ذَٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَاءُ فِي الثُّلُثِ ۚ مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَىٰ بِهَا أَوْ دَيْنٍ
غَيْرَ مُضَارٍّ ۚ وَصِيَّةً مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴿١٢﴾ تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ ۚ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ

جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ وَذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴿۱۳﴾ وَمَن يَعْصِ
ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَتَعَدَّ حُدُودَهُۥ يُدْخِلْهُ نَارًا خَٰلِدًا فِيهَا وَلَهُۥ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿۱۴﴾ ﴾ النساء: ۱۱ - ۱۴

## مناسبت او تړاو:

کله چې په تېرو آيتونو کښې الله ﷻ ديتيمانو په هلکه توصيه وفرمايله او په ترغ کښې يې نورخپلوان هم په اجمالي توګه بيان کړل نو دلته يې په تفصيل سره دميراث احکام ذکر کړل تر څو د هغه اجمال لپاره توضيح شی نو يې داولادونو که زامن وی او که لونې برخې وټاکلی بيا يې دپلرونو او ميندو وروسته دميړونو او ميرمنو او بيا يې دخويندو او ورونو ونډې او برخې يادې کړی.

## لغتونه:

(يوصيكم) وصيت کوی تاسو ته په يوشی باندی عهد او حکم کولو ته وصيت وايي او ترامر دايصاء لفظ په اهتمام کولو کښې ښه ابلغ دی څکه هغه په يوشی باندی دحرص غوښتنې او تمسک ته وايي (فريضة) حق ، فرض اولازم ته وايي (كلالة) له (كل) اخستل شوی چې ضعف اوناتوانی ته وايي او په شرعی اصطلاح کښې هغه چاته ويل کيږي چې نه اولاد لري او نه پلار او مور يعنی نه اصل لری او نه هم فرع (حدود الله) دالله ﷻ احکام او ټاکلی فرائض چې تجاوز او تېری ورڅخه نارواوی.

## دنزول سبب:

روايت کاوه شي چې د(سعدبن ربيع ) ميرمن سره له دوولونورسول الله ﷺ ته راغله او رته ويل يې: يارسول الله ﷺ دغه دواړه دسعدلونې دی څوک چې له تاسره داحدغزاته تللی اوهلته شهيد شوددې نجونو تره ( کاکا ) ټول مال خپل يوړ او هيڅ شی يې دوئ ته نه پرېښودا ودوئ له ماله پرته هيڅوک هم په نکاح نه اخلی رسول الله ﷺ ورته وويل : الله به پدې هکله فيصله کوی او پدې هکله دميراث داآيت نازل شوچې : (يوصيكم الله في اولادكم) دآيت ترپايه نورسول الله ﷺ يې تره ته څوک ورواستول چې دسعدلونوته دوه ثلثه او مورته يې اتمه برخه ميراث ورکړی او چې پاتی شی هغه يې ستاده[1]

## تفسير:

﴿ يُوصِيكُمُ ٱللَّهُ فِيٓ أَوْلَٰدِكُمْ ﴾ حکم کوي تاسی ته الله ( په حق دميراث )د اولاد ستاسی کښې يعنی امر په عدل کولو کوي دميراث په هکله ﴿ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ ٱلْأُنثَيَيْنِ ﴾ شته نارينه وولره ( له ميراثه ) په مثل دبرخې ددووښځو ﴿ فَإِن كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ ٱثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ﴾ نو که وودااولاد (خالص ) ښځې پورته له دووڅخه ( يادوې ) نو(شته ) دوئ لره دوه ثلثه ( دوه دريمې ) له هغه ماله چې پری ايښي وي (مړي) ﴿ وَإِن كَانَتْ وَٰحِدَةً فَلَهَا ٱلنِّصْفُ ﴾ او که وه دالوريوه نوهغې لره نيمايې ( دترکې دی ) الله لومړي داولاد په ميراث بيانولو پيل کړی او بيا يې مورا و پلار راوړی څکه دميراث په باب فرع تراصل دمخه ده نوالله وفرمايل ! ﴿ وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَٰحِدٍ مِّنْهُمَا ٱلسُّدُسُ ﴾ اوشته مورا و پلار دده لره لپاره دهريوه له دی

---

[1]- رواه ابوداؤد والترمذی.

دواړو شپږمه برخه (مِمَّا تَرَكَ) له هغه ماله چې پرې ایښی وی (مړی) ﴿إِن كَانَ لَهُۥ وَلَدٌ فَلِأُمِّهِ ٱلسُّدُسُ﴾ كه وی مړی لره (ذوذات) نروي اوكه ښځه ځكه دولد په دواړو باندی اطلاق كيداى شي )نو مور لره يي شپږمه ده ﴿فَإِن لَّمْ يَكُن لَّهُۥ وَلَدٌ وَوَرِثَهُۥٓ أَبَوَاهُ﴾ نو كه نه وي ده لره (ذوذات) حال دا چې ميراث اخلی له ده څخه مور او پلار دده (او يا ورسره يو دزوجينو) دده ﴿فَلِأُمِّهِ ٱلثُّلُثُ﴾ نو ده مور دده لره ثلث (دريمه) او پاتی نوريې دپلار ده (وروسته له فرض ديو دزوجينو) څخه (فَإِن كَانَ لَهُۥٓ إِخْوَةٌ﴾ نو كه وي مړی لره وروڼه (يا خويندي) نو شته مور دده لره شپږمه (برخه) او نور ټول يې دپلار دی او حكمت پكښې دادی چې پلار دوئ ته په نفقه وركولو مكلف دی او مور دغه مكلفيت نه لری ځكه نو دپلار اړتيا دمال لپاره ترمور زياته ده ﴿مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِى بِهَآ أَوْ دَيْنٍ﴾ (پس له اداكولو دوصيت څخه چې وصيت وكړی مړی په هغه سره يا پس (له اداكولو) ددين څخه ) يعنی دوارثانو حق وروسته له تنفيذ دوصيت او پريكولو دپور دمړي څخه ده تركه تردي دمخه نه ويشل كيږي ﴿ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا فَرِيضَةً مِّنَ ٱللَّهِ﴾ (پلرونه ستاسی او زامن ستاسی نه پوهيږئ تاسی چې كوم يو له دوئ زيات نژدی دی تاسی ته له جهته دنفعې (دابرخې فرض شوي دی ) مقرره برخه له (جانبه ) دالله ﷻ ) يعنی الله پخپله دميراث ويش كړی دی او له خپل علم او حكمت سره سم يې فرائض ټاكلی او داسی ويش يې فرمايلی چې پكښې منفعت او مصلحت نغښتی دی كه چېری يې بشرته ويش ورسپارلی وای نو به هغوئ نه پوهيدل چې كوم يو ډير نفع رسوونكي دی نو به يې پرته له حكمته مالونه ويشلی وو ځكه نو وروسته الله وفرمايل: ﴿إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ بيشكه چې الله دی ښه عالم (په مصالحو دخلكو ) او ښه حكمت والا دی (په هغه څه كښی چې شريعت او فرض كړی يې دي بيا الله ﷻ دميرمنی او ميړه ميراث داسی بيانوی: ﴿وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَٰجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ﴾ او شته تاسی ته نيمايې دهغه مال چې پری ايښي دی ښځو ستاسی كه نه وی دی ښځو لره ذوذات (له تاسی او يا له بل ميړه څخه ) ﴿فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ ٱلرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ﴾ نو كه وی دی ښځو لره ذوذات نو تاسی لره شته څلورمه برخه له هغه ماله چې پری ايښي وي دي ښځو او په ولد پسی ولد الابن هم په اجماع سره ملحق ګڼل شوي دي ﴿مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَآ أَوْ دَيْنٍ﴾ پس له اداكولو دوصيت نه چې وصيت كړی وی دی ښځو په هغه سره يا پس له اداكولو دپور څخه (چې وي پردوئ ) ﴿وَلَهُنَّ ٱلرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّكُمْ وَلَدٌ﴾ (او شته دی ښځو لره څلورمه برخه له هغه ماله چې پرې ايښي وی تاسی كه نه وی تاسی لره ذوذوات ) يعنی ستاسو ميرمنو ته كه يوه وي او كه زياتې دميراث څلورمه برخه ده هله چې ستاسو له دوئ څخه او يا له نورو ښځو څخه ذوذات (اولاد ) نه وی ﴿فَإِن كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ ٱلثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُم﴾ نو كه وو تاسی لره ذوذات نو دي ښځو لره شته اتمه برخه له هغه ماله چې پری ايښي دی تاسی ﴿مِنۢ بَعْدِ

وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَآ أَوْ دَيْنٍۗ ) پس له اداکولو دوصیت چې وصیت کوئ تاسی په هغه سره یاپس له اداکولو ددین ( چې وی پرتاسو ) اوداهرځلی دوصیت اوپورتکراراوړل ددوئ دواړوپه هکله دزیاتی پاملرنې اواعتناء لپاره دی چې ښکاره خبره ده ﴿ وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَٰلَةً ﴾ اوکه وویوسړی چې میراث تری وړل کیږی ،کلاله ( بی ولده بی والده ) اولیری خپلوان یې میراث وړی (أَوِ ٱمْرَأَةٌ) او یاښځه وه داپه ( رجل )عطف اومعناداچې یامیرمن وه کلاله چې اولادیې نه درلوداونه یې هم پلارمور درلودل ﴿ وَلَهُۥٓ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ ﴾ حال داچې وی ( دی مړي لره ) یواخیافی وروراویا(اخیافی ) خور ﴿ فَلِكُلِّ وَٰحِدٍ مِّنْهُمَا ٱلسُّدُسُۚ ﴾ پس شته هریوه لره له دی اخیافی وروراوخورنه سدس ( ښپږمه برخه دترکې ) یعنی اخیافی وروراواخیافی خور ته شپږمه ونډه ده ﴿ فَإِن كَانُوٓا۟ أَكْثَرَ مِن ذَٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِى ٱلثُّلُثِۚ ﴾ نوکه وو( وروڼه خویندی ( کلالې له موره ) زیات له دغه ( یوورور اوخورڅخه ) دوئ ګردسره شریکان دی په ثلث کښې ) یعنی نارینه اوښځینه یې په میراث کښی برابره ونډه لری په البحرالمحیط کښې وایې چې پدی باندی اجماع راغلی چې مرادله وروڼوڅخه پدی آیت کښې اخیافی ( له موره ) وروڼه دی ﴿ مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَىٰ بِهَآ أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَآرٍّ ﴾ وروسته له اداکولو دوصیت ) چې وصیت کولی شی په هغه سره یاپس ( له اداکولود ) پور( دین ) په دی حال کښې چې ( نوروته ) نقصان ونه رسوی (پدی وصیت کښې ) یعنی که چېری وصیت دمصلحت لپاره وونه دضررلپاره چې وارثانوته پیښ کړل شی لنډه داچې د(ثلث ) په چوکاټ کښې دی وصیت کولای شي څکه رسول الله ﷺ فرمایې: ( الثلث والثلث کثیر). ﴿ وَصِيَّةً مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ وصیت کوئ الله تاسی ته وصیت له (جانبه دالله) ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴾ اوالله ښه عالم دی ( په هغه څه چې رواکړی یې دی ) اوډیرتحمل والا دی ژرترژره هغه چاته چې له حکمه یې غاړه وغړوی ژرسزانه ورکوی ﴿ تِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ ﴾ داحکمونه دالله دی یعنی دغه ذکرشوی (دیتیمانو ) میراثونو وصیت او د دین تېرشوی حکمونه دالله شریعت اوهغه حدونه دی چې الله تاکلی څوبندګان له هغوئ څخه تجاوزونکړی اوپرهغوئ عمل وکړی ﴿ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ يُدْخِلْهُ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ اوهرڅوک چې ومنی حکم دالله او د رسول دده نوداخل به کړی الله دغه ( مطیع په هسی ) جنتونو کښې چې بهیږي لاندی له ونواوماڼیو د هغه ویالې ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾ همیشه به وی پدې جنتونو کښې ﴿ وَذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴾ اودانتوتل جنت ته مرادموندل ډیرلوی دی. ﴿ وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَتَعَدَّ حُدُودَهُۥ ﴾ اوهرڅوک چې نافرمانې کوي دالله اورسول دده اووزی له حدوده دالله ( چې طاعات دی) ﴿ يُدْخِلْهُ نَارًا خَٰلِدًا فِيهَا ﴾ نوداخل به کړی ( الله ) دغه متجاوزاورته چې همیشه به وی (دی ) په دغه اوردوزخ کښې ( هیڅکله به څینی ونه وزی ) ﴿ وَلَهُۥ

عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴾ اوشته ده لره عذاب ډیرسپک کونکي یعنی داسی سخت عذاب چې سپکاوی ذلت اورسوایې به پکښې وی.

**بلاغت:**

ددې آیتونوپه ترځ کښې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوي شته دادي:

۱ - دطباق صنعت پدې کلماتوکښې چې : (الذکر و الانثی) او(ومن یطع ...ومن یعص)او (اباءکم وابناءوکم).

۲ - اطناب پدې کلام کښې چې: (من بعد وصیة توصون بها او دین) او(من بعد وصیة یوصین بها اودین) اوفائده یې دهغه حکم دتنفیذ په هکله چې ذکرشو تاکید دی.

۳ - اشتقاقی جناس لکه: (وصیة یوصی) په کلماتو کښې.

۴ - مبالغه پدې صفاتو کښې لکه (علیم، حلیم).

فائده: ځینوعلماوودالله ﷻ له دې کلماتوڅخه چې فرمایې (یوصیکم الله في اولادکم) دااستنباط کړی دی چې الله ترمور زیات مهربانه دی ځکه چې دوئ ته یې داولادونوپه هکله وصیت فرمایلی دی اوددی تائیدهغه حدیث شریف هم کوي چې رسول الله ﷺ فرمایې: ( الله أرحم بعباده من هذه بولدها ) یعنی الله تردې مور چې په زوئ مهربانه ده خورازیات رحم لرونکي اومهربان دی پخپلو بندګانو باندی.

**تنبیه:**

ددې وجه چې نارینه دوې برخې دمیراث دخویندوپه پرتله اخلی داده چې هغه دنفقې تکالیف په غاړه لری اودکسب اوکار، سوداګرې ستونزی ورله غاړی دی نودهغه لګښتونه زیات اوندې یې درنې دی مال ته زیاته اړتیالری.(۱)

**الله تعالی فرمایې:**

﴿وَالَّتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِن نِّسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِّنكُمْ فَإِن شَهِدُوا فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي
الْبُيُوتِ حَتَّىٰ يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ أَوْ يَجْعَلَ اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا ﴿١٥﴾ وَاللَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنكُمْ فَآذُوهُمَا فَإِن تَابَا
وَأَصْلَحَا فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا إِنَّ اللَّهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿١٦﴾ إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ
يَتُوبُونَ مِن قَرِيبٍ فَأُولَٰئِكَ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١٧﴾ وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ
السَّيِّئَاتِ حَتَّىٰ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآنَ وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَٰئِكَ أَعْتَدْنَا
لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٨﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا
آتَيْتُمُوهُنَّ إِلَّا أَن يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ

۱- زمونږ دهغه کتاب چې نوم یې دی «المواریث فی الشریعة الاسلامیة» ۱۸ مخ وګوری.

اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا ﴿١٩﴾ وَإِنْ أَرَدتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ وَءَاتَيْتُمْ إِحْدَىٰهُنَّ قِنطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْـًٔا أَتَأْخُذُونَهُۥ بُهْتَٰنًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴿٢٠﴾ وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُۥ وَقَدْ أَفْضَىٰ بَعْضُكُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ وَأَخَذْنَ مِنكُم مِّيثَٰقًا غَلِيظًا ﴿٢١﴾ ﴾ النساء: ۱۵ - ۲۱

مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله تعالی د نارینه او ښځو په نکاح او میراث کښې احکام بیان کړل نو یې د حدودو احکام هم د دوئ په هکله راوړل او بیا وروسته یې د جاهلیت له دودونو او رواجونو څخه وویرول چې په ښځو به یې ظلمونه کول او دهغوئ ولوړونه به یې خوړل او ورسره به یې انسانې سپیځلې او سوتره چال چلند نه کاوو.

لغتونه:

(اللاتي) هغه ښځې دا کلمه (اللاتي) د اللتي جمع او له قیاس پرته راځي (الفاحشة) بدکارته وايي او دلته ځینې مراد زناده (اللذان) د (الذی تثنیه ده) (التوبة) په اصل کښې رجوع ته وايي خو حقیقت یې دیوچتې کار په کولو پښیمانی څرګندول دی (کرها) دکاف په زبر سره (کره) د زور او (جبر) په معناده او دکاف په پیښ سره بیا مشقت او سختی ته وایې لکه (حملته امه كُرها) (تعضلوهن) منع کوي دوئ ویل کیږي چې (عضل المرأة) کله چې یې له میړه کولو راو ګرځوی (بهتانا) ظلم ته ویل کیږي اصل یې له بهت څخه اخستل شوی او هغه دروغو ته وایې چې په چاپسې وتړل شی هغه ورته هک پک حیران پاتې شی (افضی) د رسیدلو په معنا دي اصل یې له فضا څخه اخستل شوی او هغه وسعت او پراخې ته وایې (میثاقاً غلیظاً) ټینګ پند او محکم ترون او عهد هغه چې د نکاح عقد دی.

د نزول سبب:

روایت کیږي چې د جاهلیت په وخت کښې داسې دود او رواج وو کله چې به یو څوک مړ شو او میرمن به یې پاتې شوه نو زوی به یې چې له دغې ښځې به نه وو او یا ولې به یې راغی او په ښځه به یې جامه ور وغورزوله او د مال په شان به یې په میراث کښې ورله که به یې زړه شو نو به یې په لومړنی ولوریه نکاح واخیسته او که نه بل چاته به یې په نکاح ورکړه او ولوربه یې پخپله ترګوتو کړ الله ﷻ داآیت نازل کړ: (یاایها الذین امنوا لایحل لکم ان ترثوا النساء کرها) .[1]

تفسیر:

﴿ وَٱلَّٰتِي يَأۡتِينَ ٱلۡفَٰحِشَةَ مِن نِّسَآئِكُمۡ فَٱسۡتَشۡهِدُواْ عَلَيۡهِنَّ أَرۡبَعَةٗ مِّنكُمۡ ﴾ او هغه (میرمنې) ښځې چې راځي فاحشه (د زنا قبیح کارته) له ښځوستاسې نو شاهدان وغواړی پر دوئ باندی څلورتنه له تاسې مسلمانانو نه (چې احرار وي) ﴿ فَإِن شَهِدُواْ فَأَمۡسِكُوهُنَّ فِي ٱلۡبُيُوتِ ﴾ نو که شاهدی وویله ((شاهدانو پر زنا) نو بندی کړی تاسی دا (ښځې) په کوټو کښې. ﴿ حَتَّىٰ يَتَوَفَّىٰهُنَّ ٱلۡمَوۡتُ ﴾ ترڅو چې وفاتې

[1] - زاد المسیر ۲ / ۳۹

کاندی دوئ (مرګ ) یعنی ترمرګه پوري بېي بندی وساتئ ﴿ أَوْ يَجْعَلَ ٱللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا ﴾ اویاوګرځوي (مقررکړی ) الله دوئ لره کومه لاره د(خلاصی له بنده ) ابن کثیر وايې چې داسلام په پیل کښې داحکم وو چې کله به په ښځې باندی د زنا تور دعادلو شاهدانو په ګواهي ثابت شونوبه هغه په کوټه کښې بندی کولای شوای ترڅوبه مړه کیدله تردې چې الله تعالی سورت النور رانازل کړنوبیاداحکم درجم اوجلد په احکامومنسوخ کړی شو. ﴿ وَٱلَّذَانِ يَأْتِيَٰنِهَا مِنكُمْ ﴾ اوهغه دواړه چې راځي دي ( کارته ) له تاسی څخه مرادپه دې سره زانی نارینه اوزانیه ښځه ده اودتغلیب په ډول په پورتنی شکل ذکرشوي ﴿ فَـَٔاذُوهُمَا ﴾ نوایذاء ورسوئ دوئ ته ( په ترتلوبدوویلواووهلوتکولوسره )﴿ فَإِن تَابَا وَأَصْلَحَا فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَآ ﴾ نوکه توبه وویستله دې دواړو اواصلاح کړ دواړو ( عمل خپل ) نوځنګ وکړئ تاسي له دې دواړونه (ضرر مه ورته رسوئ ) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴾ بیشکه چې الله دی ښه توبه قبلونکي ډیر رحم والا, امام فخر رازی ( رحمه الله ) وايې بندی کول په خونه کښې یې دښځې په هکله وفرمایل اوایذاء یې دنارینه وولپاره ځکه ښځه هغه وخت دزناپه قبیح عمل اخته کیږي چې له کورنه بهر راووزي کله چې په کوټه کښې دننی بنده شي نوددغه معصیت جرړې وایستل شوي اونارینه خوپه کورکښې بندیدلای نشی ځکه هغه دژوندانه دارتیاواواولادونودنفقې پیداکولولپاره بهروتلوته اړدی ځکه نوددوئ دواړوجزاګانومختلفی وټاکلی شوي (۱)﴿ إِنَّمَا ٱلتَّوْبَةُ عَلَى ٱللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ ٱلسُّوٓءَ بِجَهَٰلَةٍ ﴾ بیشکه (قبول) دتوبې په الله ( دوفاله مخې ضروری شی ) دي دپاره دهغوکسانوچې کوي دوئ ناکاره عمل په ناپوهې سره ) یعنی هغه توبه چې الله ﷻ یې منل په ځان لیکلی داده چې له هغه فعل څخه چې په ناپوهې ترسره شوی وي اوددې وروسته بیااندازه لګول شوی وي چې داناکاره عمل اوعاقبت یې بدی وروسته ورباندې پښیمانې څرګنده شوي اوځینی رجوع ترسره شوی وي. ﴿ ثُمَّ يَتُوبُونَ مِن قَرِيبٍ ﴾ (بیاتوبه وباسي دوئ په نژدې زمانه کښې ) یعنی مخکې ترناڅاپه مرګ راتلو ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ يَتُوبُ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ ﴾ نودغه کسان قبلوي به الله توبه ددوئ ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾ ( اودی الله ښه عالم ښه حکمت والا ) یعنی الله ښه عالم دي پخپل مخلوق اوښه حکمت والادی په شریعت ټاکلو کښې ﴿ وَلَيْسَتِ ٱلتَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ حَتَّىٰٓ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ قَالَ إِنِّى تُبْتُ ٱلْـَٰٔنَ ﴾ اونشته ( وعده قبلول ) دتوبې لپاره دهغوکسانوچې ګناهونه کوي ترهغوپوري چې راحاضرشی دوئ ته (اسباب د مرګ نووایې چې بیشکه ماتوبه وایسته اوس, ځکه دغه دمظطرتوبه ده اوهغه نه منل کیږي (۲)

۱- التفسیرالکبیرللرازی ۹ / ۲۳۵.

۲- شهید سید قطب رحمه الله وايې چې دغه دمجبورتوبه ده هغه چې طغیان اوسرغړونی یومخ ایزه ډوب کړی وي ګناهونویې خواوشااحاطه کړي وي دادهغه چاتوبه ده چې دده لپاره نوردګناه کولووخت موجودنه وی اونه نوردیغاوت لپاره ځای لری داتوبه الله ﷻ ځکه نه قبلوي چې دزړه له اصلاح څخه نه وی نه دده دژوند اوطبیعت په اصلاح دلالت کوي او نه یې هم لاره بدله شوي وي.

اوپه حدیث شریف کښی راځي چې الله دبنده توبه ترهغوپورې قبلوي څوپې ساپه ستوني کښی غرغره نشی ﴿ وَلَا ٱلَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ ﴾ ( اونه قبلیږي توبه دهغه چاچې دوئ مره شی حال داچې دوئ کافران وي ) یعنی دهغوکسانوچې کافران دی هم هغه وخت توبه نه قبلیږي چې دوئ دځنګدن په وخت کښی ایمان راوړل غواړي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴾ دغه کسان ( چې دکفرپه حالت کښې مري اوپه عین غرغره کښې توبه کوي ) تیارکړی دی مونږدوئ ته عذاب دردناک ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَرِثُوا۟ ٱلنِّسَآءَ كَرْهًا ﴾ اي هغوکسانوچې ایمان يې راوړی دی (اي مؤمنانو ) نه دی حلال تاسی لره دا(کار) چې په میراث به اخلئ تاسی ښځې په زورسره یعنی تاسوته داحلاله نه ده چې ښځې لکه مال غوندی یوله بله په میراث باندی ولیږدوئ اوپه زوريې دمیړه له مرګ وروسته په میراث واخلئ ابن عباس ﷺ وايي : په جاهلیت کښی داسی دودووچې کله به یوڅوک مړشونوخپلوانوبه يې ښځه پخپله خوښه یاپه نکاح اخیستله اویابه يې بل ته په نکاح ورکوله اویابه يې بیخي له نکاح کولورامنع کوله .(۱) ﴿ وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا۟ بِبَعْضِ مَآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ ﴾ اوّمه منع کوئ تاسی دابنځې) لپاره ددی چې یوسئ ( تری واخلئ ) ځینې دهغه مال چې تاسی دوئ ته ورکړی دی ( په مهرکښې ) یعني تاسوته داروانه دی چې دوئ له نکاح کولوڅخه راوګرزوئ اویاپې دومره په تنګ کړئ چې هغوئ مجبورې شی ځینی له ورکړل شوي مال څخه چې په مهر( ولور ) کښې موورکړی بیرته درکړي ﴿ إِلَّآ أَن يَأْتِينَ بِفَٰحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ﴾ ( مګرچې راشي دوئ فاحشه ښکاره ته ) یعنی زنا وکړی اوابن عباس ﷺ وايې چې ﴿ فاحشة مبينة ) نشوزاوعصیان ته وايې ﴿ وَعَاشِرُوهُنَّ بِٱلْمَعْرُوفِ ﴾ نوګذران کوئ تاسی (اي میړو ) له دوئ (ښځو ) سره په نیکې طریقې سره ) یعنی له دوئ سره په پسته ژبه اوښه ډول چال چلند کوئ ﴿ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰٓ أَن تَكْرَهُوا۟ شَيْـًٔا وَيَجْعَلَ ٱللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا ﴾ ( پس که خوښې نه وی ستاسی دابنځې نو( صبروکړئ ) ښایې چې نه به خوښوئ تاسی یوشي حال داچې ګرځولی به وی الله په دی کښې ډیرخیر) یعنی که دابنځې ستاسی ناخوښه وي اوتاسی ددوئ ملګرتیانه غوښته نوتاسی صبروکړئ اوهمدغسی ورسره احسان کوئ کیدای شی الله پاک له دوئ څخه تاسوته صالح اولاددرکړی چې ستاسوسترګې ورباندی یخې شي اوډیروخت په یوناخوښه څیزکښې زښته زیات خیراوبرکت نغښتی وي په صحیح حدیث شریف کښی راځي چې : مسلمان نارینه له خپلې مسلمانې ښځې سره هیڅ وخت هم بغض اوعداوت نه کوي که یوخوي يې خوښ نه وی بل يې خوښ وي بیاالله پاک له دې څخه چې دښځې له ولور(مهر) څخه وروسته له طلاقه څه ځینی اخلی منع وفرمایله چې ﴿ وَإِنْ أَرَدتُّمُ ٱسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ ﴾ اوکه اراده وکړه تاسی اي میړونود بدلولودیوې ښځې په ځای دبلې ښځې ( چې یوه طلاقه اوبله نکاح کړئ ) ﴿ وَءَاتَيْتُمْ إِحْدَىٰهُنَّ قِنطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا۟ مِنْهُ شَيْـًٔا ﴾ حال داچې ورکړي دې تاسی یوې ته ددوئ ډیرمال ( په مهرکښې هم ) نومه اخلئ تاسی ( اي میړونوبیرته ) له هغه مال نه هیڅ

---

۱- القرطبی ۹۴/۵.

شي د( فلاتأخذوامنه شيئا ) معناداده چې هيڅ څيني مه اخلئ که څه هم ډيرلږوي ﴿ أَتَأْخُذُونَهُۥ بُهْتَٰنًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴾ آيا اخلئ به تاسي دغه ( مال ) په ناحقه اوپه ګناه ښکاره سره ( ظاهره ظلم سره ) دلته استفهام انکاري دی يعنی آياتاسويې په باطله توګه اوظلم تري اخلئ ؟ ! ﴿ وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُۥ وَقَدْ أَفْضَىٰ بَعْضُكُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ ﴾ اوڅرنګه به اخلئ تاسی هغه مال حال داچې په تحقيق سره رسيدلی دی څينی له تاسی څينونوروته يعنی تاسوپه دوئ باندی دزوجيت په معاشرت سره خونداخستی دی ﴿ وَأَخَذْنَ مِنكُم مِّيثَٰقًا غَلِيظًا ﴾ اواخستی دی ( ښځو ) له تاسی نه عهدکلک ( چې هغه دنکاح عقددی مجاهدوايې چې ( ميثاق غليظ ) دنکاح عقدته وايې اوپه حديث شريف کښی راځي:

دښځوپه هکله له الله نه وويريږئ ځکه تاسودوئ دالله په امانت کښی اخيستی دی اوددوئ فروج مودالله په حکم څانته حلال کړی دی (۱)

بلاغت: پدی آيتونو کښې چې دبيان اودبديع کومې ښکلاوی شته په لنډډول يې داسی ليکو:

۱- عقلی مجازپدې قول کښی: (يتوفاهن الموت) اومرادخودادی چې الله اوياملائکې دی چې ددوئ روح اخلی.

۲- استعاره پدې کلام کښې (واخذن منکم ميثاقاً غليظا) چې دلته يې دشرعي عقدلپاره دميثاق کلمه استعاره کړی ده.

۳- مغايرجناس پدې کلماتو کښې: (فان تابا...توابا) او (کرهتموهن ... ان تکرهوا) .

۴ - دامرپه هکله دتاکيداوتفخيم لپاره مبالغه لکه چې فرمايې : (وآتيتم احداهن قنطارا) چې دامرلپاره په تعظيم اومبالغې دلالت کوي.

فائده:

الله پاک له جماع نه د(افضاء) په لفظ کنايه راوړی چې فرمايې : (وقد افضى بعضكم الى بعض) ترڅومسلمانانوته لوړادب وروښيې ابن عباس ﷺ وايې چې ( افضاء) پدی آيت کښې له جماع څخه عبارت دی الله کريم دی اوکنايه فرمايې.

تنبيه:

يوه ورځ حضرت عمرﷺ خطبه لوستله نوويې ويل : ای خلګودښځوپه مهرونواوولورونو کښې زياتوب مکوئ داکه چېری په دنياکښې دعزت نښه وای اويا په آخرت کښی دتقوی برخه وای نورسول الله ترتاسی پدی باب زيات حقداروو خوهغه تردوولس اوقيه زيات خپلو ميرمنوته ولور( مهر) نه دی ورکړی اونه يې دلوڼولپاره غوښتی دی يوه ښځه ورته راپورته شوه ويل يې : ای عمره الله يې موږته راکوی اوته موځښی محروموي !؟ الله ﷻ فرمايې:

(وآتيتم احداهن قنطارا فلا تاخذوا منه شيئاً) عمرﷺ وويل : ښځه سم وايې عُمرخطاشو.(۲)

۱- اخرجه مسلم.

۲- الکشاف ۱/ ۳۷۹

الله تعالی فرمایي:

﴿ وَلَا تَنكِحُواْ مَا نَكَحَ ءَابَآؤُكُم مِّنَ ٱلنِّسَآءِ إِلَّا مَا قَدۡ سَلَفَۚ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً وَمَقۡتًا وَسَآءَ
سَبِيلًا (۲۲) حُرِّمَتۡ عَلَيۡكُمۡ أُمَّهَٰتُكُمۡ وَبَنَاتُكُمۡ وَأَخَوَٰتُكُمۡ وَعَمَّٰتُكُمۡ وَخَٰلَٰتُكُمۡ وَبَنَاتُ ٱلۡأَخِ وَبَنَاتُ
ٱلۡأُخۡتِ وَأُمَّهَٰتُكُمُ ٱلَّٰتِيٓ أَرۡضَعۡنَكُمۡ وَأَخَوَٰتُكُم مِّنَ ٱلرَّضَٰعَةِ وَأُمَّهَٰتُ نِسَآئِكُمۡ وَرَبَٰٓئِبُكُمُ ٱلَّٰتِي
فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ ٱلَّٰتِي دَخَلۡتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمۡ تَكُونُواْ دَخَلۡتُم بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ
وَحَلَٰٓئِلُ أَبۡنَآئِكُمُ ٱلَّذِينَ مِنۡ أَصۡلَٰبِكُمۡ وَأَن تَجۡمَعُواْ بَيۡنَ ٱلۡأُخۡتَيۡنِ إِلَّا مَا قَدۡ سَلَفَۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ
غَفُورًا رَّحِيمًا (۲۳) ۞ وَٱلۡمُحۡصَنَٰتُ مِنَ ٱلنِّسَآءِ إِلَّا مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُكُمۡۖ كِتَٰبَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡۚ وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ
ذَٰلِكُمۡ أَن تَبۡتَغُواْ بِأَمۡوَٰلِكُم مُّحۡصِنِينَ غَيۡرَ مُسَٰفِحِينَۚ فَمَا ٱسۡتَمۡتَعۡتُم بِهِۦ مِنۡهُنَّ فَـَٔاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ فَرِيضَةٗۚ وَلَا
جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ فِيمَا تَرَٰضَيۡتُم بِهِۦ مِنۢ بَعۡدِ ٱلۡفَرِيضَةِۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمٗا (۲۴) وَمَن لَّمۡ يَسۡتَطِعۡ مِنكُمۡ طَوۡلًا أَن
يَنكِحَ ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ ٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ فَمِن مَّا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُكُم مِّن فَتَيَٰتِكُمُ ٱلۡمُؤۡمِنَٰتِۚ وَٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِإِيمَٰنِكُمۚ بَعۡضُكُم
مِّنۢ بَعۡضٖۚ فَٱنكِحُوهُنَّ بِإِذۡنِ أَهۡلِهِنَّ وَءَاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ بِٱلۡمَعۡرُوفِ مُحۡصَنَٰتٍ غَيۡرَ مُسَٰفِحَٰتٖ وَلَا مُتَّخِذَٰتِ أَخۡدَانٖۚ
فَإِذَآ أُحۡصِنَّ فَإِنۡ أَتَيۡنَ بِفَٰحِشَةٖ فَعَلَيۡهِنَّ نِصۡفُ مَا عَلَى ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ مِنَ ٱلۡعَذَابِۚ ذَٰلِكَ لِمَنۡ خَشِيَ ٱلۡعَنَتَ مِنكُمۡۚ
وَأَن تَصۡبِرُواْ خَيۡرٞ لَّكُمۡۗ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ (۲۵) يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمۡ وَيَهۡدِيَكُمۡ سُنَنَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ وَيَتُوبَ
عَلَيۡكُمۡۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٞ (۲۶) وَٱللَّهُ يُرِيدُ أَن يَتُوبَ عَلَيۡكُمۡ وَيُرِيدُ ٱلَّذِينَ يَتَّبِعُونَ ٱلشَّهَوَٰتِ أَن تَمِيلُواْ مَيۡلًا
عَظِيمٗا (۲۷) يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمۡۚ وَخُلِقَ ٱلۡإِنسَٰنُ ضَعِيفٗا (۲۸) يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَأۡكُلُوٓاْ أَمۡوَٰلَكُم
بَيۡنَكُم بِٱلۡبَٰطِلِ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٖ مِّنكُمۡۚ وَلَا تَقۡتُلُوٓاْ أَنفُسَكُمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُمۡ رَحِيمٗا (۲۹) وَمَن
يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ عُدۡوَٰنٗا وَظُلۡمٗا فَسَوۡفَ نُصۡلِيهِ نَارٗاۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا (۳۰) إِن تَجۡتَنِبُواْ كَبَآئِرَ مَا تُنۡهَوۡنَ
عَنۡهُ نُكَفِّرۡ عَنكُمۡ سَيِّـَٔاتِكُمۡ وَنُدۡخِلۡكُم مُّدۡخَلٗا كَرِيمٗا (۳۱) ﴾ النساء: ۲۲ – ۳۱

مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله پاک مسلمانانو ته ددوي له میرمنو سره دښه چال چلند توصیه وکړه او هغوئ ته یې له زیان رسولو څخه منع وفرمایله همداراز دوئ ته ورکړل شوي ولوربیرته څینی اخستل یې وغندل نو له دې وروسته یې دمحرماتو او ناروا ښځو هغوئ چې له دوئ سره نکاح کول د خپلوئ خسرګنی او تی ورکولو له کبله ناروا وي بیان کړل.

لغتونه:

(سلف) تېرشوی (مقتا) مقت هغه چاته چې بدکارکوي دسخت غضب کولو په معنی ده اوعربو به دهغې ښځې نکاح ته چې چابه دپلار منکوحه په نکاح اخستله دمقت نکاح ویله (ربائبکم) دربیبة جمع ده اودښځې هغې لورته رایې چې له بله میړه څخه یې لرې ځکه ربیبة ورته وایې چې دمیړه په څنګ کښې روزله کیږي (فلان فی حجرفلان ) کله چې یې هغه روزنه کوي ابوعبیده وایې چې فی (حجورکم)معنادا ده چې ستاسی په کورکښې وی (حلائل) د(حلیلة ) جمع ده اودمیرمنې ( زوجې ) په معناده ځکه یې حلیله بولې چې خپل میړه ته روا ده (محصنین) ساتونکی له زنا(مسافحین) له سفاح څخه ده اوزناته ویل کیږي په اصل کښې له (سفح) څخه اخستل شوی اوهغه تویولو ته وایې ځکه یې زنا ته سفاح وویل چې هغه پرته دشهوانی غریزې له مړولواونطفې تویولو بل مقصد نلري (طولاً) توان اوبډایې (اخدان) د(خدن) جمع ده اودښځې پټ آشنا او اندیوال ته وایې چې ورسره زناکوي (العنت) فجوراواصل یې ضرراوفساد ته ویل کیږي (سنن) دسنت جمع اولاري ته وایې (نصیله) مونږبه یې داخل کړو.

دنزول سبب:

أ – کله چې (ابوقیس ابن الاسلت)مړشو اودانصارو له ښوخلکوڅخه یوتن وونوقیس دده زوي دپلارماندینې ته په خپله د ځان لپاره دنکاح کولو پیغام واورول هغې ورته وویل زه دی زوي ګڼم اوزه له رسول الله ﷺ څخه پدې هکله پوښتنه کوم هغه ووچې رسول الله ﷺ ته راغله اودغه واقعه یې ورته بیان کړه نوالله ﷻ داآیت نازل کړ(ولاتنکحوا مانکح آباؤکم...) دآیت ترپایه([1] )

ب: ابوسعیدالخدري ﷺ وایې چې داوطاس په ورځ داسی مینځې زمونږ په لاس راغلی چې میړونه یې درلودل نومونږ ورسره جماع کول ناخوښه ګڼل اوله رسول الله ﷺ څخه موو پوښتل اوبیاداآیت نازل شو:(والمحصنت من النساء الا ماملکت ایمانکم...) (دآیت ترپایه ) نوبیامونږ حلالی وګڼلی.([2])

تفسیر:

﴿ وَلَا تَنكِحُوا۟ مَا نَكَحَ ءَابَآؤُكُم مِّنَ ٱلنِّسَآءِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ﴾ اومه اخلئ تاسی په نکاح سره هغه(ښځې ) چې نکاح کړی دی پلرونوستاسی مګر هغه چې پخواله دی تېرشوی دی (هغه ستاسو لپاره عفودی ) ﴿إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً وَمَقْتًا﴾ (بیشکه چې داکار) دی فاحش (ډیرناکاره ) اوډیر مبغوض (شرعی ) ته یعنی دغه نکاح خورازیاته بده ده چې په بدوالی کښی خپل وروستی سرحدته رسیدلی ځکه څرنګه له یوانسان سره ښایې چې دخپل پلار(ارتینه )میرمن ځان ته نکاح کړی او دپلار له مړینې دروسته یې خپله میرمن کړی ؟ حال داچې هغه یې دموریه شان ده . ﴿ وَسَآءَ سَبِيلًا ﴾ او بده ده دا(لاره) بیاوروسته له دی الله ﷻ دناروا ښځو بیان داسی فرمایې: ﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَٰتُكُمْ ﴾ (حرامې کړی شوی دی پرتاسی میندې ستاسی ) اودی ته نیاګانې ( جداتې ) دمورواو پلارله خواهم

---

[1] - القرطبی ۵ / ۱۰۴

[2] - اسباب النزول ص ۸۵.

ورگډيږي (وَبَنَاتُكُمْ ﴾ (اولوڼې ستاسې ) اواولادونه دلوڼو (لمسۍ) که څه هم ښکته وي ﴿ وَأَخَوَٰتُكُمْ ﴾ (اوخويندې ستاسې ) که له پلاره وي اوکه له موره ﴿ وَعَمَّٰتُكُمْ وَخَٰلَٰتُكُمْ ﴾ ( اوترورياني ستاسې ) يعنې ستاسې دپلرنواونيکه ګانو خويندې اوتورې ګانې ستاسې (خالې ) ﴿ وَبَنَاتُ ٱلْأَخِ وَبَنَاتُ ٱلْأُخْتِ ﴾ اولوڼې د ورور(وريرې ) اولوڼې دخور(خورځې )ستاسې اوددوئ په ډله کښې ددوئ لوڼې هم راځي دغه هغه حرامې شوی ښځې دی چې دنسب په لړۍ کښې راځي وروسته بيا الله پاک درضاع محرمې داسې بيانوي ﴿ وَأُمَّهَٰتُكُمُ ٱلَّٰتِيٓ أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَٰتُكُم مِّنَ ٱلرَّضَٰعَةِ ﴾ ( اوحرامې کړی شوی دی پر تاسې باندی ) ستاسې هغه ميندې چې تی يې درکړی وی تاسې ته اوخويندې ستاسې له جهته د(تی رودلو ) الله ﷻ رضاعت دنسب په منزلت وګرځاوو آن تردې چې تی ورکونکې ښځې ته لکه دنسب مور،مورويل کيږي يعنې داسې ورته ناروا کيږي لکه څرنګه چې ورته مور ناروا ده اوهمدا راز د رضاعت خور هماغسې ورته ناروا ده لکه سکنۍ خور په آيت شريف کښې درضاعت په حرمت کښې يوازې مورا وخور ذکر شول خو په نبوي احاديثو کښې داڅرګنده شوې چې درضاعت محرماتې هم اوه ډوله دی لکه دنسب غوندې يعنې رضاعی لور، ترور، تورېه ، وريره اوخورځه ګردې سره محرماتې دی او رسول الله ﷺ فرمايې : يحرم من الرضاع مايحرم من النسب.[1] يعنې له نسب څخه چې کومې ښځې حرامې دی همداسې له رضاع څخه هغوئ حرامې دی بيا د مصاهرې دحرمت بيان الله تعالی داسې فرمايې ﴿ وَأُمَّهَٰتُ نِسَآئِكُمْ ﴾ ( اوحرامې کړی شوی دی پر تاسې ) ميندې دښځوستاسې يعنې په مجر دعقد د نکاح کولو د نجلۍ دهغې مور په تاسې باندی حرامه ده که دخول کړی شوی وی اوکه نه.

﴿ وَرَبَٰٓئِبُكُمُ ٱلَّٰتِي فِي حُجُورِكُم ) ( اوپرکتيانې ستاسې هغه چې ستاسې په روزنه کښې دی ) يعنې ستاسو د ښځو هغه لوڼې چې تاسې يې روزنه کوې دحجر يادونه دلته قيد نه بلکه دغالب حالاتو لپاره راوړل شوې څکه غالبا نجونې له خپلې موره سره وی اودښځې ميره يې روزنه کوي ﴿ مِّن نِّسَآئِكُمُ ٱلَّٰتِي دَخَلْتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمْ تَكُونُوا۟ دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ ﴾ ( اوپيداشوی ) دی له ښځوستاسې هغه چې دخول ( مجامعت ) کړی وی تاسې له دوئ سره پس که نه وي تاسې چې دخول (مجامعت موکړی دي تاسې له دوئ سره نونشته هيڅ ګناه پرتاسې باندي (په نکاح دپرکتيو کښې) دلته په دخول باندی له جماع څخه کنايه راغلی يعنې هغه چې پردو ته مو ننی ايستلی وی ابن عباس ﷺ وايې چې معنايې داده : ای مؤمنانو که چېری تاسې ددوئ له ميندوسره دخول نه وي کړی اوتردخول له مخه موطلاقې کړی وي نوبيايې دلوڼو په نکاح کولو کښې کومه ګناه نشته ﴿ وَحَلَٰٓئِلُ أَبْنَآئِكُمُ ٱلَّذِينَ مِنْ أَصْلَٰبِكُمْ ﴾ ( اوحرامې کړی شوی دی پرتاسو ) ښځې دزامنو ستاسې هغه چې له شاګانو ستاسې پيدادي (اوحرامې کړی شوي دي پرتاسې دغه ) پرخلاف دهغو زامنو چې يوازی په خوله ستاسو زامن

---

[1] - اخرجه بخاری ومسلم

(متبنی ) بلل شوی وي دهغو زوجاتې په نکاح کولای شي . ﴿ وَأَن تَجْمَعُوا۟ بَيْنَ ٱلْأُخْتَيْنِ ﴾
(اوحرامي کړي شوی دی پرتاسو ) دغه چې جمع وکړئ په مينځ ددوو خويندوکښې ﴿ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ۗ ﴾
( مگرهغه چې په تحقيق پخواتېرى شوي دي ) د جاهليت په زمانه کښې په تحقيق سره الله دهغوئ ښښنه
درته کړی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ بيشکه چې الله دی ښه مغفرت کونکي ( دهغه چې
تېرشوي) ډيررحم والا دی (په بندګانوخپلو) ﴿ وَٱلْمُحْصَنَٰتُ مِنَ ٱلنِّسَآءِ إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُمْ ﴾
(اوحرامي کړی شوي دی پرتاسو ) ميرونې له ښځومګرهغه ميرونې چې مالکان شوي وی (دهغو) ښي
لاسونه ستاسی ) يعنی ددغونيول شوومينځونکاح ستاسی لپاره روا او له استبراء وروسته ورسره
جماع کول جائزدی څکه په (سبی ) نيولو سره دکافرعصمت شليږي ﴿ وَلَا تُمْسِكُوا۟ بِعِصَمِ ٱلْكَوَافِرِ ﴾ [ الممتحنة: ۱۰ ]
دادالله ﷻ قول دی ﴿ كِتَٰبَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ ۚ ﴾ ( مقررکيدل ددی حکم دی ) په کتاب دالله کښې په تاسی باندی،
يعنی دادالله فرض دی په تاسی باندی ﴿ وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ ذَٰلِكُمْ ﴾ اوحلالی کړی شوي دی تاسی ته
ګردي ښځې چې پرته له دوئ څخه دی ﴿ أَن تَبْتَغُوا۟ بِأَمْوَٰلِكُم مُّحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَٰفِحِينَ ﴾ (پدې شرط) چې
طلب وکړئ تاسی (دهغو) په مالونو خپلو(چې مهردی ) پدی حال کښې چې ساتونکي شي (دخپل دين
په نکاح سره) نه زناکونکي ﴿ فَمَا ٱسْتَمْتَعْتُم بِهِۦ مِنْهُنَّ فَـَٔاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ فَرِيضَةً ﴾ پس هرهغه ښځه چې
نفع واخيسته تاسی په هغې سره له دی (منکوحو ښځو) څخه نو ورکړئ تاسی دوئ ته مهرونه ددوئ په
داسی حال کښی چې فرض کړی شوی دی پرتاسودالله له لوري پدې قول سره ﴿ وَءَاتُوا۟ ٱلنِّسَآءَ صَدُقَٰتِهِنَّ نِحْلَةً ﴾
[ النساء: ۴] بياالله تعالی فرمايې: ﴿ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَٰضَيْتُم بِهِۦ مِنۢ بَعْدِ ٱلْفَرِيضَةِ ﴾ (اونشته ګناه
پرتاسی باندی ( اي ميرمنو اوښځو) په هغه شی کښې چې راضی شوی ياست تاسی په هغه باندی پس له
مقررولو دمهرڅخه يعنی پدی کښې ګناه نشته چې ښځه دخپل ولورڅخه يوڅه پخپله خوښه وغورځوی
لکه چې وايې: ﴿ فَإِن طِبْنَ لَكُمْ عَن شَىْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيٓـًٔا مَّرِيٓـًٔا ﴾[ النساء: ۴] ابن کثيروايې چې کله ته دهغې
لپاره ولوروټاکی خوهغه پخپله مرضی څه دروبښي نونه په تاګناه شته اونه په هغې باندی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ
كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾ بيشکه چې الله ښه عالم (دخلګوپه مصالحو ) اوډير حکمت والادی په
هغواحکاموکښې چې ددوئ لپاره يې تشريع ګرزوی ﴿ وَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنكُمْ طَوْلًا أَن يَنكِحَ
ٱلْمُحْصَنَٰتِ ٱلْمُؤْمِنَٰتِ فَمِن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُم ﴾ اوهغه څوک چې توان نلري له تاسی له جهته دغنادي
چې په نکاح واخلی اصيلې مؤمنې ښځې نو(په نکاح دی واخلی ) له هغوښځوچې مالکان شوی ښي
لاسونه ستاسی ﴿ مِّن فَتَيَٰتِكُمُ ٱلْمُؤْمِنَٰتِ ﴾ له هغووينځوستاسوچې مؤمنې وی ﴿ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَٰنِكُم ﴾
(اوالله ته ښه معلوم دی ايمان ستاسی ) داجمله معترضه ددي بيان لپاره ده چې دايمان په

معلومولوکښې ظاهري معرفت کفایت کوي او پټې خبري (غیب) یوازي الله ته معلومي دي ﴿ بَعْضُكُم مِّنۢ بَعْضٍ ﴾ ځینې ستاسی له ځینونورو یئ (یعنی ګرد دیوه پلار آدم اولاده یئ تو پدی مه شرمیږئ چې مینځه په نکاح اخلی ډیر ځله وینځه تر اصیلی ښځی غوره وی او په دې ددوئ دزړه ساتنه او دمینې لوربینه ده، بهتري په ایمان سره ده نه په نسب اوحسب سره ﴿ فَٱنكِحُوهُنَّ بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ ﴾ نو په نکاح واخلئ دوئ (وینځی دبل چا) په اذن دخاوندانو ددوئ ﴿ وَءَاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ بِٱلْمَعْرُوفِ ﴾ (او ورکړئ تاسی دوئ ته مهرونه ددوئ په معروف (سم له دستوره په نیکه وجه) سره) یعنی په خوښه رضاولورونه ورکړئ له هغه څخه څه مه کموئ چې ددوئ سپکاوي وشی چې دامینځې مملوکي دي. ﴿ مُحْصَنَٰتٍ غَيْرَ مُسَٰفِحَٰتٍ ﴾ چې وی دوئ عفیفي ساتلي شوي له زناچې نه وي په ښکاره زناکونکي ﴿ وَلَا مُتَّخِذَٰتِ أَخْدَانٍ ﴾ او نه وي نیونکي دپټویارانو په زناکولوکښې) ابن عباس ﷺ وایي چې (خدن) دښځې هغه اشنا ته وایي چې په پټه ورسره زناکوی نو الله دڅرګند واو پټوفواحشو څخه منع وفرمایله(١) ﴿ فَإِذَآ أُحْصِنَّ فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَٰحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى ٱلْمُحْصَنَٰتِ مِنَ ٱلْعَذَابِ ﴾ نو کله چې میړوښې (واده) کړی شی دوئ پس که راتله وکړه دوئ په فاحشه (زنا) سره نو ده په دوئ باندی نیم دهغه چې په اصیلو ښځو باندی وي له عذاب ﴿ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ ٱلْعَنَتَ مِنكُمْ وَأَن تَصْبِرُوا۟ خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ (دا (په نکاح اخیستل دمینځو) دپاره دهغه چادي چې ویریږي له ضرره د(زنا) له تاسی نه) او داچې صبروکړي له مینځوغوره دی تاسی ته) یعنی ستاسوصبرددوئ له نکاح څخه بهتر اوافضل دی څو ولد مریی پیدا نشی او په حدیث شریف کښی راځي: څوک چې غواړی الله ته پاک سپیځلی ورشی نواصیلی ښځې دی په نکاح واخلی.(٢) ﴿ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ او الله ښه مغفرت کونکي دی ډیررحم والادی ﴿ يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ ﴾ اراده لری الله چې بیان کړی تاسی ته (شرعی احکام) اوداموروومصلحتونه ﴿ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ ﴾ او وښیئ تاسی ته لاره دهغه کسانو چې پخواله تاسی وو له انبیاووا وصالحینو څخه چې تاسو یې په لاره ولاړشئ ﴿ وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ ﴾ او قبوله کړئ توبه دتاسی په هغو ګناهونو کښې چې له محارمو څخه موکړی دی ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ او الله ښه عالم دی ښه حکمت والادی. دخلکوپه احوالو خبردار دی دحکمت خاوند دی پخپله تشریع کښې ددوئ لپاره ﴿ وَٱللَّهُ يُرِيدُ أَن يَتُوبَ عَلَيْكُمْ ﴾ او الله اراده لری چې ستاسی توبه قبوله کړي ددی لپاره یې تکرار راوړچې د الله په بندګانو باندی درحمت پراخوالی څرګند شی یعنی الله داخوښوي چې پخپلو شرعی احکامو تاسی له ګناه نه پاک کړی دبنده توبه غواړی چې قبوله یې کړی ﴿ وَيُرِيدُ ٱلَّذِينَ يَتَّبِعُونَ ٱلشَّهَوَٰتِ أَن تَمِيلُوا۟ مَيْلًا عَظِيمًا ﴾ او اراده لری هغه کسان چې متابعت کوی دنفس

---

١- البحرالمحيط ٣ / ٢٢٢.

٢- مختصرابن کثیر١/ ٣٧٨.

دشهواتو ،ددې چې کاږه شی تاسی په کږيدلوډيرولويوسره يعنی د شيطان ملګري اوپلويان غواړي چې تاسوددوئ په شان فاسقان فاجران جوړشئ اوله حق څخه دباطل لوری ته واوړئ ﴿ يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمْ ۚ وَخُلِقَ ٱلْإِنسَٰنُ ضَعِيفًا ﴾ اراده لری الله ددې چې سپک کړي (بار) له تاسی نه اوپيداکړی شوی دی انسان ضعيف اوکمزوري ) يعنی الله ﷻ اراده لری چې تاسوته دشرعی احکام آسانه کړي اوانسان کمزوري پيداشوی چې دهوااونفس له پيروی څخه صبرنشی کولاي بياالله په ناروادخلګوله مالونوخورلوڅخه داسی ممانعت وکړ: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ ﴾ اي هغوکسانوچې ايمان بې راوړی دی (ای مؤمنانو ) مه خورئ تاسی مالونه ديوبل په مينځونوخپلوکښې په نارواسره ، اوداهره هغه لاره ده چې شريعت نه وي رواکړی لکه غلا ، خيانت ، غصب ، سود ، قمار ،اوداسی نور ﴿إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ ﴾ مګر(خورئ ) که وی دامالونه چې خورئ بې اموال دتجارت (چې صادروی ) په خوښې سره له تاسونه ) يعنی نه خوهغه چې دشريعت دشريفې لاري له لوري وي لکه دتجارت هغه چې الله رواکړی دی ابن کثيروايې چې استثناء دلته منقطع ده يعنی داسی لاري چاری مه لټوئ چې هغه حرامي وی اوتاسی ځينی مال راغونډوئ بلکه هغه رواسوداګري کوئ چې اخيستونکي اوپلورونکي په خوښه رضاوي هسی کاروکړئ.(۱) ﴿ وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴾ (اومه وژنئ تاسی سره ځانونه خپل بيشکه چې الله دی پرتاسی باندی ډيرمهربان ) يعنی ستاسويودي دبل وينی نه تويوي اوتعبيردځان په وژلودزجرپه هکله دمبالغې لپاره دی اويا پخپل ظاهرپاتی دی چې تاسوانتحار(خودکشي ) مه کوئ اودادالله درحمت نښه دی پرتاسوباندی ﴿ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَٰنًا وَظُلْمًا ﴾ اوهرڅوک چې وکړي دغه (تېرمنهيات) په تېريدلوسره له حقه اوپه ظلم سره (نه په خطااونسيان) ﴿ فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا ۚ ﴾ نوژربه مونږداخل کړودی اور (ددوزخ ) ته (هغه ستراورته چې پکښې وسوځي ) ﴿ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا ﴾ اودی دا(اورته دده ننې ايستل ) پرالله باندی ډيرآسان ځکه الله له هيڅ څيزڅخه عاجز کيږي نه ﴿ إِن تَجْتَنِبُوا۟ كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ ﴾ که ځان وساتئ تاسی له لويوګناهونوڅخه چې منع کولی شی تاسی له هغونه نوليری به کړو مونږ له تاسی نه (صغيره) ګناهونه ستاسی ﴿ وَنُدْخِلْكُم مُّدْخَلًا كَرِيمًا ﴾ اونه به باسوتاسی په ځاي دننوتلوډيرښه کښې (چې جنت دی ) هغه دنعمتونواوکرامت ځای چې پکښې هغه څه دی چې نه سترګوليدلی نه غوږواوريدلی نه دچابشرپه زړه باندی تېرشوي دی.

**بلاغت:**

دبديع اوبيان ښکلاوي چې پدې آيتونوکښې راغلي لنډيزيې دادی:

---

(۱) مختصرابن کثير۱/ ۳۷۸.

۱ – مرسل مجاز لکه : (حرمت عليكم امهاتكم) دادمضاف په حذف سره چې (حرمت عليكم نكاح امهاتكم) راغلی دی.

۲ – دطباق صنعت لکه : (حرمت...احل) او(محصنين...مسافحين) او(كبائر...سئياتكم) ځکه مرادله سیأتو څخه صغیره ګناهونه دی.

۳ – کنایه پدی کلام کښې چې : (اللاتي دخلتم بهن) چې له دخول څخه جماع مراددی لکه چې ځوک وایې (بنى عليها) اوخیمه یې وربانده ودروله پدی کښې دکنایې صنعت دی.

۴ – استعاره چې فرمایې : (وآتوهن اجورهن) داجورلفظ یې دمهورواوولورونولپاره استعاره کړی ځکه هغه هم په صورت کښې له اجراومزدوری سره مشابه دی.

۵ – مغایرجناس پدې کلماتوکښې : (تنكحوا مانكح) او(ارضعنكم... من الرضاعة) او(محصنات... فاذا احصن) اوهمداډول اطناب په څوځایونوکښې اوحذف په څونورو ځایونوکښې.

**فوائداوګټې:**

**لومړی فائده** : علمای کرامودمحرماتوله دی آیت نه داقاعده راایستلې چې عقدپه لونومیندې حراموي اودخول په میندولوني حراموي.

**دوهمه فائده** : بعضي روافضواوځینواهل تشیعو د(الله ﷻ ) داقول چې فرمایې (فما استمتعتم به منهن) دمتعت په نکاح اړولی اوداستره سهواوخطاده ځکه له استمتاع څخه مقصددلته په خپلونکاح شوو میرمنود جماع له وجهې تمتع اخیستل دی نه دمتعت (موقتی نكاح ) په تحقیق سره چې نوموړی دمتعت نکاح په احادیثواودعلماوو په اجماع حرامه ده.[1]

**دریمه فائده** : ابن عباس ﷺ وایې کبیره هرهغه ګناه ده چې الله په اور، غضب ، لعنت اوعذاب باندی ختم کړی وي.

**څلورمه فائده**: سعیدابن جبیر ﷺ روایت کوی چې یوچاابن عباس ﷺ ته وویل: کبیره ګناوی اوه دی هغه ورته وویل تراوو لااوه سووته نژدی دی خوکبیره له استغفارسره کبیره نه پاتی کیږي اوصغیره له اصرارسره صغیره نه وي (یعنی کبیره ځینی جوړیږي ) دغه خبره قرطبی راوړي ده.

**الله تعالی فرمایې:**

﴿ وَلَا تَتَمَنَّوۡاْ مَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بِهِۦ بَعۡضَكُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٖۚ لِّلرِّجَالِ نَصِيبٞ مِّمَّا ٱكۡتَسَبُواْۖ وَلِلنِّسَآءِ نَصِيبٞ مِّمَّا ٱكۡتَسَبۡنَۚ وَسۡـَٔلُواْ ٱللَّهَ مِن فَضۡلِهِۦٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٗا ﴿٣٢﴾ وَلِكُلّٖ جَعَلۡنَا مَوَٰلِيَ مِمَّا تَرَكَ ٱلۡوَٰلِدَانِ وَٱلۡأَقۡرَبُونَۚ وَٱلَّذِينَ عَقَدَتۡ أَيۡمَٰنُكُمۡ فَـَٔاتُوهُمۡ نَصِيبَهُمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ شَهِيدًا ﴿٣٣﴾ ٱلرِّجَالُ قَوَّٰمُونَ عَلَى ٱلنِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بَعۡضَهُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٖ وَبِمَآ أَنفَقُواْ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡۚ فَٱلصَّٰلِحَٰتُ قَٰنِتَٰتٌ حَٰفِظَٰتٞ لِّلۡغَيۡبِ بِمَا حَفِظَ ٱللَّهُۚ وَٱلَّٰتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَٱهۡجُرُوهُنَّ فِي ٱلۡمَضَاجِعِ وَٱضۡرِبُوهُنَّۖ فَإِنۡ

[1] - دځیرني تفصیل اودتحریم دلائل زمونږ په کتاب روائع البیان ۱ / ۴۵۷ کښې چې مهم بحث دی وګوری.

أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا (۳۴) وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا
مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَا إِن يُرِيدَا إِصْلَٰحًا يُوَفِّقِ اللَّهُ بَيْنَهُمَا إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا (۳۵) وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا
تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَٰنًا وَبِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَٰمَىٰ وَالْمَسَٰكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَالْجَارِ الْجُنُبِ
وَالصَّاحِبِ بِالْجَنبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا (۳۶) الَّذِينَ
يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُونَ مَا ءَاتَىٰهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَٰفِرِينَ عَذَابًا
مُّهِينًا (۳۷) وَالَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْءَاخِرِ وَمَن يَكُنِ الشَّيْطَٰنُ لَهُ
قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا (۳۸) وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ ءَامَنُوا بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْءَاخِرِ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللَّهُ وَكَانَ اللَّهُ بِهِمْ عَلِيمًا (۳۹) إِنَّ اللَّهَ
لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ وَإِن تَكُ حَسَنَةً يُضَٰعِفْهَا وَيُؤْتِ مِن لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيمًا (۴۰) فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ
بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا (۴۱) يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ تُسَوَّىٰ بِهِمُ الْأَرْضُ وَلَا
يَكْتُمُونَ اللَّهَ حَدِيثًا (۴۲) يَٰأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَوٰةَ وَأَنتُمْ سُكَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا
عَابِرِي سَبِيلٍ حَتَّىٰ تَغْتَسِلُوا وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ أَوْ لَٰمَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا
مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا (۴۳) ﴾ النساء: ۳۲ - ۴۳

## مناسبت اوتړاو:

کله چې الله تعالی دښځونارواومحرماتی بیان کړی اوتردې پخوایې دنارینه ووفضیلت پردوئ بیان کړی وونوآیتونه په دې باب چې یودبل جنس په هکله تمناوآرزوونکړې منع فرمایې ځکه دغه بیادحسداورخې سبب کیږي وروسته الله تعالی دمیړه ارتینې حقوق یوپه بل پسی څرګندوي اوزینه په زینه دداسی ګامونودااخیستلوښوونه کوي چې دنشوزاوسرغړونی په وخت کښې ورته ارتیاوي.

## لغتونه:

(موالي) خپلوان وارثان ځکه ورته (موالی) وایې چې یودبل مرستندویان وي مریې ته مولی وایې اوهمدارنګه بادارته مولاوایې ځکه هریودبل تولّی کوی اودلته مراد خپنی عصبه اووارثان دی (قوامون) حاکمان ساتندویان (قوّام) په قیام کښې دمبالغې لپاره استعمال شوي کله چې دیوامرپه هکله دساتنې اوپاملرنې بشپړه توجه وشی ورته قوام وایې نومیړونه هم دأولي الامرپه شان چې په رعیت حاکم وي اوپاملرنه یې کوی دخپلومیرمنوحاکمان اوپاملرنه لری (قانتات) خبره منونکې قنوت په اصل کښې دطاعت همیشه والی ته وایې (نشوزهن) ددوی سرغړونه (نشوز) سرغړونې اولویې ته وایې ځکه نشوز لوړتیاته وایې لکه چې داسی راخې (تل ناشز) (لویه اوچته غونډۍ) او(نشزت المرأة) کله چې په میړه لویې کوی اوخبره یې نه مني (المضاجع) دمضجع جمع اودویدلوځای ته وبې (شقاق) خلاف اوعداوت ته وایې له شق څخه اخیستل شوی ځکه دشقاق خاوندان هریوپه داسې شق (ګوټ) کښې وی چې بل ملګرې هلته نه وی (الجنب) هغه پردې چې دخپلوی رابطه یې له همسایه سره نه وی له جنابت څخه اخیستل شوي چې لیرې والی (بعد) ته وایې (مختالا) کبرجن او خیلاء ته وایې (مثقال) وزن (دروندوالی)

(الغائط) بی اودسې ته وايې اصل یې له ټیټې مځکې څخه دی اوکله چې به دوئ دانساني حاجت درفع کولواراده درلوده نوکډي ځاي، ټیټې مځکې ته به ورتلونوله حاجت څخه کنايه همدغه غائط راوړل شو.

دنزول سبب:

أ – له مجاهد ﷺ څخه روايت شوی چې: أم سلمه رضی الله عنهاوویل ای رسول الله ﷺ نارينه غزاکوی (غنیمتونه تر لاسه کوی) اوموږ غزانه کووخوموږلره دنارينه وونيمايې ميراث ونده ټاکلې شوی ده نوالله ﷻ داآيت نازل کړ: (ولاتتمنوا مافضل الله به بعضکم علی بعض...)[۱]

ب: روايت کاوه شي چې سعدبن ربيع ﷺ چې دانصاروله ډلې څخه ووښځې یې نافرمانی کوله ده خپله میرمن (حبیبه بنت زید) په څپېړه ووهله رسول الله ﷺ وفرمایل دادی هم څېنی قصاص واخلي: بیاداآیت نازل شو (الرجال قوامون علی النساء) نورسول الله ﷺ وفرمایل: زموږ یوڅه خوښه وه اودالله ﷻ اراده بل څه وه دالله ﷻ په اراده کښې خیردی.

تفسیر:

﴿ وَلَا تَتَمَنَّوْاْ مَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بِهِۦ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾ (اوارمان مکوئ تاسی دهغه شي چې غوره ګرځولی دی الله په هغه شي سره څېنی له تاسی پرڅېنونورو) یعنی اي مؤمنانو ددين اويادنياپه امورو کښې دهغه څه آرزومکوئ چې په کوم باندی له تاسی پرته الله پاک بل څوک ځانګړي کړی دی ځکه دابغض، کینه اوحسدپیداکوي زمخشري وايې: الله له حسد څخه منع فرمايلې چې یوڅوک دی دداسی شي آرزو(تمنا) نه کوی چې الله پاک په یوچا باندی درتبې او مال لوړولی وی ځکه دا دالله ویش دی هغه پخپل حکمت اوتدبیرسره چې دبندګانوپه احوالوخبردي فرمايلي: ﴿ لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا ٱكْتَسَبُواْ ۖ وَلِلنِّسَآءِ نَصِيبٌ مِّمَّا ٱكْتَسَبْنَ ﴾ (شته نارينه وولره نصيب (برخه مقرره له ازله) په سبب دهغه عمل چې کړی دی دوئ اوشته ښځولره نصيب په سبب دهغه عمل چې کړي دی دوئ) یعنی هریوه له دوئ دواړوډلوته په ميراث کښې معلومه ونډه اوبرخه ده طبری وايې هرچاته دخپل عمل سره سمه جزاده که ښه ووښه جزاء اوکه بدوه بده جزاء به مومي.[۲] ﴿ وَسْـَٔلُواْ ٱللَّهَ مِن فَضْلِهِۦٓ ﴾ اوسوال کوئ تاسی له الله نه له فضل اومهربانی دده (څودریې کړی ځکه الله کريم اووهاب دی) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا ﴾ بیشکه چې الله په هرشي ښه دانا(عالم) دی (ځکه یې خلک پوړی پوړی کړی اوځینوته یې په ځینونورو لوړې درجاتې ورکړی دی ﴿ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَٰلِىَ مِمَّا تَرَكَ ٱلْوَٰلِدَانِ وَٱلْأَقْرَبُونَ ﴾ اولپاره دهریوه له (نارينه اوښځو) ګرځولی دی موږ وارثان له هغه ماله چې پری ايښي وي موراوپلاراوخپلوانوله ميراث څخه ﴿ وَٱلَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَٰنُكُمْ فَـَٔاتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ ﴾ (اوهغه کسان چې غوټه شوی دی قسمونه ستاسی (په دوستی ددوئ) نوورکوئ برخه د دوئ) یعنی اوهغه کسان چې تاسی په جاهليت کښی په دوستی سره (حلف) لوړه ددوستی په نصرت اومیراث اخیستي وی نوله میراث څخه ددوئ برخه ورکوئ حسن

---

[۱]– اسباب النزول ص ۸۵

[۲]- الطبری ۸ / ۲۲۷.

رحمه الله وايې يوسړي به له بل سره داسي تحالف کاووچې وروسته ديوه له مړينې به يې بل ميراث وړی نوبيادالله ﷻ پدی قول منسوخ شوچې فرمايې ﴿ وَأُوْلُواْ ٱلْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ ﴾ [الأنفال: ۷۵] ابن عباس ﷺ وايې چې کله مهاجرين مديني منورې ته راغلل نوبه مهاجر دانصارو ميراث ووړ داپه هغه مواخات بناوو چې رسول الله ﷺ د دوئ ترمنځ تاکلی وواوسکنی ورور به يې محروم پاتی وو خوکله چې دا آيت نازل شو:﴿ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَٰلِيَ ﴾ نوبياهغه منسوخ شو.(۱) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا ﴾ بيشکه چې الله دی په هرشی باندی ښه خبردار(اوپه هغه به جزا درکړی ) وروسته بيا الله ﷻ داخرگنده کړه چې نارينه ووته دښځوامورسپارل شوی چې دهغوئ مسئوليت ومنی اوهغوی متوجه کړی ويې فرمايل: ﴿ ٱلرِّجَالُ قَوَّٰمُونَ عَلَى ٱلنِّسَآءِ ﴾ (سړي حاکمان مقررشوی ) پرښځوباندی )يعنی هغوئ ته په امر او نهی کولواونفع ورکولواودهغوئ په لاربښوونه کولوگمارل شوی دی لکه چې حاکمان دخپل رعيت لپاره ټاکل شوی دی ﴿ بِمَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ وَبِمَآ أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَٰلِهِمْ ﴾ (په سبب ددی چې فضيلت ورکړی دی الله ځينی ددوئ ته پرځينونوروباندی اوپه سبب ددي چې لگښت (نفقه ) کوي دوئ (پردغوښځو )له خپلومالونوڅخه ) يعنی په سبب ددي چې الله ځينی ددوئ ته عقل ، تدبيروربښلی اوکسب اولگښت يې ورکړی چې دوئ يې دښځوپه پاملرنه ساتنه اونفقه ورکولوکښې ورکړی اوتأديب يې وکړی ابوالسعودوايې چې دسړی بهتري په دی کښې ده چې دعقل تدبيرخاوندسمې رايې اوفکرښښتن اودقوت مالک وی څکه نوالله دنبوت ، امامت ، ولايت ، شهادت اوجهادلپاره غوره کړی دی(۲) ﴿ فَٱلصَّٰلِحَٰتُ قَٰنِتَٰتٌ حَٰفِظَٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ ٱللَّهُ ﴾ (نوهغه ښځې چې نيکې دی حکم منونکی دی (دميړونو) ساتونکې دی په غياب دميړونوخپلوکښی ) دخانونوخپلواودخپلو ميړونو دکورونو مالونو اولادونو )په سبب دهغه چې ساتلی دی الله دوئ ته له حقوقوپر ميړونو ) داهغه تفصيل دی چې الله دښځودهغه حال چې دنارينه تر رياست لاندی وي فرمايلی دی الله پاک يادونه کوي چې دوئ دوه ډوله دی يوه ډله يې نيکاني ، خبره منونکي اوبله ډله يې سرغړونکي گنهکارانې دی هغه چې نيکې دی نو د الله اطاعت کوی دميړه منونکي وی هغه حقوق چې ميړه يې ورباندی لری په ښه توگه يې تر سره کوي خانونه له زنا ژغوري دميړونو مالونه له بيځايه لگولو ساتی لکه چې دوئ هغه رازونه هم پټ ساتی کوم چې ددوئ اوميړونوترمنځ وي اوپټول يې لازمي اوغوره کاردی په حديث شريف کښی راځي چې دقيامت په ورځ ترټولو خلکوپه منزلت کښې بدهغه څوک دی چې خپلې مېرمنی ته رسيدل کوی اوهغه ده ته رسيږي (کوروالی کوی ) اوبيادخپل يوملگری راز بل ملگری ته خپروی ﴿ وَٱلَّٰتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ ﴾ (اوهغه ښځې چې ويريږئ تاسی له سرکشی ددوئ نه ) دادوهم ډول ښځې دی هغه گنهکاري سرغړونکي ښځې چې پخپل ميړه يې غته وايې اوله طاعت څخه يې سرکشي کوی نواي خلکوله دوئ سره داصلاح لاره غوره کړئ ﴿ فَعِظُوهُنَّ وَٱهْجُرُوهُنَّ فِي ٱلْمَضَاجِعِ وَٱضْرِبُوهُنَّ ﴾ نونصيحت وکړئ دوئ ته اوپريږدئ

---

۱- مختصرابن کثير۱/ ۳۸۴

۲- ارشادالعقل السليم۱/ ۳۳۹.

تاسی دوئ په ځای دخوب آخپلې شاوی وروګرزوئ که په نصیحت سمي نشوی )او ووهئ تاسی دوئ (که په بیلتون هم سمي نه شوی )یعنی دوئ دنصیحت په ډول وبیروئ لاربنوونه ورته وکړئ که پدی وعظ اوپند کارونشونوځای ورپریږدئ مه ورسره نژدي کیږئ اومه خبری ورسره کوئ ابن عباس ﷺ وایي چې دهجرمعناداده چې (کوروالی ) جماع ورسره ونکړئ اوچې دخوب پرځای کښې شاوروګرزوئ که داهم ګټوره نه وه بیادي سپک وهل تکول ورکړی.[1] ﴿فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا﴾ نوکه اطاعت یې وکړ(غاړه یې کښېښود ) تاسی ته نومه لټوئ تاسي پردوی باندي لاره دضرراوأذیت ) ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا﴾ بیشکه الله دی ډیر پورته ډیرلوي دي ,له تاسي هغه ددوی ولی دی اوله هغه چاڅخه کسات اخلی چې په دوی ظلم کوي اویاورباندی بغاوت کوي وګوره ددي عقوباتو ترتیب اوباریکي ته چې لومړی یې مونږ په وعظ اونصیحت مأمورکړوبیایې راته دهجران وفرمایل وروسته یې دداسی وهلوچې (مبرح) نه وی راته وویل آیت شریف یې دکبریااواعتلاء په صفاتوپای ته ورساووچې بنده تنبیه شی پدی چې دالله قدرت دمیړه له قدرت نه په هغې باندی لوړ دی او الله د بیوزلواو مظلومانومرستندوی اومددګاردی !! ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَا﴾ اوکه ویریږئ تاسی له مخالفت څخه په مینځ دمیړه اوښځې کښې نو ورولیږئ یومنصف له خپلوانو ددي سړی اوبل منصف له خپلوانوددي ښځې نه ) ترڅودوی غونډه وکړی اوددی میړه اوارتینې په هکله سوچ وکړي هغه څه سره غوټه کړی چې پکښې مصلحت وي﴿إِن يُرِيدَا إِصْلَٰحًا يُوَفِّقِ اللَّهُ بَيْنَهُمَا﴾ (که اراده لري دغه کسان داصلاح (جوړښت ) نوموافقت به پیدا کړي الله ددغو(زوجینو ) په منځ کښې ) یعنی که داکسان داصلاح ذات البین قصد(تکل) لری نیت یې سم وی زړونه یې دالله لپاره دنصیحت په هکله سوتره وي الله به یې په وساطت اومینځګړتیاکښې برکت واچوي اوددوی په وجه به دزوجینوترمینځ الفت مینه اومهربانی اوجوړښت رامینځ ته کړی. ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا﴾ بیشکه الله دی ښه عالم ښه خبردار) په احوالو دبندګانو اودحکمت خاونددي دتشریع په ټاکلو کښې ددوی لپاره ﴿وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا ۖ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ (اوعبادت کوئ تاسی دالله اومه شریکوئ تاسی له ده سره هیڅ شي اونیکي کوئ له موراوپلارسره په نیکي کولو ) یعنی الله ﷻ په وحدانیت اوعظمت سره ستایئ له هغه سره هیڅ شی بتان اویا نورڅه شریکان مه نیسئ ! له موراوپلارسره احسان کوئ دهغوئ انعام اواکرام وکړئ ﴿وَبِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ﴾ (اونیکي کوئ ) له خاوندانودخپلوي سره او(نیکي کوئ ) له یتیمانوسره ( اونیکي کوئ) له مسکینانو(بیوزلانوسره) او(نیکي کوئ ) له همسایګانوسره چې قریب وي

[1] -مختصرابن کثیر۱/ ۳۸۲

ځکه د هغه دوه حقوق دي يو يې د همسايګي او بل د خپلوي دی ﴿وَٱلْجَارِ ٱلْجُنُبِ﴾ او (نيکي کوئ) له همسايګانو سره چې لري وي (په خپلوي کښې) ﴿وَٱلصَّاحِبِ بِٱلْجَنۢبِ﴾ او (نيکي کوئ) له هغه ملګري سره چې په څنګ کښې وي) ابن عباس ﷺ وايي چې داد سفر ملګري دی زمخشري وايي چې د هغه د څنګ ملګري دی که په سفر کښې وي يا نژدې همسايه اويا د تعليم شريک يا په مجلس کښې څنګ ته ناست اويا نور چې لږ ترلږه ګاونډي وي د هغه مراعات او حقوق شته چې بايد هير نشي چا بيا ويلي چې مراد له دې ښځه د سړي خپله ميرمن ده (۱) ﴿وَٱبْنِ ٱلسَّبِيلِ﴾ او (نيکي کوئ) له مسافر سره هغه چې له خپل اهل او هيواد څخه ليرې وي ﴿وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُمْ﴾ او (نيکي کوئ) له هغو (مينځو او مريو سره) چې مالکان وي (ورلره) ښې لاس ستاسي ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا﴾ (بيشکه چې الله نه خوښوي هغه څوک چې دی کبر کونکي ډير فخر (وياړ) کونکي) يعنی هغه کبرجن چې په خپلوانو او ګاونډيانو باندې ځان لوړ ګڼي او وياړی (فخر) کوي چې دی تر ټولو ښه بهتر او لوړ دی دغه آيت د ښو اخلاقو جامع او په احسان باندې هڅونه کوي که څوک پکښې ښه سوچ او تدبر وکړي نو د واعظانو له ډيرپند او نصيحت څخه ورته کافي دی او بيا وروسته الله تعالي د هغو کسانو صفات کوم چې الله يې مبغوض ګڼي بيانوي فرمايي: ﴿ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلْبُخْلِ﴾ (هغه کسان چې بخيلی کوي دوی او امر کوی (نورو) خلکو ته (هم) په بخيلی سره) يعنی هغه کسان چې د الله ﷻ واجب شوی مال د الله په لاره کښې نه لګوي او نوروته هم د نه لګولو امر او حکم کوي. دا آيت د يهودانو د هغې ټولۍ په هکله نازل شوي چې انصاروته به يې ويل: په جهاد او صدقاتو کښې خپل مالونه مه لګوئ! خو حکم يې عام دی ﴿وَيَكْتُمُونَ مَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ﴾ (او پټوي دوی هغه شی چې ورکړی دی الله دوی ته له مهربانی خپلې) يعنی دوی هغه خپله بدايي او مال پټوي او د رسول الله ﷺ هغه نعت چې په تورات کښې موجود دي نه څرګندوی (۲) ﴿وَأَعْتَدْنَا لِلْكَٰفِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا﴾ (او تيار کړی دی مونږ کافرانو ته عذاب سپکونکي) يعنی هغه چاته چې د الله له نعمت څخه منکروی مونږ دردناک عذاب چې ذلت او سپکتيا ورسره وی تيار کړی دی ﴿وَٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ رِئَآءَ ٱلنَّاسِ﴾ (او نه خوښوي الله) هغه کسان چې صرفوی دوی مالونه خپل لپاره د ښوونی خلکوته) يعنی د فخر او ريالپاره يې لګوي د الله ﷻ رضا يې مطلب نه وی ﴿وَلَا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَلَا بِٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ﴾ او نه لري ايمان په الله باندې او نه په ورځ آخرې د (قيامت) باندې دا آيت د منافقينو په باب دی ﴿وَمَن يَكُنِ ٱلشَّيْطَٰنُ لَهُۥ قَرِينًا فَسَآءَ قَرِينًا﴾ او هر څوک چې وي شيطان ده لره ملګری نو بد ملګری دی (دا شيطان) ﴿وَمَاذَا عَلَيْهِمْ

(۱) الکشاف ۱/۳۹۳ همدغه رايه طبري هم ريلي ده.
(۲) دغه خبره چي وروسته راغلی د طبری او ابو السعود غوره ده.

لَوْ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَأَنفَقُوا۟ مِمَّا رَزَقَهُمُ ٱللَّهُ ﴾ ( او څه نقصان به وو په دی کفاروباندی که ایمان راوړی وي دوی په الله اوپه ورځ آخره د(قیامت ) باندی اوصرف کړی وای دوی څیني د هغه څه چې روزي کړی دي دوی لره الله ) استفهام دتوبیخ اوانکارلپاره دی اوزمخشری وایي چې ددې مثال داسي دی لکه چې څوک کسات (غچ) اخیستونکي ته وایي څه تاوان به دی ووکه دی ورته عفوکړی وای ؟ اویاعاق (آزاری) ته وایي چې څه غم به دی ووکه دی دمورا وپلار خبره منلای ؟ اوداتوبیخ او ذم اودګتې په خای تجهیل دی (۱) ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ بِهِمْ عَلِيمًا ﴾ ( اودی الله په ټولو اعمالو باندی ( هم ) ښه عالم ) داددوی لپاره دعذاب وعید دی یعنی ژرده چې ددوی په کړوورو به سزا ورکړی. ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ﴾ بیشکه چې الله نه کوي ظلم په اندازه دیوې ذرې هغه چې (هبا ) دورانګې خاشه دی اوداد تمثیل په ډول دی چې تنبیه راشی دلږشي په ډیرباندی ﴿ وَإِن تَكُ حَسَنَةً يُضَٰعِفْهَا ﴾ (نوکه وي داذره ) نیکی نودوه چنده به کړي هغه نیکۍ ) یعنی که دغه نیکي یوه ذره غوندی وي الله ﷻ به یې ووه وکړی اوڅوچنده به شی ﴿ وَيُؤْتِ مِن لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ ( اوور به کړی الله (محسن ته ) له نزده خپله ثواب ډیرلوی) یعنی تفضلا به ورته جنت ورکړي ﴿ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍۭ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ شَهِيدًا ﴾ ( نوڅرنګه به وی (حال ) په هغه وخت کښې چې راولو مونږ له هریوه (پخوانی) امت څخه یو شاهد (ددوی له انبیاوو) څخه اوراولو مونږتا (ای محمده ا) پر دغه (محمدی امت باندی ) شاهد (احوال ویونکي ) یعنی دکفارو، فجارو به څه حال وي ؟ کله چې په هر امت باندی ددوی نبی شاهدې ویونکي راوستل شی اوتا (ای محمده ) ستادامت په دروغ ویونکو، سرغړونکو باندی شاهدې ویونکي راولو چې ددوی دعصیان اوانکار شاهدي ورکړی ددوی به څه دریزوی ؟ څه به یې حال وی ؟ استفهام دلته دتوبیخ او ویروني لپاره دی. ﴿ يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَعَصَوُا۟ ٱلرَّسُولَ ﴾ ( په دغه ورځ کښې به آرزوکوي هغه کسان چې کافران شوي وو اونافرمانی یې کړی وه له رسوله ) یعنی پدغه سخته ورځ کښی به فاجران هغه کسان چې دالله له وحدانیت څخه منکر اودرسول له فرمان څخه یې غاړه غړولی داسی آرزوکوی چې ﴿ لَوْ تُسَوَّىٰ بِهِمُ ٱلْأَرْضُ ﴾ (کاشکی هواره شوی وای پردوی باندی مځکه ) لکه چې په مړیو باندی هواره ده اویاځمکه څیری شوی وای اوهغه یې ډوب کړی وای اودوی خاوری وای ﴿ يَوْمَ يَنظُرُ ٱلْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ وَيَقُولُ ٱلْكَافِرُ يَٰلَيْتَنِى كُنتُ تُرَٰبًۢا ﴾ [سورة النبا_۴ ] اودابه له دی وجهی وایي چې دوی دقیامت سختی اوربړونه ووینی ﴿ وَلَا يَكْتُمُونَ ٱللَّهَ حَدِيثًا ﴾ ( اونه به پټوي له الله څخه هیڅ خبره ) یعنی دوی به له الله څخه هیڅ خبره نشی پټولای څکه غړی اواندامونه به یې وربانډی شاهدی وایي پرڅه چې یې کړی وي (۲) بیاالله تعالي دمستي اوجنابت په

---

(۱) الکشاف ۱/۳۹۵.

(۲) دغه تفسیرهغه وخت کیدای شي چې جمله مستأنفه وبلل شي اوهمدا ظاهره ده چابیاویلی چې داجمله په پخوانی باندی عطف ده یعنی دوی داغواړي چې ترمځکه لاندی ښخ کړل شی اودوی پدې خبره کښی نه څه پټوی اونه دروغ وایې چې (والله ما کنامشرکین) څکه که یې پټ کړی رسواکیږي نوددی ورځې له سختې دا آرزوکوي چې په مځکې ننوزي-

حال کښې دلمانځه کولو څخه دپرهیزپه هکله فرمایي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَقۡرَبُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنتُمۡ سُكَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَعۡلَمُواْ مَا تَقُولُونَ ﴾ (ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) مه نژدې کیږئ تاسی لمانځه ته حال داچې تاسي مست یئ (له نشې) ترهغه پورې چې پوه شئ تاسي پرهغه شي چې (یئ) وایئ تاسي ) یعنی تاسودمستۍ په وخت کښې لمونځ مه کوئ ځکه پدغه حالت کښې دالله دمناجات کولوخضوع اوخشوع نه راځي اودادشرابوترتحریم له مخې حکم دي ترمذی روایت کوي چې علی کرم الله وجهه وایي: مونږته عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه د میلمستیا بلنه راکړې وه اوشراب یې راوڅښل زمونږپه سرکښېنوتل دلمانځه وخت شوزه یې دلمانځه دامامت لپاره مخکې کړم اوماقرائت لوستل ویل مې: (قل یاأیها الکافرون أعبد ما تعبدون) نحن نعبد ما تعبدون) بیاالله جل جلاله دامذکور آیت نازل کړو: [1] ﴿ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ حَتَّىٰ تَغۡتَسِلُواْ ﴾ (اونه پداسی حال کښې چې تاسی جنب اوسئ مګرپه هغه حال کښې چې تاسی تېریدونکي دلارې یئ ترهغه پورې چې تاسی غسل وکړئ ) یعنی لمانځه ته دجنابت په حال کښې مه نژدې کیږئ چې دانزال یاایلاج په سبب ناپاکه یاست مګرکه چېرې مسافرین وئ اوبه مونشواې میندلاې نوبیادتیمم په وهلوسره په دغه حالت کښې لمونځ وګذارئ ﴿ وَإِن كُنتُم مَّرۡضَىٰٓ أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوۡ جَآءَ أَحَدٞ مِّنكُم مِّنَ ٱلۡغَآئِطِ ﴾ اوکه تاسی رنځوران یاپه سفر باندی (په حالت دبې اودسی یاجنابت کښې) یاراشي یوله تاسی له بیدیا (له بولو) نه یعنی که تاسی ناروغان وئ اوبودرته تاوان رساوواویاپه سفرکښې وئ کوچني اودس دربانډی اوښتي وواوبه مونشواې میندلای ﴿ أَوۡ لَٰمَسۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ ﴾ (یاجماع وکړئ تاسی ښځوسره ) دغه ابن عباس رضی الله عنه قول دی ﴿ فَلَمۡ تَجِدُواْ مَآءٗ فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدٗا طَيِّبٗا ﴾ نوونه مومئ تاسي اوبه نواراده وکړئ تاسي مخ د ځمکې پاکي ته ﴿ فَٱمۡسَحُواْ بِوُجُوهِكُمۡ وَأَيۡدِيكُمۡ ﴾ نومسحه وکړئ تاسی په مخونوخپلواوپه (دواړو) لاسونو خپلو (ترځنګلوپورې) په دغې پاک خاوره.

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ﴾ (بیشکه الله دی ښه عفوه کونکي ښه مغفرت کونکي ) یعنی دخپلوبندګانولپاره سختی آسانه کوي چې په تکلیف کښې ونه لویږي.

بلاغت:

دغه آیتونه دفصاحت اوبدیع بیان لاندنی ښکلاوي لري:

۱- داطناب صنعت دالله جل جلاله پدی قول کښې چې فرمایي: (نصیباً مما اکتسبوا) او(نصیباً مما اکتسبن) اوهمدارنګه په( حکماً من أهله و حکماً من أهلها)کښې لکه چې په (و الجار ذي القربی و الجار الجنب ) کښې هم راغلی دی.

کشاف وګوری۱/ ۲۹۲.

[1] قال الترمذی هذاحدیث حسن صحیح.

۲ – استعاره پدې کلام کښې چې (مما اکتسبوا) په میراث کښې یې ددوی استحقاق (ورثیا) له اکتساب سره مشابه کړه او له هغه څخه یې د اکتسبوا لفظ مشتق کړچې ورته تبعیه استعاره ویل کیږي.

۳ – د کنایې صنعت په: (واهجروهن في المضاجع) چې دغه یې د جماع نه کولو څخه کنایه راوړي لکه چې په: (لامستم النساء) کښې ابن عباس ﷺ یې معنا جماع بللې او همدارنګه پدې کلام کښې چې فرمایي: (او جاء أحد منکم من الغائط) چې دلته یې له بې اودسې څخه په غائط کنایه راوړي ده.

۴ – مبالغه چې په دې جمله کښې: (الرجال قوامون على النساء) څکه فعال د مبالغې صیغه او د جملې اسمیې غوره کول بیا د استمرار او دوام د افادې لپاره راغلې ده.

۵ – له معلوم څخه سوال کول د اوریدونکي د توبیخ لپاره دی لکه چې: (فکیف اذا جئنا) دلته توبیخ او تقریع ده.

۶ – د اشتقاق جناس لکه په دې کلماتو کښې: (حافظات... بما حفظ) او (بشهید ...وشهیدا).

۷ – تعریض لکه په: (مختالا فخورا) کښې چې د تکبرذم یې بیان کړهغه چې د خلکو خوار ګڼل خینې پیدا کیږي.

۸ – حذف په ډیروځایونو کښې لکه: (وبالوالدین احسانا) چې په بشپړه توګه داسې راخي: (احسنوا الی الوالدین احسانا).

## فوائد او ګټې:

لومړۍ فائده: الله پاک پدې آیت کښې چې فرمایي (ان یریدا اصلاحا) له اصلاح نه پرته بل څه یادنکړل او د تفریق چې د اصلاح عکس (ضد) دي یادونه یې هډو ونکړه چې پدې کښې باریکه اشاره ده چې دغو منصفانو ته ښایي چې خپل ټول زیار د اصلاح لپاره په کاروا چوي څکه په تفریق کښې کورونه ورانیږي اولادونه شړل کیږي او داهغه څه دي چې باید کورنۍ خینې وژغورل شي.

دوهمه فائده: امام بخاری رحمه الله له عبدالله ابن مسعود ﷺ څخه روایت کوی چې وایي ماته رسول الله ﷺ وفرمایل: ماته قرآن ولوله! ماورته وویل: یارسول الله زه یې درته ولولم حال دا چې پرتا نازل شوی دی؟! راته ویل یې هوزه داخوښوم چې له بل چا څخه قرآنکریم واورم!! نوما سورت نسآء ورته تلاوت کړترڅو دی آیت ته راورسیدم: (فکیف اذا جئنا من کل أمة بشهید و جئنا بك على هؤلاء شهیدا) راته ویل یې (اوس بس ده) ماورته وکتل چې له سترګو یې رپ رپ اوښکي توئیدلی.

دریمه فائده: الله پاک چې کوم آیت په دې دوو مبارکو نومونو پای ته ورساووچې (ان الله کان علیا کبیرا) پدې کښې د میړونو تهدید مطلب دي چې ظلم ونکړي ګواکي چې آیت فرمایي: پدې مه مغرورږ کیږئ چې تاسو په دوی پورته لاس لرئ (بر لاسی یاست) او درجه مو لوړه ده څکه الله ډیر لوړ او له هغه چاڅخه چې ظلم کوي کسات (غچ) اخیستونکي دی الله تر تاسو چې په میرمنو لوړ یاست لوړ او زورور دی دهغه له عذابه وویریږئ!.

## تنبیه:

قرآنی نظم او پیپلتوب هسی راغلی چې: (بما فضل الله بعضهم على بعض) او که چیري داسې ویل شوی وای چې (بتفضیلهم علیهن) نو به ښه لنډ او روان وخوتعبیرپه یاده شوی صیغه باندی

دیوستر حکمت له مخې راغلی دی چې هغه داڅرګندوي چې میرمن له سړي ښځه په منزلت دانسان دتن دیوغړي ده او همدارنګه نارینه له میرمنې ښځه، نوسړی لکه دتن سراو میرمن لکه نوربدن غوندی ځکه نونه ښایي چې دتن یوغړی دی په بل باندی تکبراولوبي وکړي معلومه خبره ده چې غوږ ستر ګوته اړده لاسونه پښوته محتاج او دادسړی لپاره عیب اوشرم نه ګڼل کیږي چې زړه یې ترمعده بهتروي اوسریې ترلاس غوره وی هرغړي خپل کارپه واراوترتیب سره کوي یوله بله بی نیازه اوبی پروانشی کیدلای همداد غه تعبیرچې وایي: (بعضهم على بعض) رازاواسراردی نوآیت داعجازاوایجازوروستی سرحدته رسیدلی دي.

دمیرمنو د تأدیب په هکله وینا:

ښایي چې ترټولو پلیته خبره چې داسلام دښمنان ورباندی اسلامي شریعت ته پیغورورکوي داوي چې دوی ګمان کوي اسلام دمیرمنې سپکاوي کړي کله چې یې میړه ته واک ورکړي هغه وډبوي دوی وایې څرنګه قرآن دښځې دډبول رواګڼي چې فرمایي: (واهجروهن في المضاجع واضربوهن) آیادغه دهغې سپکاوی اوپه کرامت (عزت) باندي تیری نه دی ؟!.

ځواب داچې هو حکیم اوعلیم ذات دهغې دډبولواذن ورکړي خوکله ؟ اودچالپاره ؟ بیشکه وهل به (غیر مبرح) وي لکه چې په حدیث شریف کښی راغلی چې دا دمیرمنی دسرغړوني اونشوزدمخنیوي لپاره یوه لاره ده کله چې دښځې ګذاره له میړه سره ورانیږي دمیړه په څټ کښې ورسپریږي دشیطان خبره مني له کورکهوله ښځه دوزخ جوړوي چې داټول څه دمنلووړ اوزغملونه وي نوبه نارینه پداسی حال کښی څه کوي ؟ قرآن کریم پدی هکله ددرملني لار ښوونه کوي چې صبراوزغم خپل کړئ ، بیاورته وایئ چې پند، وعظ اونصیحت دي ورته وکړي بیایې دخوب دځای بیلتون اوهجران وربښیې که دی ټولولاروچاروګټه ونکړه نوارومروبه بله لیاره خپلوئ چې هغه دډبول دی ترڅوبې دمیرمنی کبراوغرور مات شی اوداګواکي دیرکوچنی زیان دی ترهغه چې طلاق ورکول شی اوکله چې دیرضرراوتاوان له لړسره پرتله شی نولږبیاښکلی اواغلی ښکاري څومره ښه یې ویلي: ترړوندوالی چپ سترګی توب ښه دی (وعندذكرالعمى يستحسن العور) نووهل دډبول دعلاج په ډول په ځینی حالاتوکښې چې هلته په نرم والی ، احسان اوښه والی دسمون تمه نشی کیدای یوه بله دعلاج اودرملني لاره ده. (فما لهؤلاء القوم لايكادون يفقهون حديثا).

الله تعالی فرمایي:

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ نَصِيبًا مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ يَشْتَرُونَ ٱلضَّلَٰلَةَ وَيُرِيدُونَ أَن تَضِلُّوا۟ ٱلسَّبِيلَ ﴿٤٤﴾ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَآئِكُمْ
وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَلِيًّا وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ نَصِيرًا ﴿٤٥﴾ مِّنَ ٱلَّذِينَ هَادُوا۟ يُحَرِّفُونَ ٱلْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِۦ وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَٱسْمَعْ
غَيْرَ مُسْمَعٍ وَرَٰعِنَا لَيًّۢا بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِى ٱلدِّينِ ۚ وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا۟ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَٱسْمَعْ وَٱنظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَقْوَمَ
وَلَٰكِن لَّعَنَهُمُ ٱللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٤٦﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ ءَامِنُوا۟ بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُم
مِّن قَبْلِ أَن نَّطْمِسَ وُجُوهًا فَنَرُدَّهَا عَلَىٰٓ أَدْبَارِهَآ أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّآ أَصْحَٰبَ ٱلسَّبْتِ ۚ وَكَانَ أَمْرُ ٱللَّهِ مَفْعُولًا ﴿٤٧﴾ إِنَّ

اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِۦ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُ ۚ وَمَن يُشْرِكْ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱفْتَرَىٰٓ إِثْمًا عَظِيمًا ﴿۴۸﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى
ٱلَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُم ۚ بَلِ ٱللَّهُ يُزَكِّى مَن يَشَآءُ وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿۴۹﴾ ٱنظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ ۖ وَكَفَىٰ بِهِۦٓ إِثْمًا
مُّبِينًا ﴿۵۰﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ نَصِيبًا مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ يُؤْمِنُونَ بِٱلْجِبْتِ وَٱلطَّٰغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟
هَٰٓؤُلَآءِ أَهْدَىٰ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ سَبِيلًا ﴿۵۱﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَعَنَهُمُ ٱللَّهُ ۖ وَمَن يَلْعَنِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ نَصِيرًا ﴿۵۲﴾ أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ
مِّنَ ٱلْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ ٱلنَّاسَ نَقِيرًا ﴿۵۳﴾ أَمْ يَحْسُدُونَ ٱلنَّاسَ عَلَىٰ مَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ ۖ فَقَدْ ءَاتَيْنَآ ءَالَ إِبْرَٰهِيمَ
ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ وَءَاتَيْنَٰهُم مُّلْكًا عَظِيمًا ﴿۵۴﴾ فَمِنْهُم مَّنْ ءَامَنَ بِهِۦ وَمِنْهُم مَّن صَدَّ عَنْهُ ۚ وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ﴿۵۵﴾ إِنَّ
ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُم بَدَّلْنَٰهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا لِيَذُوقُوا۟ ٱلْعَذَابَ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ
عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿۵۶﴾ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۖ لَّهُمْ
فِيهَآ أَزْوَٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۖ وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا ﴿۵۷﴾

### دنزول سبب:

روايت کيږي چې يو وخت ابوسفيان کعب بن الاشرف ته چې ديهودانو يو عالم وو وويل چې ته کتاب لولی او پوهيږي خو مونږ عوام خلک (اميان) يو ته و وايه مونږ په حق لاره يو او که محمد؟ هغه ورته وويل چې ستاسی دين راوښيه ! ابوسفيان ورته وويل مونږ د حاجيانو لپاره اوښان حلالو و هغوئ ته اوبه ورکوو د ميلمانه پالنه او عزت کوو د خپل رب کور آبادوو او محمد زمونږ دين پرې ايښي د خپلوانو سره اړيکې شلولي يعنی صله رحم نه لري !! هغه ورته وويل ستاسی دين د هغه تر دين ښه دی او په الله سوګند چې تاسو تر ده په سمه لاره روان ياست نو الله ﷻ دا آيت نازل کړ: ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ نَصِيبًا مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ... ﴾ (۱) دآيت تر پايه پوري.

### مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله پاک د کافرانو احوال يوڅه څرګند کړچې دوی به په آخرت کښې وايې چې کاشکې مځکه وربانديې غوړيدلی وای او له الله څخه به خبرنه پټوی وروسته بې ورپسې ديهودانو دکفراو انکار بيلګې او د الله ﷻ دآيتونو دروغ ګڼل راوړل او ورپسې يې ديوې ډلې باطلې عقيدې او ګروهی بيان کړي او بيا هغه څه بيانوی چې دوی ته په دوزخ کښې تل ترتله عذاب تيار دی. الله ﷻ دی مونږ ځنې وژغوري.

لغتونه: (راعنا) مونږ ته وګوره دغه کلمه په عبرانی ژبه کښې د ښکنځلو په معنا ده او يهودانو به ويل چې (راعنا) او د (رعونت) قصد به يې ځنې کاوو (اقوم) ډيرسم او ښه (نطمس) موږ به ورک

(۱) اسباب النزول ص ۸۹. الطبری ۸ / ۴۲۸

کړو(طمس )محو کولو او دشی اثرور کولو ته وايي (فتيلاً) هغه نري تار چې دخرما دزړي په درز کښې وي (الجبت) هرهغه څه چې پرته له الله نه يې عبادت کاوه شی هغه که ډبره وی ، بشروی ياشيطان او چاپياويلی چې همداد شيطان نوم دی (نقيراً) هغه ټکی چې دخرما دزړي په شا لګيدلی وي (نصليهم) مونږ به يې داخل کړو.

تفسير:

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ نَصِيبًا مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ ﴾ (آيا نه دی کتلی تا(اي محمده ) (حال ) دهغو کسانو چې ورکړی شوی دی دوی ته برخه دکتاب ؟) استفهام دتعجيب لپاره دی چې ددوی له بده حاله او دهغوئ له موالات څخه تحذير پکښې دی يعنی ای محمده ته نه ګوري هغو کسانو ته چې څه ونډه له کتاب څخه ورکول شوي چې هغوئ ديهودانو احبار او علماء دي ﴿ يَشْتَرُونَ ٱلضَّلَٰلَةَ ﴾ پيري (اخلي ) دوی ضلالت (په عوض دهدايت )يعنی دوی تر هدايت ګمراهي او تر ايمان کفر غوره کوی ﴿ وَيُرِيدُونَ أَن تَضِلُّوا۟ ٱلسَّبِيلَ ﴾ (غواړي ) اراده لري دوی ددې چې ورکه کړي تاسي (هم) لاره د(حق ) (چې ددوی په ډول شی ) ﴿ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَآئِكُمْ ﴾ (او الله ښه عالم دی په دښمنانو ستاسو ) يعنې الله دهمدي يهودانو ګمراهانو په دښمني ښه عالم دي تر تاسی نو تري په څنګ شئ ﴿ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَلِيًّا وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ نَصِيرًا ﴾ او کافی دي الله ولی (دوست حمايت کونکي ) ستاسي ) او کافی دي الله مددګار (ستاسی) نو په الله باندی ويسا(تکيه) کوئ او يوازې په همده ﷻ باندی باور ولرئ چې هغه ددوی فريب له تاسو څخه منع کوي بيا الله ددوی لعينانو څه قبائح راوړي چې : ﴿ مِّنَ ٱلَّذِينَ هَادُوا۟ يُحَرِّفُونَ ٱلْكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِۦ ﴾ (ځينی له هغو کسانو چې يهودان شوي دي اړوي دوی خبري (دشريعت او محمدي اوصاف) له ځايوددي (خبرو) څخه يعنی ددغو يهودانو يوه ډله داسی کسان دي چې په تورات کښی دالله ﷻ کلام بدلوي او دالله ﷻ له مراد څخه پرته يې تفسير کوي دوی په لوي لاس (قصداً ) درسول الله ﷺ اوصاف او درجم احکام او نور تغير کړي دي.

﴿ وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا ﴾ (او وايي (دغه يهودان ) واوريدله مونږ(وينا ستا ) او ونه مانو مونږ(حکم ستا ) يعنی کله چې يې ته ايمان ته دعوت کړي وايي چې ستا خبره مو واوريده او ستا حکم مو ونه مانه مجاهد وايي چې معنايې داده : ای محمده څه چې دي ووېل مونږ واوريدل خو منويې نه ! او دغه په کفراوعناد کښې خوراسخت دريز دی ﴿ وَٱسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ ﴾ (او وايي ) يهودان واوره (ته) پداسی حال کښی چې نه يې اورول شوي) يعنی واوره هغه څه چې مونږ يې وايو ،نه دی واورولی شی ته ! دغه خبره دوه مخه لري دخير او شر دواړه احتمالات پکښې شته اصلاً خو دخير او دعا په بڼه ده چې بده خبره دی وانه وري لکن پليتو يهودانو به رسول الله ﷺ ته دښيرا کولو لپاره ويل يعنی الله دی مه اوروه او دغه ګواکي په مرګ او يا کوڼ والی باندی هغه ته ښيرا کول وو. ﴿ وَرَٰعِنَا ﴾ (او وايي يهودان لفظ د(راعنا ) يعنی دوی دخپل خطاب په ترڅ کښې (دراعنا ) کلمه وايي چې دښکنځلو په معنا او حماقت ته وايي نو دوی به دغه کلمه په رسول الله ﷺ باندی دملنډې وهلو په نيت کارو له داسی خبره به يې کوله چې دوه مخه به يې

درولودل دوی به د سپکاوي اوښکنځلو نیت کاووا وپه ظاهره سره به یې عزت اواکرام څرګندول څکه الله ﷻ فرمایي: ﴿لَيًّا بِأَلۡسِنَتِهِمۡ وَطَعۡنًا فِي ٱلدِّينِ﴾ (په تاوولو دژبو خپلو او په عیب ویلو سره په دین کښې ،یعنې دوی به له حق څخه باطل ته اړوله اوداسلام بدی به یې ښودله ابن عطیه وایې چې داتراوسه لاهم په یهودانو کښې شته خپلو اولادونو ته داسې کلماتې وریادوي چې په ظاهره عزت وي خودوی دتحقیراوسپکاوي اراده کوي(١) ﴿وَلَوۡ أَنَّهُمۡ قَالُواْ سَمِعۡنَا وَأَطَعۡنَا﴾ اوکه بیشکه دوی ویلی وایې واوریده مونږ(وبناستا ) اوومانو مونږ(حکم ستا په بدل د(عصینا ) کښې ﴿وَٱسۡمَعۡ وَٱنظُرۡنَا﴾ (اوکه دوی ویلی وای) واوره (بی له غیرمسمع ) اونظر لره پرمونږ(په بدل ( دراعنا ) کښې یعنې که دغویهودانورسول الله ﷺ ته دغه پسته خبره دهغې شدلي خبرې په بدل کښی کړی وای (لَكَانَ خَيۡرٗا لَّهُمۡ وَأَقۡوَمَ﴾ نوخامخابه ووخیردوی ته اوډیره سمه (داوینا ) په نزدد الله ﷻ ﴿وَلَٰكِن لَّعَنَهُمُ ٱللَّهُ بِكُفۡرِهِمۡ فَلَا يُؤۡمِنُونَ إِلَّا قَلِيلٗا﴾ (اولیکن لیری کړی دی الله دوی　( له خپله رحمته ) په سبب دکفرددوی پس نه راوړي ایمان ( له دغویهودانو ) مګرلږ ) یعنی دوی الله ﷻ له هدایت اورحمت څخه لیري کړی دادهغوئ دپخوانی کفرپه سبب نوایمان نه راوړي مګرلږایمان زمخشري وایې: یعنی کمزوری ایمان چې ورباندی باورنشي کیدای (٢)هغه چې دوی په ځینو کتابواوځینو رسولانو ایمان راوړي وروسته الله پاک دوی ته دحواسو په له منځه وړلو تهدیدورکړي دي فرمایي: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ ءَامِنُواْ بِمَا نَزَّلۡنَا﴾ (اي هغو کسانوچې ورکړل شوي دي دوی ته کتاب (ای کتابیانو ) ایمان راوړئ تاسی په هغه قرآن چې نازل کړي دی مونږ ) یعنی ای دیهودانوتولی په هغه قرآن چې مونږپه محمد ﷺ نازل کړی دی ایمان راوړئ ﴿مُصَدِّقٗا لِّمَا مَعَكُم﴾ حال داچې تصدیق کونکي دی دهغه کتاب(تورات) چې تاسی سره دی ﴿مِّن قَبۡلِ أَن نَّطۡمِسَ وُجُوهٗا فَنَرُدَّهَا عَلَىٰٓ أَدۡبَارِهَآ﴾ (پخواله دی چې هوارکړومونږ ډیرمخونه نوو ګرزوودا(هوار مخونه) په شاګانو د دوی) یعنی هوارکړوحواس چې پوزه سترګي وروځې دی آن تردي چې لکه شاګانې داسی وګرزي او دغه دانسان دمحاسنو خوراستره تشویه اوبدرنګي دی داداابن عباس ﷺ تفسیردی (٣) ﴿أَوۡ نَلۡعَنَهُمۡ كَمَا لَعَنَّآ أَصۡحَٰبَ ٱلسَّبۡتِۚ﴾ (یاپخواله دی چې لعنت وکړوپردوی لکه چې لعنت کړي وومونږ پرښنبتنانو دورځې دشنبې ) یعنی چې مسخ یې کړولکه چې (اصحاب السبت ) مومسخ کړي ووهغوئ چې دشنبې په ورځ یې تجاوزکاوو الله ﷻ هغوئ په بیزوګانواوخنزیرانو مسخ کړل ﴿وَكَانَ أَمۡرُ ٱللَّهِ مَفۡعُولًا﴾ اودی امر(حکم) دالله کیدونکي (خامخا ) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ وَيَغۡفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُۚ﴾ بیشکه چې الله نه بښي

---

(١)البحرالمحیط ٣ / ٢٧٤

(٢) الکشاف١/٤٠١

(٣) دغه دطبری هم غوره ده وایې ترپخواله دی چې دسترګواثاریې ورک شی هواري شی اولکه شاګانې داسی وګرزي نوسترګې به یې په ملاکښې وي اودشاپه خوابه درومي.

داچې شریک ونیولی شی له (الله سره) اوبښی (هغه گناه) چې ښکته وی له شرکه هغه چاته چې اراده وفرمايي (دمغفرت يې) يعنی الله شرک نه ښښي اوله دي پرته نورگناهونه چې دچادمغفرت اراده وکړي وربښي يې (وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَىٰ إِثْمًا عَظِيمًا) (اوهرهغه څوک چې شریک ونیسی له الله سره نوپه تحقيق ويې ترل ( په الله ) دروغ لوي اوويې کړه گناه ډیره لویه ) طبری وايي: چې له آيت شريف څخه داسی څرگندیږي چې دکبیره گنهکاربښنه دالله په اراده پوري ترلی که اراده يې وه ښښي يې اوکه اراده يې شوه عذاب به ورکوي ترڅوچې کبیره گناه يې شرک ته نه وی رسیدلی (۱) بیاالله پاک دیهودانوهغه دځان سپيناوي (تزکيه) بيانوي سره له دی چې دکتاب يې تحریف کاووا وکفریې غوره کړي ووالله فرمايي: ( أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُم ) (آیاندی کتلی تا( نه یې خبرله حاله د ) هغوکسانو چې پاکوي دوی ځانونه خپل ) یعنی آیاتاته دهغوکسانوخبرندی رسیدلی چې دوی دخپلوځانونوصفت کوي اودتقوی اوطاعت دعوی لری؛ استفهام دتعجب لپاره دی چې ددوی شان دتعجب وړدی قتاده وايي چې دغه دالله دښمنان يهودان دي چې وايي: (نحن أبناء الله و أحباؤه) اوويل به يې: (لاذنوب لنا) (۲)،(بَلِ اللَّهُ يُزَكِّي مَن يَشَاءُ ) (اوپه واقع کښې داسی نه دی ) بلکه (خاص) الله پاکوي هغه څوک چې اراده وفرمايي د(پاکي يې) الله ﷻ داموروپه حقائقوښه عالم دی پټ اسراراورازونه ورته معلوم دي دهغه چاتزکيه اوپاکي کوي چې رضايې شی اوهغوئ ابراراواطهاردی نه یهودان اشرار(وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ) اوظلم به ونکړي شی پردوی په اندازه دیونړي تار(هغه چې دخرمادزړي په درزکښې وي اوداگواکي دلږوالی لپاره متل دي لکه چې ویلی شی: ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ﴾ [النسآء:۴۰]. ﴿ انظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَكَفَىٰ بِهِ إِثْمًا مُّبِينًا ﴾ (وگوره ( اي محمده ) چې څرنگه تړي ذوی په الله باندی دروغ ) دا د دوی له افتراء او دروغوڅخه تعجب دی چې دوی څرنگه په الله دروغ تړي اوځان سپينوي اودغه ادعاکوي چې دوی دالله زامن اودوستان دي ؟﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ ﴾ آیانه دي کتلي تاهغو کسانو ته چې ورکړی شوی دی دوی ته برخه له کتاب څخه ایمان راوړي دوی په بت اوپه شيطان ) استفهام دتعجب لپاره دی اومراددلته هم یهودان دي چې دتورات یوڅه برخه هم ورکړل شوي خوله دي سره سره په بتانو ،اوثانوباندی ایمان لري ﴿ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هَٰؤُلَاءِ أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا ﴾ اووايي دوی په حق دهغوکسانوکښې چې کافران شوي دی دا(کفار) ښه لاره موندونکي دي له هغوکسانوڅخه چې مؤمنان دی له جهته دلاري ) یعنی یهودان دقریشوکافرانوته وايي چې تاسوترمحمداودهغه ترملگروښه لاره موندونکي یاست ابن کثیروايي چې : دوی کفارترمسلمانانوبهترگڼي څکه دوی جاهلان اودالله په کتاب هغه چې ددوی په لاس کښې دي کافران

---

(۱) الطبری ۸/۴۵۰.
(۲) الطبری ۸/۴۵۲

دی (۱) الله تعالی له دوی څخه داخبارپه توګه فرمايي: ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَعَنَهُمُ ٱللَّهُۖ وَمَن يَلۡعَنِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ نَصِيرًا ﴾ (داحکم کونکي په غوره والی دکفارو) هغه کسان دي چې لعنت کړی دی (پردوی باندی) الله اوهرهغه څوک چې لعنت (پری) وکړي الله نوله سره نه مومي (ته) ده لره کوم مددګار(دعذاب دفع کونکي) يعنی څوک چې دالله له رحمت څخه وشړل شي نوبيابه څوک دوی دالله له عذاب څخه وژغوری ؟ اودلعنت اثاربه ځينی منع کړي هغه چې دردناک عذاب دي ﴿ أَمۡ لَهُمۡ نَصِيبٞ مِّنَ ٱلۡمُلۡكِ ﴾ آياشته يهودانوته څه برخه له سلطنته ؟ داخبره دانکارپه توګه ده يعنی نشته دوی لره له پاچهي څخه هيڅ شی ﴿ فَإِذٗا لَّا يُؤۡتُونَ ٱلنَّاسَ نَقِيرًا ﴾ (اوکه شي دوی لره برخه) نوپه دغه وخت کښې به ورنکړي دوی خلګوته (په اندازه) دنقير) څکه دوی خورابخيلان دي (نقير) هم لکه د(فتيل) غونډي په لړوالی کښې مس دي اوداهغه ټکي دي چې دخرمادزړي په شالګيدلی وي بياوروسته ددوی تربخل لاهم بدصفت داسی بيانيږی ﴿ أَمۡ يَحۡسُدُونَ ٱلنَّاسَ عَلَىٰ مَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضۡلِهِۦۖ ﴾ (بلکه آيا حسد کوي دغه (يهودان) خلګوسره (له محمده اواصحابوسره يې) پرهغه شي چې ورکړي دی الله هغوئ ته له فضله خپله) ابن عباس ﷺ وايي چې: دوی له نبی ﷺ سره په نبوت اوله اصحابوسره يې په ايمان راوړلو کينه اورخه درلوده معناداچې آيادوی له نبی اواصحابومؤمنانو سره په نبوت هغه چې الله په محمد ﷺ باندي فضل کړي اوعربان يې وربانډی مشرف کړي کينه کوئ اوله مؤمنانوسره پدې حسد پالئ ؟ چې الله هغوئ ته زيات عزت اوتمکين ورکړي دی ﴿ فَقَدۡ ءَاتَيۡنَآ ءَالَ إِبۡرَٰهِيمَ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡحِكۡمَةَ وَءَاتَيۡنَٰهُم مُّلۡكًا عَظِيمٗا ﴾ نوپه تحقيق سره ورکړي دی مونږ اولادې دابراهيم ته کتاب (تورات) زبور، انجيل) اوحکمت اوورکړي دی مونږدوی ته لوي سلطنت) يعنی مونږستاسواسلافوته دابراهيم ﷺ له اولادې څخه نبوت لورولی پرهغوئ موکتابونه نازل کړی هغوئ ته موسترسلطنت ورکړي لکه داؤد ﷺ اوسليمان ﷺ چې له نبوت سره سره پاچهي يی هم درلوده نوولی تاسی يوازي له محمد ﷺ سره حسد کوئ پرته له نوروچې الله په هغوئ هم نعمت کړي وو ؟ اومقصد دلته په يهودانوباندی درسول الله سره په حسد کولورددي چې دوی ته خوهغه دابراهيم ﷺ په اولادباندي دالله فضل معلوم وو ﴿ فَمِنۡهُم مَّنۡ ءَامَنَ بِهِۦ وَمِنۡهُم مَّن صَدَّ عَنۡهُۚ ﴾ نوځينی له دغويهودانو)هغه دي چې ايمان يې راوړی دی په محمد اوځينی له دغو(يهودانو)هغه دي چې څنګ يې کړی دی له محمد څخه) يعنی ځينوچې په رسول الله ﷺ ايمان راوړی هغوئ دلږکيوڅخه اوچاچې څنګ کړی اوايمان يې ندی راوړي ډيردی لکه دالله ﷺ داقول چې: فَمِنۡهُم مُّهۡتَدٖۖ وَكَثِيرٞ مِّنۡهُمۡ فَٰسِقُونَ ﴿٢٦﴾ الحديد: ۲۶ ﴿ وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ﴾ اوبس دی دوزخ (دکفارو دعذاب دپاره) لمبې وهونکي) يعنی ددوی لپاره ددوی دکفراو عناد په وجه ځوښ وهونکي دوزخ کافی دی ورروسته بيا الله دهغه سخت عذاب دوعيدچې کافرانو فاجرانو ته يې تيارکړي داسي خبرورکوي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِنَا سَوۡفَ

(۱) مختصرابن کثير۱ /۴۰۳

نُصْلِيهِمْ نَارًا ﴾ بیشکه هغه کسان چې کافران شوی دی په آیتونو زمونږ ژر به ننی باسو مونږ دوی اور ته (چې پکښې سوځلی شی) دهغوئ مخونه او څرمنې کبابوي ﴿ كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُم بَدَّلْنَٰهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا لِيَذُوقُوا۟ الْعَذَابَ ﴾ هرکله چې پاخه شی (وسوځي) پوستکي ددوی (په اورکښې نو) بدلوو مونږ دوی ته پوستکي غیرله هغو، لپاره ددی چې وڅکي دوی (تل ترتله نوي نوی) عذاب حسن رحمه الله وایې چې دوی به اورپه ورځ کښې اویازره خله پخوي کله یې اوروسوځي اووخوري ورته به وویل شی چې بیرته راوګرزئ اوبیابه ورته راوګرزي لکه پخوا غوندی ؛ ربیع وایې دکفاروپند پوستکي به څلوېښت ذراع وي ګیده به یې دومره غټه وي که غروراچوي پکښې به ځائیږي کله چې اوربې څرمنې وسوځوي نوری به وربائدی خورې شی په حدیث شریف کښې راځي چې دوزخیان دومره غټ شي چې دغوږوله نرمیو ترغاړې پورې به یې داووسوو کلونو لاروي او دڅرمنې پنډوالی به یې اویاذراع وي دژامې غاښ به یې دأحد دغره په شان وی (۱)﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴾ بیشکه چې الله دی ښه غالب قوی لوي حکمت والا ) یعنی هغه غالب اوقوی دی چې هیڅ څیزیې مانع نشی کیدای اودحکمت خاوند دی عذاب هیچاته له عدل نه پرته په ظلم نه ورکوی ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ﴾ (داهغه کسان چې ایمان یې راوړي دی اوکړی یې دی ښه عملونه ژر به داخل کړودوی په هغوجنتونو کښې چې بهیږي له لاندی د(مانیواوونو) ددوی ویالې همیشه به وی دوی په دغو(جنتونو) کښې تل ترتله ) دغه دنیکمرغه کسانو دراتلونکي ښخه اخبار دي چې ژر به دوی ننی باسوهغو جنتونوته چې هلته ویالې بهیږي هرچېری چې وغواړي هلته به اوسی تل ترتله به ژوندی اومرینه به نلري ﴿ لَّهُمْ فِيهَآ أَزْوَٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ ﴾ وي به دوی ته په دی جنتونو کښی ښځې پاکی کړی شوی (له تولو ناپاکیو څخه ) مجاهدوایې چې پاکي به وی له ټولو ناپاکیولکه بولی ، حیض ، ناړي دپوزې ګرنګ ، منی اوذوذات راوړل ﴿ وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا ﴾ (اومونږبه ننی باسودوی په ګڼو سیوریو کښې ) یعنی داسی سیوری به وی چې لمراوتودوخه به وربائدی اغیزنه کوي حسن وایې چې په ظلیل باندی یې وستایل ځکه هغه څه چې ددنیاسیوري ته ورننوزی دجنت سیوري ته به نه ورننوزي لکه ګرم بادونه اوتوده هواپه حدیث شریف کښې راځي چې په جنت کښې داسی ونه شته چې (دآس ) سپوربه یې په سیوري کښې سل کاله تګ وکړي لابه یی هم بشپړنه کړي (۲)

**بلاغت:**

پدي آیتونو کښې چې دفصاحت اوبلاغت کومي ښکلاوي شته په لاندی ډول دی.

---

(۱) اخرجه احمد فی المسند.

(۲) اخرجه الشیخان.

۱ – مرسل مجازلکه پدی کلماتوکښې (أم يحسدون الناس) مراد دلته محمد ﷺ دی ځکه نوتسميه دخاص په اسم دعام سره وشوه چې رسول الله ﷺ هغه سپيځلی ذات دی چې د ټولوبنيو او ورو ستنيوکمالات ورکول شوي دي.

۲ – استعاره پدی قول کښې (يشترون الضلالة) ځکه گمراهي خو نه پيرل کيږي او (ليذوقوا العذاب) ځکه خوند خوپه خوله اخيستل کيږي اودلته دددرد لپاره استعاره راوړل شوه هغه چې انسان ته رسيږي اوهمدارنگه په (ليا بألسنتهم) کښې ځکه (اللّيّ) په اصل کښې درسۍ تاوولوته وايې اودلته دهغې خبرې لپاره رواړل شوی چې ظاهري مرادنه وی اوداسی په (نطمس وجوها) کښې چې دمخونوله مسخ کولوڅخه عبارت دی اوله هغې ليکلی پاڼي سره تشبيه شوي چې توري اوليک يې وران شي.

۳ – استفهام دتعجب لپاره لکه پدی جملوکښې (الم تر) دوه ځلی.

۴ – تعجب دامرپه لفظ سره لکه (انظر كيف يفترون) اودخطاب رنگينې لکه (يفترون) چې دماضی زمانې په ځای راغلی ترڅوچې په دوام اواستمراردلالت وکړي.

۵ – هغه استفهام چې توبيخ اوتقريع يې مقصدوی لکه د(أم لهم نصيب) او(أم يحسدون) په کلماتوکښې.

۶ – تعريض لکه پدی کلام کښی چې: (فإذا لا يأتون الناس نقيرا) داددوی دسخت بخل لپاره تعريض دی.

۷ – دطباق صنعت لکه په: (وجوه...ادبار) او(امنوا...وكفروا) کښې.

۸ – داشتقاق جناس لکه (تلعنهم...ولعنا) او(يؤتون...و أتاهم) اوپه (ظلا ظليلا) کښې.

۹ – اطناب په ځوځايونوکښې اوهمدارنگه حذف په ځوځايونوکښې.

الله تعالی فرمايي:

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا۟ ٱلْأَمَٰنَٰتِ إِلَىٰٓ أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ ٱلنَّاسِ أَن تَحْكُمُوا۟ بِٱلْعَدْلِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِۦٓ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ سَمِيعًۢا بَصِيرًا ﴿٥٨﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ وَأُو۟لِى ٱلْأَمْرِ مِنكُمْ ۖ فَإِن تَنَٰزَعْتُمْ فِى شَىْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴿٥٩﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓا۟ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓا۟ أَن يَكْفُرُوا۟ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴿٦٠﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَإِلَى ٱلرَّسُولِ رَأَيْتَ ٱلْمُنَٰفِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا ﴿٦١﴾ فَكَيْفَ إِذَآ أَصَٰبَتْهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ثُمَّ جَآءُوكَ يَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ إِنْ أَرَدْنَآ إِلَّآ إِحْسَٰنًا وَتَوْفِيقًا ﴿٦٢﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يَعْلَمُ ٱللَّهُ مَا فِى قُلُوبِهِمْ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُل لَّهُمْ فِىٓ أَنفُسِهِمْ قَوْلًۢا بَلِيغًا ﴿٦٣﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۚ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ جَآءُوكَ فَٱسْتَغْفَرُوا۟ ٱللَّهَ وَٱسْتَغْفَرَ لَهُمُ ٱلرَّسُولُ لَوَجَدُوا۟ ٱللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿٦٤﴾ فَلَا

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ
وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾ وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِن دِيَارِكُم مَّا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِّنْهُمْ
وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا ﴿٦٦﴾ وَإِذًا لَّآتَيْنَاهُم مِّن لَّدُنَّا أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٦٧﴾
وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴿٦٨﴾ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ
وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا ﴿٦٩﴾ ذَٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللَّهِ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ عَلِيمًا
﴿٧٠﴾

## منا سبت او تړاو:

کله چې الله پاک دیهودانو دحسد، عناداوانکارحال بیان کړاوهغه څه یې وښودل چې ددوی لپاره به په آخرت کښې عذاب اوسزاورکول کیږی وروسته یې مسلمانانوته دنیکمرغي دلاري ښوونه وکړه چې دالله اورسول اطاعت اوداماناتوسپارل،دخلکوترمینځ په عدل حکم اوفیصله کول دی وروسته دمنافقینو صفتونه راوړل چې ښایې مسلمانان ددوی څخه وویریږي اوځانونه ځینی لیری کړي.

## دنزول سبب:

أ – روایت کیږي چې کله رسول الله ﷺ دمکې دفتح په ورځ مکې مکرمې ته داخل شونو(عثمان بن طلحة ) دکعبې شریفې دروازه وتړله اوبام ته . وخوت اونه یې غوښتل رسول الله ﷺ ته یې مفتاح (کِلي) ورکړی ویل یې که زه پدې پوهیدلای چې دی دالله استازی اورسول دي (کِلی) مفتاح می نه ځینی منع کوله نوحضرت علی کرم الله وجهه دهغه لاس ورتاوکړاوپه زوره یې کِلی (مفتاح) ځینی واخیستله دروازه یې پرانستله اورسول الله ﷺ وردننه شودوه رکعته لمونځ یې وکړاړل کله چې بهرراووت حضرت علی ته یې وفرمایل چې بیرته چابی (کِلی) ( عثمان بن طلحة ) ته وسپاری اوعذر ورته وواېې عثمان ورته وویل: زه دی وځورولم په زوره دی راڅخه مفتاح (کِلی ) واخیسته وروسته بیا نرمي اومهربانی کوي؟ ! نو بیا یې ورته وویل الله ستاپه باب کښې قرآن نازل کړ( إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا )النساء: ٥٨ اوآیت شریف یې ورته ولوست عثمان مسلمان شووروسته رسول الله ﷺ داسی وفرمایل ای دبنی طلحة زامنوو تل ترتله اخلئ دادکعبې مفتاح هیڅوک به یې درڅخه نه اخلی مګرچې ظالم وی(١)

ب: له ابن عباس ﷺ څخه روایت شوی چې دمنافقینویوتن چې (بشر) نومیده له یوبل یهودي سره یې دعوه درلوده یهودي ورته وویل فیصله به په محمدکوومنافق غوښتل چې دفیصلې لپاره (کعب بن الاشرف ) ته ولاړشی اوهغه داسی څوک دي چې الله ﷺ طاغوت بللی دی خویهودي هیڅکله نه منله چې له رسول الله ﷺ پرته په بل چافیصله وکړی نوهغه ووچې رسول الله ﷺ دیهودي په حق کښې فیصله وکړه اوچې رسول الله ﷺ له مجلس نه رابهرشول منافق نه منله اوویل یې راشه چې په عمر بن الخطاب فیصله

(١) الفخرالرازی ١٠/١٣٨اسباب النزول ص٩٠

وکړودواړه حضرت عمر ﷺ ته راغلل یهودی ورته وویل : زما اوددې سړی ترمینځ دعوی وه اومحمد ته دفیصلې لپاره ورغلوهغه زما په باب دحق فیصله صادره کړه خودی دهغه فیصله نه مني اوداسی فکرکوی چې ته فیصله وکړې عمر ﷺ منافق ته وویل چې دغسی ده ؟ هغه وویل هو نوعمر ﷺ ورته وویل پخپل ځای ودریږئ ترڅوزه راووزم اوعمرننوت توره یې راواخیسته راووت اومنافق یې ورباندی وواهوچې مړشوورته ویل یې زه بیا دهغه چاپه باب چې درسول الله ﷺ فیصله نه مني داسی فیصله کوم نوداآیت نازل شو: (أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ ) ([1])

لغتونه:

(نعما) اصل یې (نعم ما ) وویعنی ښه دی هغه څه چې الله تاسوته درباندی پند درکوی (تاویلا) انجام اوعاقبت (یزعمون) دوی گمان کوی زعم گمانې عقیدې ته وایې لیث وایې چې عربان وایې (زعم فلان) کله چې شکمن وی آیادابه رښتیاوي که دروغ؟ ابن درید وایې چې زعم ډیرځله دباطل په هکله راځي لکه چې دوی وایي : (زعموامطية الكذب)گومان د دروغو سورلۍ ده (توفيقا) موافقت اوالفت ته وايې موافق دمخالف ضددي (بليغا) مؤثراغيزلرونکي (شجر) گډوډ اومختلف ونې ته څکه شجروايې چې ښاخونه يې سره اوډلی اوځينی په ځينونوروکښې گډوډوي (حرجا) تنگسيااوشک ، واحدي وايې چې حرج هغې گڼې ونې ته وايې چې په سختې ورته رسيدل (نفوذ) کيږي.

تفسیر:

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا۟ ٱلْأَمَٰنَٰتِ إِلَىٰٓ أَهْلِهَا ﴾ ( بیشکه الله امرکوي پرتاسی ( ای مؤمنانو ) ددې چې وسپارئ تاسی امانتونه اهل داماناتوته ) خطاب عام اوتولو مکلفینوته متوجه دی لکه چې امانات عام اوپه ذمه باندی ټولوحقوقوته شامل دی هغه که دالله تعالی حقوق وي که دبندگانو یې زمخشری وایې خطاب د هرچا لپاره په هر امانت کښی عام دی ([2])اومعنی دا چې اي مؤمنانو الله درته امرکوي چې امانتونه دهغوئ خاوندانو ته وسپارئ ابن کثیر وایې چې الله دامانتونوسپارل ښتننانوته یې امر کړی اودا ټول واجب امانتونه چې دانسان په غاړه دالله له حقوقوي لکه لمونځ ،زکات ، روژه ، کفارات اوداسی نور او که د بندگانوحقوق وي چې یو پر بل یې لري لکه امانات (ودائع ) اونور([3])﴿ وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ ٱلنَّاسِ أَن تَحْكُمُوا۟ بِٱلْعَدْلِ ﴾ (اوکله چې حکم کوئ تاسی په مینځ دخلکو کښې نوحکم وکړئ په انصاف سره ) یعنی تاسوته امرکوي دخلکو ترمینځ په انصاف فیصلې وکړئ ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِۦٓ ﴾ بیشکه الله ښه شي چې پند در کوي تاسي ته په هغه سره یعنی بیشکه الله په ښه شی سره پند درکوی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ سَمِيعًۢا بَصِيرًا ﴾ بیشکه چې الله ښه اوریدونکی دی (ستاسودخبرو ) ښه لیدونکي دی (ستاسودافعالو ) پدی

---

([1]) الکشاف ۱ / ۴۰۲ – القرطبی ۵ / ۲۶۴

([2]) الکشاف ۱ / ۴۰۵

([3]) مختصر ابن کثیر ۱ / ۴۰۵

کښې وعد او وعید نغښتي دی. ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡ ﴾ (اي هغو کسانو چې ایمان یې راوړي دی (اي مؤمنانو) حکم ومنئ تاسی د الله او حکم ومنئ تاسی د رسول الله ﷺ او (حکم) ومنئ د خاوندانو د حکم له تاسی نه) یعنی حکم ومنئ د الله او د رسول په منګولو لګولو په کتاب او سنت باندی او همدا راز د مسلمانانو حاکمانو چې د الله په شریعت متمسکین وي د دوی حکم ومنئ او له دي پرته یې متابعت نشته ځکه (لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق) او پدې کلمه کښې چې فرمایې:

﴿مِنكُمۡ﴾ دي ته اشاره ده چې حاکمان به ارو مرو په بشپړه توګه مسلمانان وي په واقعي توګه به یې اسلام په ځان منلی وي غوښې وینې به یې له اسلامه جوړې وي نه داچې یوازي په شکل او نامه به مسلمان یادیږي. ﴿ فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ ﴾ نو بیا که جګړه وکړه تاسی په یوه شی کښې نو وګرځوئ تاسی دا (کار) طرف د الله ته (د الله کتاب ته) او رسول ته (د رسول الله سنت ته) ﴿ إِن كُنتُمۡ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ (که یئ تاسی چې ایمان لرئ په الله او په ورځې آخري د (قیامت) باندی) یعنی که تاسو په اخلاص سره مؤمنان یاست دا هغه شرط دي چې خواب یې حذف شوي ځکه چې پخوانی وروباندي دلالت کوي یعنی نو ویې ګرځوئ طرف د الله او رسول ته او غرض له دی څخه په کتاب الله او سنت د رسول الله باندی د منګولو لګولو هڅونه ده لکه چې یو څوک وایي (ان کنت ابنی فلاتخالفنی) که چېرې زما زوي یې نو مخالفت مي مکوه ﴿ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلًا ﴾ دغه (رجوع الله او رسول الله ته) خیر (ډیر غوره) ده او دا (رجوع) ډیره ښه د عاقبت له جهته بیا الله تعالی د منافقینو هغه خواص ذکر کوي چې دوی به د ایمان دعوی کوله خو زړونه به یې له ایمان څخه خالی وو ﴿ أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزۡعُمُونَ أَنَّهُمۡ ءَامَنُواْ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبۡلِكَ ﴾ آیا نه دی کتلی تا؟ هغو کسانو ته چې ظاهري) دعوی کوي دوی چې بیشکه دوی ایمان راوړی دی په هغه (قرآن) چې نازل کړی شوی دی تا ته (ای محمده) او په هغو (کتابونو) چې نازل کړي شوی دی پخوا له تانه (ای محمده!) د اتعجب کول دي په حال د هغو کسانو چې د ایمان دعوی لري خو بیا هم د الله حکم نه مني یعنی ته تعجب نه کوي د دغو منافقینو له کړو ړو څخه چې دوی په قرآن کریم باندی د ایمان راوړلو دعوی کوي او همدا رنګه په پخوانیو نازل شوی کتابونو باندی ترتا ځان مؤمن ګڼي ﴿ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ ﴾ اراده لري دوی چې ورو ړي (خصومت خپل) په طرف د شیطان (کعب بن الاشرف) یعنی دوی غواړي د خپل قضیې فیصله په طاغوت وکړي ابن عباس رضي الله عنه وايي چې: هغه کعب بن الاشرف دي چې د یهودانو له طغاتو او سرغړونکو څخه یو تن وو هغه ته طاغوت ځکه وویل شو چې په طغیان کښی یې افراط کا او د رسول الله ﷺ سره یې عداوت درلود ﴿ وَقَدۡ أُمِرُوٓاْ أَن يَكۡفُرُواْ بِهِۦ ﴾ او په تحقیق حکم کړي شوی و ودوی ته چې کافر دي شی دوی په ده سره (ویې نه مني یعنی حال دا چې دوی ته امر شوي وو چې په الله ایمان راوړي او له الله پرته بل څوک ونه مني ﴿ فَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤۡمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسۡتَمۡسَكَ

بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ﴾ [البقرة: ۲۵۶] ﴿ وَيُرِيدُ الشَّيْطٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلٰلًا بَعِيدًا ﴾ او اراده لري شيطان دا چې گمراه کړي دوی په گمراهی لیری سره ( له حقه ) یعنی شیطان اراده لری چې دوی له هدایت او له حق څخه لیرې او کاږه کړي په سبب د هغو اعمالو چې ورته یې ښائسته کړي دی. ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ ﴾ او کله چې وویل شي دي ( منافقانو ته ) راشئ طرف د ( حکم ) د هغه کتاب ) ته چې نازل کړي دی الله ( قرآن ) ته او طرف ته د ( حکم ) د رسول دده ) ته ( د فیصلې لپاره ) ﴿ رَأَيْتَ الْمُنٰفِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا ﴾ ( نو گوري به ته منافقان چې گرزي به له تا په گرزیدلو سره ) یعنی د نفاق له امله به دوی له تا څخه اعراض او څنگ کوي په څنگ کولو سره ﴿ فَكَيْفَ إِذَا أَصٰبَتْهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ﴾ ( نو څه به وي ( حال د دوی ) کله چې ورسیږي دوی ته کوم مصیبت په سبب د هغو ( گناهونو ) چې وړاندی لیږدولی دي لاسونو د دوی ) یعنی د دوی به څه حال وي کله چې یې الله د دوی د گناهونو په سبب په عذاب اخته کړي؟ آیا کولای شی څوک چې له دوی څخه عذاب دفع کړي؟ ﴿ ثُمَّ جَآءُوكَ يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنْ أَرَدْنَآ إِلَّآ إِحْسٰنًا وَتَوْفِيقًا ﴾ بیا به راشی دوی تا ته ( ای محمده! ) چې قسمونه به خوري په الله چې اراده نه وه کړي مونږ مگر د ښیگڼي او موافقت ) یعنی وروسته بیا د غه منافقین تا ته د عذر لپاره راځي د هغو گناهونو په هکله چې دوی ترسره کړي قسمونه کوي چې دوی په بل چا باندی د فیصلې کولو دې اراده درلوده چې د دواړو متخاصمو خواوو ترمینځ صلح او موافقت راشی دا د دوی مقصد نه وو چې ستا حکم یې نه منل الله تعالی د دوی د تکذیب په هکله فرمایي: ﴿ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللَّهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ ﴾ ( دغه منافقان ) هغه کسان دي چې معلوم دي الله ته هغه شی ( هم ) چې په زړونو د دوی کښې دی ) مکر، دوکه پکښې ده دوی غواړی تا په دغه غوره مالی باندی دوکه او تېر باسي ﴿ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ ﴾ نو څنگ وکړه له دوی څخه یعنی د مصلحت په خاطر دوی ته سزا مه ورکوه او دوی ته هغه څه چې تا ته د دوی له پټو رازونو څخه معلوم دی مه لوڅوه ترڅو دوی په وېره او حذر کښې واوسي ﴿ وَعِظْهُمْ ﴾ ( او پند ورکړه دوی ته ) یعنی دوی له تګې او برګې او نفاق څخه په تکونکو آیتونو وویروه ﴿ وَقُل لَّهُمْ فِىٓ أَنفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا ﴾ او ووایه ( ای محمده ) دوی ته په حق د نفسونو د دوی کښې خبره بلیغه ( تاثیرناکه ) یعنی دوی ته ستا او د دوی ترمینځ دا سی اغیزمنه وینا وکړه چې د زړه له کومي یې واوري ترڅو دوی ته ویرونکي او له نفاق څخه راګرځونکي وي بیا الله تعالی د رسولانو دنده داسی بیانوي: ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ ( او نه دي لیږلی مونږ هیڅ رسول مگر ( لیږلی مو دي ) د دي لپاره چې حکم و منل شي دده په اذن د الله سره ) نو طاعت د رسول د الله طاعت دی او معصیت د پیغمبر د الله معصیت او سرغړونه ده ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓا أَنفُسَهُمْ جَآءُوكَ ﴾ ( او بیشکه دغه

(منافقان ) کله چې ظلم وکړي دوی پر ځانونو خپلو راغلی دی تاته ﴿ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ ﴾ پس مغفرت غوښتی وي دوی له الله او مغفرت غوښتي وي دوی ته رسول ) يعنی کله چې همدغه منافقين په خپلو ځانو باندي ستا د حکم د نه منلو له امله ظلم وکړي او بيا تاته له نفاق څخه توبه کاړ اشی او له الله څخه ببښنه غواړي په خپله ګناه اقرار کوي او ته هم له الله څخه ورته مغفرت غواړي چې ددوی ګناوي الله وروبښی ﴿ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴾ ( نو خامخا به موندلی وو دوی الله ښه قبلونکي د توبې ډير رحم والا ) يعنی نو دوی به د الله پراخ رحمت او زيات توبه قبلول د الله پاک ليدلی وو بيا الله تعالی د رښتوني ايمان لار اوليکه داسی ښيي: ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ﴾ ( پس قسم دي په رب ستا چې نه مؤمنان کيږي دوی تر هغو پوري چې حَکم (منصف) کړي دوی تا په هغه جګړه کښې چې پيښه شوي ده په مينځ ددوی کښې) لام د قسم د تاکيد لپاره دی يعنی قسم ستا په رب چې دوی به مؤمنان ونه ګڼل شی تر څو چې تا د خپلو قضايا وو د حل او فصل لپاره منصف ونه تاکي او بيا ستا له حکم څخه غاړه هم ونه غړوي ﴿ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾ بيا ونه مومي په زړونو خپلو کښی ( ناراضي تنګي ) له هغه شي چې فيصله کړی تا او ويې مني دوی په منلو سره ( بی له جګړې په خوښي سره ) ځکه حقيقت د ايمان خضوع او اذعان (باور کول) دي.

﴿ وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِن دِيَارِكُم ﴾ او که په تحقيق موږ فرض کړي وي پدغو (مدعيانو د ايمان ) داچې مړه کړئ تاسی ځانونه خپل يا ووزئ تاسی له کورونو خپلو ) يعنی که موږ پدی منافقانو باندی هغه کړاوونه فرض کړی وای چې په پخوانيو اُمتونو مو فرض کړي وو لکه داچې د ځان وژل او يا له هيواده بهر وتل دی کوم چې په بنی اسرائيلو موفرض کړي وو. ﴿ مَّا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِّنْهُمْ ﴾ نو نه به وو کړي دوی هغه (قتل او جلا ) مګر لږ کسانو له دوی نه ( ځکه ددوی ايمان کمزوري دي )

﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا ﴾ (او که په تحقيق دوی کړي وي هغه چې پند ورکاوه شی دوی ته په هغه سره نو خامخا به وو دا کار ډير غوره دوی ته او ډير به کلک وو له جهته د محکم والی ) يعنی که دوی دغه مأمور به د الله او رسول الله اطاعت کولای ددوی لپاره به اوس او په راتلونکي کښې ډير غوره وو او ددوی د ايمان به ورباندي ټينګوالی راتو،له نفاق او ضلالت څخه به بې ژغورل ﴿ وَإِذًا لَّآتَيْنَاهُم مِّن لَّدُنَّا أَجْرًا عَظِيمًا ﴿ وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾ او په دغه وخت کښې به خامخا ورکړي وو موږ دوی ته ( خاص ) له خپله درباره ډيرلوی اجر او ثواب ) او خامخا به برابر کړی (بيولي ) وو موږ دوي سمي لاري ته يعنی موږ به دوی سمې سيخې لارې ته رهبری کړي وای هغه چې برابره جنت ته رسيدونکي ده بيا الله پاک د الله او رسول د اطاعت ميوه او ګټه داسی ښيي: ﴿ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم ﴾ ( او هر څوک چې حکم ومني د الله او د رسول نو دغه کسان به له

هغوسره وي (په جنت کښی ) چې انعام کړي دی الله پردوی باندی ) يعنی څوک چې دالله اوپيغمبر اوامرومني اوله نواهيوڅخه يې ځان وژغوري الله پاک به يې دعزت په ځای کښی چې تل ترتله جنت دی له مقربينوسره يوځای کړی ﴿مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَ﴾ (چې انبياء اوصديقان دی اوشهيدان اوصالحان دی ) يعنی دوی به دسترومنزلتونوله خاوندانوسره چې سپيځلی انبياء ابرارصديقان چې دانبياووبهتراصحابان دي اوله هغه چاسره چې دالله په لاره کښې يې شهادت ګټلی وي له نوروصالحانوسره ملګري وی ﴿وَحَسُنَ أُوْلَٰٓئِكَ رَفِيقٗا﴾ (اوښه دی دغه کسان له جهته درفاقته) چې ښه ملګري دی له حضرت عائشې رضی الله عنهاڅخه روايت شوی دی چې ويل يې: ماله رسول الله ﷺ څخه په هغه ناروغي کښې چې ځینی وفات شو واوريدل چې ويل يې: ﴿مَعَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَۚ وَحَسُنَ أُوْلَٰٓئِكَ رَفِيقٗا﴾ النساء: ۶۹ نوزه وپوهيدم چې هغه ته اختياروركول شوی دی ([1]) ﴿ذَٰلِكَ ٱلۡفَضۡلُ مِنَ ٱللَّهِۚ﴾ (داملګرتيا فضل (احسان رحمت ) دی له (جانبه ) دالله نه) يعنی دغه اعطامطيعانوته دستراجرايکی يوازی دالله دفضل اومرحمت زيږنده ده ﴿وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ عَلِيمٗا﴾ ( اوکافی دی الله ښه پوه ( په ټولونيتونواوعملونوهم ) يعنی کافی دی الله جزاورکونکي هغه چاته چې اطاعت يې کړی او عالم دی په هغه چاچې دفضل اواحسان وړاومستحق وی.

بلاغت:

دفصاحت اوبديع چې کومي ښکلاوي پدی آيتونوکښې شته په لنډډول ليکل کيږی.

۱- استفهام چې مراد ځينی تعجب وي لکه په (الم تر إلى الذين يزعمون) کښې.

۲- التفات چې پدی کلام کښې راغي: (واستغفر لهم الرسول) چې درسول دشان تفخيم (سترتوب) اوداستغفارتعظيم پکښې نغښتی دی که په خپل اصل راغلی وای نوبه داسی ويل شوي وو(واستغفرت لهم).

۳- امرداخبارپه صورت اوپه پيل کښې يې هغه توری چې تحقيق افاده کوی لکه (انّ) راوړل چې فرمايي (إن الله يأمركم) دتفخيم لپاره اوداچې په امتثال کښې يې دوجوب تأکيدوشي اودپاملرنې وړ وګرزي.

۴- مغايرجناس لکه پدې کلماتوکښې: (يضلهم .. ضلالاً) او(قل لهم قولاً) او(يسلموا تسليماً) او(يصدّون صدودا) او( فاز فوزاً )کښې.

۵- استعاره چې پدی کلام کښې راغلی: (فيما شجر بينهم) دګڼې ونې هغه اوډلی ښاخونه يې دهغې منازعې لپاره استعاره کړي چې خبرې يوپه بل کښې سره ګډي وډي کيږي دلته يې دمعقول لپاره دمحسوس استعاره وکړه.

۶- دالله ﷻ دمبارک نامه په تکرارسره يادول لکه: (إن الله يأمركم)او (إن الله نعما يعظكم به) او (إن الله كان سميعاً) ددی لپاره چې دالله ﷻ دهيبت په هکله نفوس وروزل شي.

---

([1]) مختصرابن کثير۱/ ۴۱۱

۷- اطناب په ځوځایونو او حذف بیا په ځوځایونو کښې.

فائده:

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایې: یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی ورته ویل یې: یا رسول الله بیشکه ته ماته ترخپل ځان او اهل خوراګران یې زه چې په کورکښې یم او ته راپه یادشی توان نلرم خوراشم او تا ووینم کله چې خپل او ستا مرګ راپه یاد کړم نوو پوهیږم که زه جنت ته داخل شوم پدی ویریږم تا به ونه وینم رسول الله ﷺ څه ورته ونه ویل ترڅو الله ﷻ دا آیت نازل کړ: (و من یطع الله و الرسول فاولئك مع الذین انعم الله علیهم ) دا آیت ترپایه(۱)

## الله تعالی فرمایې:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ خُذُواْ حِذْرَكُمْ فَٱنفِرُواْ ثُبَاتٍ أَوِ ٱنفِرُواْ جَمِيعًا ﴿٧١﴾ وَإِنَّ مِنكُمْ لَمَن لَّيُبَطِّئَنَّ فَإِنْ
أَصَٰبَتْكُم مُّصِيبَةٌ قَالَ قَدْ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيَّ إِذْ لَمْ أَكُن مَّعَهُمْ شَهِيدًا ﴿٧٢﴾ وَلَئِنْ أَصَٰبَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ ٱللَّهِ لَيَقُولَنَّ كَأَن لَّمْ
تَكُنۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُۥ مَوَدَّةٌ يَٰلَيْتَنِي كُنتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧٣﴾ ۞ فَلْيُقَٰتِلْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱلَّذِينَ
يَشْرُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا بِٱلْءَاخِرَةِ ۚ وَمَن يُقَٰتِلْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٧٤﴾
وَمَا لَكُمْ لَا تُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلْوِلْدَٰنِ ٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ
ٱلظَّالِمِ أَهْلُهَا وَٱجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَٱجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا ﴿٧٥﴾ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ
يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱلطَّٰغُوتِ فَقَٰتِلُوٓاْ أَوْلِيَآءَ ٱلشَّيْطَٰنِ ۖ إِنَّ كَيْدَ ٱلشَّيْطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا ﴿٧٦﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوٓاْ
أَيْدِيَكُمْ وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ ٱلْقِتَالُ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ ٱلنَّاسَ كَخَشْيَةِ ٱللَّهِ أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً ۚ
وَقَالُواْ رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا ٱلْقِتَالَ لَوْلَآ أَخَّرْتَنَآ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ ۗ قُلْ مَتَٰعُ ٱلدُّنْيَا قَلِيلٌ وَٱلْءَاخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ ٱتَّقَىٰ وَلَا تُظْلَمُونَ
فَتِيلًا ﴿٧٧﴾ أَيْنَمَا تَكُونُواْ يُدْرِككُّمُ ٱلْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ ۗ وَإِن تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُواْ هَٰذِهِۦ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ ۖ وَإِن
تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُواْ هَٰذِهِۦ مِنْ عِندِكَ ۚ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ ۖ فَمَالِ هَٰٓؤُلَآءِ ٱلْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا ﴿٧٨﴾ مَّآ أَصَابَكَ مِنْ
حَسَنَةٍ فَمِنَ ٱللَّهِ ۖ وَمَآ أَصَابَكَ مِن سَيِّئَةٍ فَمِن نَّفْسِكَ ۚ وَأَرْسَلْنَٰكَ لِلنَّاسِ رَسُولًا ۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًا ﴿٧٩﴾ مَّن يُطِعِ ٱلرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ
ٱللَّهَ ۖ وَمَن تَوَلَّىٰ فَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ﴿٨٠﴾ وَيَقُولُونَ طَاعَةٌ فَإِذَا بَرَزُواْ مِنْ عِندِكَ بَيَّتَ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ غَيْرَ
ٱلَّذِي تَقُولُ ۖ وَٱللَّهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُونَ ۖ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلًا ﴿٨١﴾ أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ ٱلْقُرْءَانَ ۚ وَلَوْ
كَانَ مِنْ عِندِ غَيْرِ ٱللَّهِ لَوَجَدُواْ فِيهِ ٱخْتِلَٰفًا كَثِيرًا ﴿٨٢﴾ وَإِذَا جَآءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ ٱلْأَمْنِ أَوِ ٱلْخَوْفِ أَذَاعُواْ بِهِۦ ۖ وَلَوْ
رَدُّوهُ إِلَى ٱلرَّسُولِ وَإِلَىٰٓ أُوْلِي ٱلْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ ٱلَّذِينَ يَسْتَنۢبِطُونَهُۥ مِنْهُمْ ۗ وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُۥ
لَٱتَّبَعْتُمُ ٱلشَّيْطَٰنَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٨٣﴾ فَقَٰتِلْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ ۚ وَحَرِّضِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۖ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَكُفَّ

(۱) اخرجه ابن مردویه.

بَأْسَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ۚ وَٱللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنكِيلًا ﴿٨٤﴾ مَّن يَشْفَعْ شَفَٰعَةً حَسَنَةً يَكُن لَّهُۥ نَصِيبٌ مِّنْهَا ۖ وَمَن
يَشْفَعْ شَفَٰعَةً سَيِّئَةً يَكُن لَّهُۥ كِفْلٌ مِّنْهَا ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ مُّقِيتًا ﴿٨٥﴾ وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا۟ بِأَحْسَنَ مِنْهَآ أَوْ
رُدُّوهَآ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ حَسِيبًا ﴿٨٦﴾ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ ۗ وَمَنْ أَصْدَقُ
مِنَ ٱللَّهِ حَدِيثًا ﴿٨٧﴾

## مناسبت او تړاو:

**کله چې الله له نفاق او منافقینو څخه حذر و فرمایل او د الله او رسول الله د طاعت ماریینه او توصیه یې** وکړه دلته یې د ستر طاعت او لوړ ثواب د عمل امر و فرمایو چې هغه د کلمة الله د اعلاء او دین د احیاء لپاره فی سبیل الله جهاد دي او د اسې د تیارسئ او استعداد امریې وکړ بیا وروسته یې د هغو کسانو حال ښکاره کړ څوک چې له جهاد څخه پاتې شوي او یا تصمیمونه یې او مړي او عزائم یې کمزوري دي هغوئ منافقین دی او مسلمانان یې د دوی له شره څخه وویرول.

## لغتونه:

(ثبات) د (ثبتة) جمع او هغه بیا جماعت او ټولګی ته وایې یعنې ټولګی وروسته له بله (بروج) د برج جمع او لوړي مانۍ ستر قصرته وایې دلته څني مراد برجونه (حصون) دی (بیّت) د شپې پلان جوړولو ته وایې او چې کله وایې ( البیّات) معنی یې داده چې د شپې له خواپه دښمن تاړاک شوي او له دې څخه د عربانو هغه متل هم دي چې وایې ( امرمبیت باللیل ) داهسې کاردي چې د شپې سنجول شوی او غوټه شوی دی (اذاعو به) خپور کړی او رسولی یې دي (یستنبطونه) راایستلی یې دی او له دې کلمې څخه استنباط د احکامو له کتاب او سنت څخه هم اخستل شوي دی (حرض) وهڅوه (تنکیلا) عذاب او سزا (کفل) برخه ، ونډه خو زیاتره په شرکښې استعمالیږي (مقیتا) مقتدر د قدرت خاوند.

## د نزول سبب:

ابن عباس ﷺ وایې چې عبدالرحمن بن عوف او د هغه ملګري په مکه کښې رسول الله ﷺ ته راغلل او ورته ویل یې : ای د الله نبی مونږ چې مشرکان وو په عزت کښې وو خو کله چې مسلمانان شو نو د کافرانو لخوا ذلیل شو که له کفارو سره د جهاد امرراکړی ! رسول الله ورته وویل زه په بښنه او عفوه کولو مأمور یم تاسو له دوی سره مه جنګیږئ ! خو کله چې مدینې منورې ته راغلل نو د قتال امرورته وشو او د دوی څینو کسانو لاس ونیو: بیا الله دا آیت نازل کړچې : (الم تر إلی الذین قیل لهم کفوا أیدیکم و أقیموا الصلاة) (۱)

---

(۱) اسباب النزول ص ۹۲ و القرطبی ۵ / ۲۸۱

تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ خُذُواْ حِذۡرَكُمۡ ﴾ اي هغو كسانوچې ايمان يې راوړى دى ( اي مؤمنانو ) واخلئ تاسي وسلې خپلې وساتئ ځان له كفاروڅخه ﴿ فَٱنفِرُواْ ثُبَاتٍ أَوِ ٱنفِرُواْ جَمِيعًا ﴾ بيا ووزئ تاسى غزاته ډلې ډلې يا ووزئ تاسى ګرد سره يوځاى الله پاک دوى ته اختيار وركړچې تولى تولى وزي اوكه يوځاى لښكر ﴿ وَإِنَّ مِنكُمۡ لَمَن لَّيُبَطِّئَنَّ ﴾ ( اوبيشكه ځينى له تاسى خامخاهغه څوک دى چې هرومرو تأخيربه كوي په تللوكښې ) مرادله دوى څخه منافقين دي اوچې له مسلمانانووګڼل شول دادوى په ګمان اوپه ظاهري اعتبارسره ده ﴿ فَإِنۡ أَصَٰبَتۡكُم مُّصِيبَةٌ ﴾ نوكه ورسيږي تاسى ته كوم مصيبت ( لكه قتل او هزيمت ) ﴿ قَالَ قَدۡ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيَّ إِذۡ لَمۡ أَكُن مَّعَهُمۡ شَهِيدًا ﴾ نووايئ ( دامتخلف منافق ) په تحقيق فضل احسان كړى دى الله پرماباندى ځكه (چې) نه وم زه له دوى سره حاضر ) بيابه زه هم له نوروكسانو سره وژل شوي واى ﴿ وَلَئِنۡ أَصَٰبَكُمۡ فَضۡلٌ مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ اوكه ورسيږئ تاسي ته احسان اورحمت له(طرفه) دالله ( لكه فتح ياغنيمت ) ﴿ لَيَقُولَنَّ كَأَن لَّمۡ تَكُنۢ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهُۥ مَوَدَّةٌ يَٰلَيۡتَنِي كُنتُ مَعَهُمۡ فَأَفُوزَ فَوۡزًا عَظِيمًا ﴾ نوخاماخابه وايې هرومرو(دامنافق ) چې ګواكي نه ووپه مينځ ستاسي اودده كښې هيڅ دوستى (اووايې به ) كاشكي زه هم واى له دوى سره نوبريالى شوي به وم په بري ډيرلوي سره . له غنيمتونوڅخه اوجمله د(كَأَن لَّمۡ تَكُنۢ ) اعتراضيه ده چې ددوى په كمزوري ايمان تنبيه وركړي اودغه دوستي دمنافق په ظاهرباندى بناده نه خوپه اعتقادكښى دوى دا آرزولرى چې كاشكي دمال دمونډلولپاره له مؤمنانوسره ملګري واى نه داچې داسلام دبري اوعزت لپاره اوكله چې الله تعالى دجهاددلاري د متخلفينو بدي بيان كړه دمؤمنانورغبت يې وپارول اوداسى يې وويل : ﴿ فَلۡيُقَٰتِلۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱلَّذِينَ يَشۡرُونَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا بِٱلۡأٓخِرَةِ ﴾ ( پس جنګ دى وكړى په لاره دالله كښې هغه كسان چې خرڅوي دوى ژوند دنيوي په آخرت ) يعنى جنګ دى وكړى هغه مخلصين چې خانونه اومالونه دالله په لاركښې خاروي هغه كسان چې دنيوي ژوند په اخروي پلوري ﴿ وَمَن يُقَٰتِلۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيُقۡتَلۡ أَوۡ يَغۡلِبۡ فَسَوۡفَ نُؤۡتِيهِ أَجۡرًا عَظِيمًا ﴾ ( اوهرڅوک چې جنګ وكړي په لاره دالله كښې ( داعلاء كلمة الله لپاره ) پس شهيدكړى شي ياغالب ( غازي اوبريالى ) نوژربه وركړومونږده ته اجرډيرلوى .) دادالله تعالى له لوري هغوكسانوته زيري دى چې دكلمة الله دلوړوالى لپاره جنګيږي چې دوى ته به ستراجروركوي كه شهيداوياغازي شي هغه ته به يودددونيكيورسيږي ياشهادت يااجراوغنيمت لكه چې په حديث شريف كښې راځي : الله پاک ضمانت كړي دهغه چالپاره چې دالله په لاركښې خاص دجهادلپاره ووزي دغه وتل يې دايمان له مخي وي چې په الله يې لري اوپه پيغمبرانو يې لري نوالله فرمايي چې دهغه زه ضامن يم

یابه یې جنت ته داخلوم اویابه یې بیرته خپل هستوګنځي ته له اجراوغنیمت سره راستنوم.(۱) ﴿ وَمَا لَكُمْ لَا تُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلْوِلْدَٰنِ ﴾ (او څه مانع دی تاسی ته چې جنګ نه کوئ تاسی په لاره دالله کښې اوپه (خلاصولو) دضعیفانو کښې چې سړی دی اوښځې دی اوهلکان دی) استفهام دهڅوني اوتحریض لپاره دی یعنی اې مؤمنانوڅه مانع دی چې دالله په لاره کښې جهادنکوئ اودهغو مؤمنانود خلاصولو په لاره کښې کوم چې مشرکانوله هجرت کولوڅخه منع کړي دي اوپه ذلت اوبې وزلي کښې ربړونه اوتکالیف ګالي نه جنګیږئ؟ او داکلام چې: ﴿ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلْوِلْدَٰنِ ﴾ راغلی دی دمستضعفینو بیان دی ابن عباس ﷺ وایي چې: زه اومورمي دمستضعفینو له ډلي څخه وو او دوی هغه کسان وو چې رسول الله ﷺ به ورته دعاګانې کولې ویل به یې: (اللهم انج الولیدابن الولید و سلمة ابن هشام و...) د حدیث ترپایه لکه چې په صحیح کښی راغلی دی ﴿ ٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ ٱلظَّالِمِ أَهْلُهَا ﴾ هغه کسان چې وایې دوی (اې ربه زموږ وباسه موږله دې کلی (مکې) څخه! چې ظالمان دي اوسیدونکي دهغې) یعنی هغه کسان چې الله ته زارۍ کوی ترڅوتکلیف ځینی پورته کړي وایی: اې زموږربه موږله دې کلی وباسه چې اوسیدونکي یې ظالمان دی کله چې دکفراوشرک تیاتوبی وواوله همدي امله رسول الله ﷺ ځینی هجرت کړی دی دکفرمشرانود قریشومخه وروبه مسلمانان له هجرت کولواواسلام څرګندولوڅخه راګرزول ﴿ وَٱجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَٱجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا ﴾ (اوګرځوه موږته له خپله درباره کوم ولی (حامي ساتونکي) اوګرځوه موږته له خپله درباره کوم مددګار) یعنی اې ربه موږته له دغې تنګسیاڅخه پراخي اودوتلوځای راپه برخه کړه اوله خپله درباره مرستندوی راته وټاکه الله ﷺ یې دعاومنله اوډیربښه مددګاراوساتونکي یې ورته وټاکل چې هغه محمدمصطفی ﷺ وو کله چې مکه فتح شوه اوهغه وخت چې له مکې څخه وتل نویې (عتاب بن اسید) وربāندې والی مقرر کړ چې له ظالم څخه یې دمظلوم حق ترلاسه کړوروسته بیاالله ﷺ مجاهدینوته دجهادرغبت ورکوي اوپدې لاره کښی یې تشجیع فرمایي: ﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ (هغه کسان چې ایمان لرونکي دی جنګ کوي دوی په لاره دالله کښې (ددین دترقی لپاره) یعنی مؤمنان دیوسترهدف لپاره جنګیږي چې هغه دکلمې اعلاء اودالله رضا ده نوالله یې مرستندوي دي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ ٱلطَّٰغُوتِ ﴾ (اوهغه کسان چې کافران شوي دي جنګ کوي په لاره دشیطان کښې) یعنی کافران دشیطان په لاره کښې جنګ کوي هغه چې بلونکي وي دکفراوطغیان لوري ته ﴿ فَقَٰتِلُوٓا۟ أَوْلِيَآءَ ٱلشَّيْطَٰنِ ﴾ (نوجنګ وکړئ تاسی له دوستانو دشیطان سره!) یعنی اې دالله ولیانودشیطان له کومکیانو اومرستندویانوسره جنګ وکړئ تاسوبه وربāندې بري وموومي ځکه دهغه چاچې دکلمة الله دلوړتیالپاره جنګیږي اوهغه څوک چې دشیطان په لارکښی جنګیږي ډیرلوي فرق شته هغه چې دالله په

(۱) اخرجه مسلم

لاره کښې جنګ کوي اوروبه بريالی کيږي ځکه الله يې ساتونکي اومرستندوی وي اوڅوک چې دشيطان په لاره کښې جنګ کوي هغه به ښوئيدلي اومغلوب وي ځکه ويل شوي چې: ﴿ إِنَّ كَيْدَ ٱلشَّيْطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا ﴾ ( بيشکه چې مکردشيطان ضعيف دي ) يعنی دشيطان زياراوکوښښ په خپل ذات کښې کمزوري دی.نودالله دقدرت په پرتله به ولی کمزوری نه وي ؟ زمخشري وايې چې دشيطان کيدمؤمنانولپاره دالله دکيدپه وړاندی چې دکفارو لپاره دي خوراکمزوری اوکاواکه دی (١) ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوٓا۟ أَيْدِيَكُمْ وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ ( آياندي کتلي تا(ندي رسيدلي تاته حال د)هغوکسانوچې ورويل شول دوی ته ونيسئ لاسونه خپل (له جنګه په مکه کښې ) اوسم اداکوئ ( سره له ټولوحقوقو ) تاسی لمونځ ا اوورکوئ تاسي زکات ! ) يعنی ته تعجب نکوي اي محمده ! له حاله دهغه قوم څخه چې جنګ يې غوښتل اودوی په مکه کښې وواودوی ته وويل شول چې دکفاروله جنګ څخه اوس لاس ونيسئ وخت يې ندی رارسيدلي اوتاسوځانونه دلمانځه په سم اداکولواودزکات په ورکولوروزئ اوداحکمونه په ځای راوړئ ﴿ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ ٱلْقِتَالُ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ ٱلنَّاسَ كَخَشْيَةِ ٱللَّهِ أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً ﴾ نوکله چې ( په مدينه کښې ) فرض کړشوپه دوی باندی ( له کفاروسره ) جنګ پدی وخت کښې يوه ډله له دوی نه ويريدله له خلګونه په شان دويرې ( ددوی ) له الله نه بلکه ډيرزيات له جهته دويرې. يعنی اوکله چې پردوی دمشرکينوقتال فرض شونودوی يوه ډله ويريدله اوله مرګ څخه دومره په ويره کښې وولکه دالله له عذاب نه اوياتردي لا هم زيات ابن کثيروايي مسلمانان چې کله په مکه کښې ووپه لمانځه ، زکات اوصبرباندی ورته حکم شوي ووخودوي دزړه له کومي غوښتل چې کاشکي ورته دقتال امرشوي وای ترڅوېې په دښمنانو کافرانوزړه يخ کړي وای بياکله چې دهمدي څيزامرورته وشوځينی کسان يې وويريدل اودمخامخ کيدلوويره يې خوراسخته وه (٢) ﴿ وَقَالُوا۟ رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا ٱلْقِتَالَ ﴾ ( اووېې ويل دوی اي ربه زمونږ ! ولي دي فرض کړپرمونږباندي جنګ ؟ ) يعنی دوی دمرګ له ويرې داسی و ويل ﴿ لَوْلَآ أَخَّرْتَنَآ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ ﴾ ( ولي دي وروسته نکړومونږترهغې نيتې نږدی پورې؟) دلولا،کلمه دلته د تحضيض لپاره ده چې د(هلا)په معنا راځي چې دوی هيله کوله دقتال امرڅه ټال وخوري اوځنډيږي ترڅو دوی پخپلو اجلونو مري اودښمنان يې ددوی په وژلوخوشحاله نشي. ﴿ قُلْ مَتَٰعُ ٱلدُّنْيَا قَلِيلٌ وَٱلْءَاخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ ٱتَّقَىٰ ﴾ ووايه اي محمده ! دغوويريدونکوته ) متاع ددې دنياډيره لږده اوآخرت ډيرغوره دی هغه چاته چې ويريږي ( له الله نه ) يعنی ای محمده ! دوی ته ووايه چې ـ دنيانعمتونه زوال مومي اودآخرت تل ترتله دي نوهغه تردي غوره دی دهغه چالپاره چې له الله ويريږي اوداوامروامتثال يې کوي ﴿ وَلَا تُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴾ ) ( اوظلم به ونکړه شي پرتاسو(په اندازه ) ديو ډيرنري تار)چې

---

(١) الکشاف

(٢) مختصرابن کثير١/ ٤١٣

دخرمادمندتې (زړي ) په درزکېدو راځي په تسهيل نومي کتاب کښې وايي چې : داآيت داصحابورضوان الله عليهم )دهغې تولی په هکله دي چې دوی له جنګ کولوڅخه منع شوي وو اودوی آرزولرله چې دجنګ کولواجازه ورکړل شوي وای خوکله چې دجنګ کولوحکم ورته وشونودوی ته جنګ کول ناخوښه وو اودغه دالله ﷻ دحکم څخه دغاړي غړولوله کبله نه وو بلکه له مرګ څخه ويريدل اوداويره دطبعي کراهت له امله وه چابياويلي چې دادمنافقينوپه باب دی اودغه دکلام له سياق سره وراوښايې (١) ﴿ أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ ﴾ هرچېرته چې اوسئ تاسی وبه مومي تاسی لره مرګ اګرکه اوسئ تاسی په برجونو کښې (په کلاګانو مانيو کښې ) ډيرولوړومحکمو مضبوط کړي شويو کښې !) يعنی هرچېری چې ياست تاسوته مرګ رسيدونکي دی کله چې مواجل راورسيږي که څه هم تاسوپه لوړو مضبوطوبرجونو کښې ځان خوندي کړئ نوله مرګ څخه دويري په سبب جهادمه پريږدئ ﴿ وَإِن تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِندِ اللَّهِ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِندِكَ ﴾ (اوکه ورسيږي دوی ته څه نيکي (بری اوغنيمت ) نووايي دوی دا(نيکی ) له جانبه د ) الله ده اوکه ورسيږي دوی ته څه بدی ( له ناکامي لوږي ) نووايي دوی دا(بدي ) له جانبه ستاده) عنی که دي منافقينوته څه نيکي ورسيږي نودوی وايي داد الله له طرفه ده دالله تقديرده چې په مونږ کښې يې خيرليدلی نيکي راباندي پيرزوده اوکله چې هزيمت اوکاختي ورته راشي نودوی وايي داپه سبب ددي چې مونږ خپل دين پري ايښی اودمحمد پيروي موکړي ده دوی پدي باندی دمحمد ﷺ اودهغه ددين بدمرغي (شګون) بدفالی نيسی سدي وايي : دوی داخبره کوي چې دابدي زمونږ ددين له پريښودلو اودمحمد ﷺ ددين دمنلوپه وجه راپيښه شوه لکه چې الله ﷻ دفرعون دقوم بيان کوي ﴿ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُ أَلَا إِنَّمَا طَائِرُهُمْ عِندَ اللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ الأعراف: ١٣١ ﴿ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ اللَّهِ ﴾ ووايه اي محمده دوی ته ! داتول (خيراوشر)له (جانبه ) دالله دی رسول الله ﷺ ته امرشوی دی چې ددوی باطل ګومان وغندي اوپه خوله يې کاني ورکړي داسی ورته څرګنده کړي چې نيکي اوبدي ، نعمت ، اوعذاب تول دالله پيداښت اوايجاددي له الله ﷻ څخه پرته بل خالق نشته الله پاک نفع رسوونکي اوضرررسونکي دي دهغه له ارادي څخه تول کائنات صادريږي. ﴿ فَمَالِ هَٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا ﴾ (پس څه سبب دي دي قوم لره چې نه دی نژدې ( دې ته ) چې پوه شي دوی په هيڅ خبره باندی ) يعنی څه وجه ده چې دوی په دې نه پوهيږي چې تول شيان دالله په تقديراوفيصله کې دي دادوی لپاره توبيخ اودوی دسپک فهم څرګندونه ده بيا الله دايمان حقيقت داسي بيانوي ﴿ مَّا أَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللَّهِ وَمَا أَصَابَكَ مِن سَيِّئَةٍ فَمِن نَّفْسِكَ ﴾ ( هرهغه شي چې ورسيږي تاته (اي انسانه !) له نيکي څخه نو(هغه ) له جانبه ) دالله دي اوهرهغه شي چې

---

(١) التسهيل لعلوم التنزيل ١/ ١٤٨ قرطبی اوابوحيان داغوره کړی اوهمدا ارجح دی په البحرکښی وايي چې ددي خبری کونکي منافقين وو خکه چې الله په يوشی حکم وکړي دهغه له علت څخه هغه څوک چې سوچه ايمان لري پوښتنه نکوي خکه نودکلام سياق وروسته داسی راځي چې ( وان تصبهم سيئة يقولوا هذه من عندک ) اوداخبره له منافق څخه پرته بل څوک نه وايي . البحر ٣ / ٩٢٨ .

ورسيد تاته (اي انسانه !) له بدي ځخه نو(هغه) له (جانبه) دنفس ستادي ) ؛ دلته خطاب هراوريدونکي ته دی يعنی ای انسانه کوم شي چې تاته دنعمت اواحسان دررسي دادالله فضل ، احسان او ازمويښت دی اوکوم مصيبت اوبلاچې درپيښيږي هغه ستادکړوړو په نتيجه کښې ده لکه دالله داقول : ﴿ وَمَآ أَصَٰبَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتۡ أَيۡدِيكُمۡ وَيَعۡفُواْ عَن كَثِيرٖ ﴾ [الشوري: ٣٠] . بيا الله رسول الله ﷺ ته دخطاب په ترځ کښې فرمايي ﴿ وَأَرۡسَلۡنَٰكَ لِلنَّاسِ رَسُولٗاۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدٗا ﴾ ( اوليږلی يې مونږ ته (اي محمده !) دپاره د(ټولو) خلکورسول اوبس دی الله شاهد(په رسالت ستاای محمده !) يعنی ای محمده مونږته دټولو خلکولپاره استازي ليږلی يې چې دالله شريعت ورته رسوي اوداکافي ده چې الله ستاپه رسالت شاهد وي بياالله تعالی درسول الله دپيروی درغبت ورکولوپه هکله فرمايي : ﴿ مَّن يُطِعِ ٱلرَّسُولَ فَقَدۡ أَطَاعَ ٱللَّهَۖ ﴾ هرچاچې حکم ومانودرسول (دالله ) نوپه تحقيق چې حکم يې ومانودالله ځکه هغه دالله له لوري مبلغ ټاکل شوی دی ﴿ وَمَن تَوَلَّىٰ فَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ عَلَيۡهِمۡ حَفِيظٗا ﴾ (اوهرڅوک چې وګرځيد پس نه يې ليږلی مونږته په دوی باندي ساتونکي (څارونکي داعمالو ) يعنی څوک چې ستاله اطاعته وګرځيدنو ته دده داعمالوساتونکي مونږ نه يی استولي چې له هغه سره محاسبه وکړي پرتاباندي پرته له ابلاغ اورسولوبل څه نشته ﴿ وَيَقُولُونَ طَاعَةٞ فَإِذَا بَرَزُواْ مِنۡ عِندِكَ بَيَّتَ طَآئِفَةٞ مِّنۡهُمۡ غَيۡرَ ٱلَّذِي تَقُولُۖ ﴾ اووايې دوی (زمونږکارستا ) طاعت دی نوکله چې راووزي دوی له تاڅخه نودشپې (په مشوره سره وايې) يوه ډله له دوی غيرله هغې خبرې نه چې وايې يې (داطائفه تاته ) يعني منافقان وايې چې ستا حکم منولکه چې يوڅوک وايې ( سمعاوطاعة ) خوکله چې له تانه بهرراوزي نوددوی يوه ډله خلاف له هغه څه تدبير جوړوي چې ستاپه مخکي يې وايې چې هغه سرغړونه اوعصيان دي ﴿ وَٱللَّهُ يَكۡتُبُ مَا يُبَيِّتُونَۖ فَأَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ وَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱللَّهِۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلًا ﴾ ( اوالله ليکي هغه خبرې چې دشپې يې ( په مشوره سره وايې ) دوی نوپه څنګ شه ته له دوی نه اوتوکل وکړه په الله باندي ) يعنی الله ﷺ پرېښتو ته حکم کوي چې دغه کړه وړه ددوی داعمالو په پاڼو کښې وليکي ترڅوورباندي سزاورکړي اوهغه مرستندوي اومددګاردهغه چالپاره کافی دي چې څوک ورباندي توکل اواعتمادکوي وروسته بياالله تعالی دمنافقينو هغه عيوب بيانوي چې دوی دقرآن کريم په محکمومعناګانواوبليغو الفاظوکښې سوچ نه کوي ځکه په قرآن کريم کښې په تدبرکولودهغه نوراوخلا څرګنديږي ﴿ أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ ٱلۡقُرۡءَانَۚ وَلَوۡ كَانَ مِنۡ عِندِ غَيۡرِ ٱللَّهِ لَوَجَدُواْ فِيهِ ٱخۡتِلَٰفٗا كَثِيرٗا ﴾ ( آيانوفکرغور نکوي دوی پدي فصيح بليغ )قرآن کښې اوکه وي (داقرآن ) له جانبه دغيردالله څخه نوخامخاموندلی به وودوی په هغه کښې اختلاف ډير ) يعنی که دغه قرآن لکه څرنګه چې مشرکان اومنافقان ګومان کوي له ځانه جوړشوي وای نوستر اختلاف به يې پکښې ليدلي وي دهغه په اخبار، نظم اومعناګانو کښې به تناقض ووخوهدوداسی نه ده بلکه اخبارېي رښتيااونظم يې فصيح اومعناګاني يې محکم دي نوپدي دلالت کوي چې دحکيم حميدله لوري منزل دی ﴿ وَإِذَا جَآءَهُمۡ أَمۡرٞ مِّنَ

ٱلْأَمْنِ أَوِ ٱلْخَوْفِ أَذَاعُواْ بِهِۦ ﴾ اوكله چې راشي دي (منافقانوته كوم امرله امن ياله ويرې نومشهوروي دوئ هغه (خبر) يعنى كله چې منافقينوته دمؤمنانويوه خبره دبري اوغنيمت ترلاسه كولواوياهم دمصيبت اوناكامي ورسيږي هغه خوروي اوپخواله دى چې دحال حقيقت ورته څرګندشي يوله بله رغيږي اودهغه خبرپه مشهورلوكښې دمسلمانانو لپاره زيان وي ﴿ وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى ٱلرَّسُولِ وَإِلَىٰٓ أُوْلِى ٱلْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ ٱلَّذِينَ يَسْتَنۢبِطُونَهُۥ مِنْهُمْ ﴾ (اوكه دوى وررسولي (اوپريښي ) وي داخبر(طرف) درسول الله )ته او(طرف) دحاكمانوخپلوته له دوى نه نو خامخا معلوم به وي (تدبير) ددي كارهغوكسانوته چې ايستلى (اوبيلولى شي ښه له بدو) له دوى څينى ) يعنى كه دغو كسانو خبررسول الله ﷺ اوداصحاب كرامومشرانوته پري ايښي واى نوهغوئ به يې تدبيررا ايستلى اوتحقيق به يې شوى وو. ﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُۥ لَٱتَّبَعْتُمُ ٱلشَّيْطَٰنَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ اوكه نه واى فضل دالله پرتاسى اورحمت دده نوهرومرو به متابعت كړى ووتاسى دشيطان مگر(متابعت به نه ووكړى له تاسى څخه ) لږوكسانو) يعنى اي مؤمنانوكه دالله ﷻ فضل په تاسى نه واي چې پيغمبريې درته رااستولى اوهغه رحمت يې نه واى چې قرآن كريم يې درته رانازل كړي نوتاسى به خامخادشيطان پيروي كړي وه هغه چې دفواحشوامربه يې درته كاووخولږكسان به دهغه له پيروي څخه پاتى ووبياوروسته الله پاک رسول خپل ته دجهادكولوحكم كوي وايي: (فَقَٰتِلْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ ﴾ نوجنګ كوه ته په لاره دالله كښې (يواځي اي محمده ) كه بل چادرسره ملګرتيانه كوله ) نه يې مكلف كړل شوي مګرپه حق دځا ن خپل كښې ) يعنى جګړه كوه ددين دترقي اواعلاء كلمة الله لپاره كه څه هم يوازې يې تاته دبرياليتوب وعده (زيري) دركړل شوي اودمنافقينوتخلف ته اعتبارمه وركوه ﴿ وَحَرِّضِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ او تېزوه مؤمنان (په جهاداوترغيبوه يې! ﴿ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَكُفَّ بَأْسَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ (اونژدي ده چې الله بنده كړي (سختې د ) جنګ دهغوكسانوچې كافران شوي دى ) يعنى كله چې مؤمنان جهادته ترغيب كړى الله به دكفاروفجاروشرله تاسى څخه بندكړي (عسى) دالله په كلام كښې تحقيق افاده كوي همداسى وشو چې الله پاک په بدراودمكې دفتح په وخت كښې دكفاروله شرڅخه مسلمانان وژغورل اوكفاريې تارپه تاركړل ﴿ وَٱللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنكِيلًا ﴾ اوالله ډيرسخت دى له جهته دهيبته دجنګ اوډيرسخت دى له جهته دعذاب وركولو ﴿ مَّن يَشْفَعْ شَفَٰعَةً حَسَنَةً يَكُن لَّهُۥ نَصِيبٌ مِّنْهَا ﴾ اوهرڅوک چې سپارښت وكړي سپارښت نيک ( له شرعي سره سم )نووي به (دي سپارښت كونكي ته ) يوه برخه (دثواب ) په سبب دهغه سره ﴿ وَمَن يَشْفَعْ شَفَٰعَةً سَيِّئَةً يَكُن لَّهُۥ كِفْلٌ مِّنْهَا ﴾ اوهر څوک چې سپارښت وكړي سپارښت ناكاره ( له شرعي خلاف نووي به (دې سپارښت كونكي ته يوبار(برخه دګناه په ) سبب دهغه سره ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ مُّقِيتًا ﴾ اودى الله په هرشي باندي قدرت لرونكي (نوجزابه وركړي هرچاته په خپل عمل سره ) ﴿ وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّواْ بِأَحْسَنَ

مِنۡهَآ أَوۡ رُدُّوهَآ ﴾ اوهركله چې سلام واچوي تاسوته (كوم مسلمان) په يوه سلام دعاسره نوتاسى هم سلام دعاوركړئ په ښه سلام سره ترهغې نه او يابې هغه دول وروګرځوئ ﴿إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٍ حَسِيبًا ﴾ بيشكه چې الله ﷻ دى پرهرشى باندى ښه حساب كونكى ) بندګانو ته ددوى په لوي اوواړه عمل جزا وركوي ) ﴿ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۚ لَيَجۡمَعَنَّكُمۡ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ لَا رَيۡبَ فِيهِۗ ﴾ (الله نشته هيڅ لائق دعبادت مګريوازى هم دى دى خامخاراجمع به كړي هرو مرو تاسي ورځي دقيامت ته چې نشته هيڅ شک په هغې كښې ) داداالله ﷻ له لوري لوړه اوقسم دي چې دمعادپه ورځ به مخلوقات راټولوي هغه واحدالله چې له ده پرته بل معبودنشته تاسوبه له خپلوقبرونوراپاڅوي اودحساب لپاره به مودقيامت په ورځ راغونډكړي چې نشته هيڅ شک (پدغې ورځې يا پدې جمع كښى ) چې اولين اوآخرين به دحساب اوجزا لپاره په يوه ميدان (ډګر ) ودروي ﴿ وَمَنۡ أَصۡدَقُ مِنَ ٱللَّهِ حَدِيثٗا ﴾ (اوڅوک دي ډيررښتونى له الله له جهته ددي خبرې (هيڅ څوک نشته ) دلته لفظ داستفهام اومعنابې نفى ده يعنى هيڅوک ترالله رب العالمين په وعده اوخبروكښې رښتينى نشته.

بلاغت:

پدې آيتونوكښې چې دفصاحت بيان اوبديع كومې ښكلاوي شته په لاندى ډول يې لنډيز ليكو:

۱- استعاره دالله ﷻ پدې قول چې: (يشرون الحياة الدنيا بالأخرة) يعنى پلوري فانى دنياپه تلپاتې (باقي) دنياباندې دلته يې دشراء لفظ دبدلولو(مبادلې ) لپاره راووړچې پكښې باريكه استعاره راغلى ده.

۲- اعتراض پدې كلام كښې (كأن لم تكن بينكم و بينه موّدة) .

۳- مرسله مجمله تشبيه پدې قول كښې (يخشون الناس كخشية الله) .

۴- طباق چې د: (الأمن أو الخوف) په كلام كښى راغلى دى.

۵- اشتقاقى جناس لكه: (اصابتكم مصيبة) او(حييتم بتحية فحيوا ) اوپه (يشفع شفاعة) اوپه (بيّت و بيتون) كښې چې راغلى دى.

۶- هغه استفهام چې انكارخينى اراده شوي وي لكه (أفلا يتدبرون القرآن) .

۷- مقابله لكه پدې آيت شريف كښى چې فرمايې (الذين آمنوا يقاتلون في سبيل الله و الذين كفروا يقاتلون في سبيل الطاغوت) اوهمداسى (من يشفع شفاعة حسنة يكن له نصيب منها و من يشفع شفاعة سيئة يكن له كفل منها) اوداله بديعي محسناتوڅخه بولى چې دوه او، يازياتې معناګانى راوړل شي اوبيابې مقابل په ترتيب سره يادكړي.

تنبيه:

دالله ﷻ ددې قول چې فرمايې: (قل كل من عند الله) او(ما اصابك من سيئة فمن نفسك) ترمينځ يې هيڅ اختلاف اوتعارض نشته څكه چې لومړي يې په حقيقت بنادې چې خلق اوايجاد يې بولواودوهم قسم يې كسبي چې كسب يې دګناهونوپه وجه شوي وي لكه چې فرمايې (و ما أصابكم من مصيبة فبما كسبت أيديكم) اويامونږ دا وايوچې دنيكي (حسنه) نسبت الله ﷻ ته اود(بدي (سيئة ) نسبت بنده ته ددي

لپاره دي چې له الله سره په کلام کښې ادب وکړل شي که څه هم په حقیقت کي هرڅه دالله ﷻ له لوري دي لکه چې رسول الله ﷺ فرمايې: (الخير کله بيديک الشرليس اليک) والله اعلم.

## الله تعالی فرمايې:

﴿فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ وَاللَّهُ أَرْكَسَهُم بِمَا كَسَبُوا ۚ أَتُرِيدُونَ أَن تَهْدُوا مَنْ أَضَلَّ اللَّهُ ۖ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَلَن
تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا (٨٨) وَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ كَمَا كَفَرُوا فَتَكُونُونَ سَوَاءً ۖ فَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ أَوْلِيَاءَ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ
فَإِن تَوَلَّوْا فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ ۖ وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا (٨٩) إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ إِلَىٰ قَوْمٍ
بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ أَن يُقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ
فَلَقَاتَلُوكُمْ ۚ فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا (٩٠) سَتَجِدُونَ آخَرِينَ
يُرِيدُونَ أَن يَأْمَنُوكُمْ وَيَأْمَنُوا قَوْمَهُمْ كُلَّ مَا رُدُّوا إِلَى الْفِتْنَةِ أُرْكِسُوا فِيهَا ۚ فَإِن لَّمْ يَعْتَزِلُوكُمْ وَيُلْقُوا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوا
أَيْدِيَهُمْ فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ ۚ وَأُولَٰئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا مُّبِينًا (٩١) وَمَا كَانَ
لِمُؤْمِنٍ أَن يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلَّا خَطَأً ۚ وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ إِلَّا
أَن يَصَّدَّقُوا ۚ فَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۖ وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ
بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۖ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ
شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ اللَّهِ ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا (٩٢) وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا
فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا (٩٣) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ
آمَنُوا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَبَيَّنُوا وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَىٰ إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ
الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَعِندَ اللَّهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ ۚ كَذَٰلِكَ كُنتُم مِّن قَبْلُ فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوا ۚ
إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا (٩٤) لَّا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ
اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ۚ فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً ۚ وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ ۚ وَفَضَّلَ اللَّهُ
الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا (٩٥) دَرَجَاتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً ۚ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا (٩٦)﴾

## مناسبت اوتړاو:

کله چې الله پاک دمنافقينو شرميدلی دريزونه يادکړل وروسته بيې دهغوئ نورناکاره اوبداحوال راوړل اوبيابيې دقتل خطا اوقصدي قتل حکمونه بيان کړل اودا توصيه يې وکړه چې ترڅو چې تر پخواله وژلو يوچابنه تثبت کول په کاردي ترڅو چېرې مسلمانان سړی ونه وژل شي وروسته بياالله ﷻ دمجاهدينو ستري درجې اومرتبې بيانوي چې په آخرت کښې به هغوئ ته ورکول کيږي.

**لغتونه:**

**(أركسهم)** كفرته يې واړول (ركس) په اصل كښې ديوشي اړوته (مقلوب) اړولوته وايي **(حصرت)** په تنګ شول **(السلم)** غاړه ايښودل **(ثقفتموهم)** چې ورسره مخامخ شوي او ومو موندل **(فثبتوا)** معلومات وكړئ **(اركسوا فيها)** په هغه كښې اړوته غورځول شوي.

**دنزول سبب:**

الف – زيدبن ثابت ﷺ وايي چې نبي ﷺ داُحد غزاته ووت او ځيني كسان چې ورسره ووبيرته راستانه شول نودرسول الله ﷺ ملګري دهغوي په هكله دوه ډلې شووچاويل چې وژنوبه يې چاويل نه نوالله ﷺ داآيت نازل كړ: **(فما لكم في المنافقين فئتين....)** دا آيت ترپايه، نو رسول الله وفرمايل: **( انهاطيبة تنفى الخبث كماتنفى النارخبث الحديد)** .

اخرجه الشيخان .

ب – روايت كاوه شي چې (حارث بن يزيد) ..... چې كله داسلام راوړلو په نيت په هجرت راوتلى وونو(عياش بن ربيعه) ورسره مخامخ شوهغه يې وواژه (حارث) خوداسلام راوړلو اراده درلوده مګر(عياش) ورباندي خبرنه وونوالله ﷺ داآيت نازل كړ: **( و ما كان لمؤمن أن يقتل مؤمناً إلا خطاء )** دآيت ترپايه[1]

ج – ابن عباس ﷺ وايي چې يووخت مسلمانان دغنيمت لاس ته راوړلوپه وخت كښې له يوچاسره مخامخ شول هغه ورته وويل: السلام عليكم ! خوهغوئ نوموړي وواژه اوغنيمت يې ځيني واخيست نوداآيت نازل شو. **(و لا تقولوا لمن ألقى اليكم السلام لست مؤمنا )** دآيت ترپايه پورى.[2]

**تفسير:**

﴿ فَمَا لَكُمْ فِي ٱلْمُنَٰفِقِينَ فِئَتَيْنِ وَٱللَّهُ أَرْكَسَهُم بِمَا كَسَبُوٓا۟ ﴾ (نوڅه شوي دى تاسى ته په (معامله) دمنافقانو كښې چې دوه ډلى (شوي يې) اوالله بيرته ګرځولى دى دوى (ردكړي يې دي كفرته) په سبب دهغواعمالوچې كړى دى دوى) چې هغه نفاق اوعصيان دي يعنى اي مؤمنانوولى تاسى دمنافقينوپه هكله دوه ډلې شوي يئ چې ځينى وايئ وژنويې ځيني وايئ نه يې وژنواوحال داچې دوى الله ﷺ كفرته ردكړى اوورګرځولى دى ﴿ أَتُرِيدُونَ أَن تَهْدُوا۟ مَنْ أَضَلَّ ٱللَّهُ ﴾ (آيااراده لرئ تاسى (اى مؤمنانو) ددي چې په سمه صافه لاره برابركړي هغه څوک چې الله ګمراه كړي دي) استفهام دواړه ځايه دتوبيخ اوانكارلپاره دي معناداچې تاسوددوى په هكله اختلاف مه كوئ اومه هم په دوى باندي دخيرګومان كوئ ځكه الله ﷺ ددوى په ګمراهي حكم كړي دى ﴿ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ سَبِيلًا ﴾ اوهرڅوک چې ګمراه (يې) كړى الله پس نه به مومي ده ته هيڅ لاره (دهدايت اوايمان) ﴿ وَدُّوا۟ لَوْ تَكْفُرُونَ كَمَا كَفَرُوا۟ فَتَكُونُونَ سَوَآءً ﴾ دوست ګڼي دوى (غواړي دامرتدان دغه) كه تاسى (هم) كافران شئ لكه چې كافران شوي دى دوى

---

[1] اسباب النزول ص ۹۷.
[2] رواه البخاري

نوشئ به تاسی اودوی کردسره برابر(په کفرکښې ) ﴿ فَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ أَوْلِيَاءَ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ نومه نيسئ تاسی هيڅوک له دوی نه دوستان ترڅوچې (دزړه ايمان راوړي ) اوهجرت (هم ) وکړئ په لاره دالله کښې (اوپه جهاد کولوسره دايمان اثبات وکړئ ) ﴿ فَإِن تَوَلَّوْا فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ ﴾ (نوکه وګرځيدل دوی ( له هجرت کولو په لاري دالله ) نوونيسئ تاسي دوی (او بنديان يې کړئ ) اوويې وژنئ تاسي دوی هرچيرته چې وموندل تاسي دوی ) يعنی که په حل کښې وي اوکه په حرم کښې ﴿ وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴾ ( اومه نيسئ تاسی ( هيڅوک ) له دوی څخه دوست اونه مددګار) يعنی تاسوله دوی څخه نصيحت اومرسته مه غواړئ که څه هم دوی ستاسو دوستي اومرستي کولوته چمتووي. ﴿ إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ ﴾ مګر( مه وژنئ اومه بندي کوئ ) هغه کسان چې وتړي دوی ځانونه خپل (اوچې امان وروړي ) ﴿ إِلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ ) هغه قوم ته چې په مينځ ستاسي اومينځ ددوی کښې عهد پيمان وي ) دوی هم دلته دهغوئ په حکم کښې دي يعنی وژل يې روانه دی ﴿ أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ أَن يُقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ ﴾ ياراشي دوی تاسی ته حال داچې تنګي شوي وي سينې (زړونه ددوی (اوبدګني له دي نه ) چې جنګ وکړي له تاسی سره (دخپل قوم په مرسته ياجنګ وکړي دوی له قوم خپل سره (ستاسی په مرسته ) يعنی دوی هغه کسان دي چې نه له تاسوسره دي اونه ستاسی له دښمنانوسره ﴿ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقَاتَلُوكُمْ ﴾ ( اوکه اراده کړي وي الله نوخامخازوروکړي به يې وي دوی په تاسی نوهرومروبه جنګيدل له تاسی سره) يعنی دالله له لطف او احسان څخه داهم ده چې ددوی لاسونه يې له تاسو څخه لنډکړي اوکه اراده کړي وای الله نودوی ته به يې زړه ورکړي اوله تاسوسره به جنګيدلی وو ﴿ فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا ﴾ ( نوکه څنګ وکړي دوی له تاسی پس ونکړجنګ دوی له تاسی سره اودروړاندی کړه دوی تاسی ته روغه (اوامان وغواړي له تاسی نه ) نونه دي ګرځولی الله تاسی ته پردوی هيڅ لاره (دنيولواوژلواومال اخيستلو ) يعنی که دوی جنګ درسره نه کاووله تاسوڅخه يې غاړه نه غړوله سوله يې غوښتله نوتاسی نشئ کولائ چې ورسره وجنګيږئ(روانه ده ) ﴿ سَتَجِدُونَ آخَرِينَ يُرِيدُونَ أَن يَأْمَنُوكُمْ وَيَأْمَنُوا قَوْمَهُمْ ﴾ ژربه ومومئ تاسی يوبل قوم چې اراده به لري دوی ددي چې په امان شی له تاسی (هم ) اوپه امان شي له خپله قومه (هم) يعنی دمنافقينويوه بله داسی ډله به ومومئ چې تاسوته به دايمان ښرګندونه کوي ترڅو درڅخه په امن شي اوخپل ټبرته به بيا دکفرښرګندونه کوي کله چې ورستانه شي ترڅوچې په امان شي له هغوئ نه هم ابوالسعودوايې چې: هغوئ (داسد اوغطفان ) قوم ووکله چې به مدينې منورې ته راغلل ايمان به يې راووړاوتعهدبه يې وکړچې له مسلمانانوپه امن شی اوکله چې به خپل قوم ته ستانه شول بيرته به له دين څخه راوګرځيدل اوعهدونه به يې مات کړل ترڅوله خپل قوم څخه په امن شی )(¹)

---

(¹) دقصدي قاتل دحکم تفصيل په البحر ٣ / ٣٢٢ -اومختصرابن کثير١ / ٤٣٢ کښې وګورئ.

﴿كُلَّ مَا رُدُّوٓا إِلَى ٱلْفِتْنَةِ أُرْكِسُوا۟ فِيهَا﴾ (هر کله چې وبلل شي دوی فتنې (فساد، کفر) ته نو بيرته گرځاوه شي په فساد کښې) يعنی کله چې کفراو يا له مسلمانانو سره مقابلې او جنگ کولو ته وبلل شي نو ورته لبيک وايې او ترپخوا په بترشکل راپاځيږی گواکي داترهر شرارت خوښونکي دښمن لاهم بدذي. ﴿فَإِن لَّمْ يَعْتَزِلُوكُمْ وَيُلْقُوٓا۟ إِلَيْكُمُ ٱلسَّلَمَ وَيَكُفُّوٓا۟ أَيْدِيَهُمْ﴾ بيا که نه شول په څنگ دوی له تاسی نه او دروړاندې يې نه کړه تاسی ته روغه (دامان غوښتنه) او بندې نه کړل لاسونه خپل (له جنگه) ﴿فَخُذُوهُمْ وَٱقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ﴾ نو نيسئ تاسي دوی (او بندي کوئ يې) او وژنئ يې تاسی دوی په هرځای کښې چې وموميئ تاسی دوی؛ ﴿وَأُو۟لَـٰٓئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطَـٰنًا مُّبِينًا﴾ (داتولی گرځولی دی مونږ تاسي لره پردوی باندې برهان (دليل) ښکاره) يعنی ددوی دغدر او خيانت په سبب مونږ تاسو ته ددوی په نيولو او وژلو ښرگند دليل درکړي دی ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَن يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلَّا خَطَـًٔا﴾ او نه ښايې هيڅ مؤمن ته داچې مړ کړي (بل) مؤمن مگر په خطا سره څکه چې ايمان يې عدوان او قتل ته اجازه نه ورکوي ﴿وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَـًٔا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦٓ إِلَّآ أَن يَصَّدَّقُوا۟﴾ (او هرڅوک چې مړ کړي کوم مؤمن په خطا سره نو (شته پر قاتل) ازادول دغاړي (دمريې) مؤمن او (بل) ديت دي سپارلی شوي اهل دوارثانو) دمقتول ته مگر داکه معاف کړي دا (وارثان دغه قاتل) يعنی څوک چې په خطا بل مؤمن ووژني نو هغه به مؤمن مريي آزادوي څکه آزادول دمريي لکه دمړي ژوندي کول غوندي دی او وارثانو دمقتول ته به ديت هم ورکوي خو مگر که چېري يې وارثان قاتل وبښي نو بيا ديت نشته، شارع په خطايي قتل کښې دوه شيان واجب کړل چې يو دغاړي آزادول هغه هم دمؤمن مريې چې دا به دقاتل له مال څخه آزادوي دوهم ديت دي چې هغه سل اوښان (دوېني بدله) به يې خپلوان دمقتول وارثانو ته ورکوي ﴿فَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ﴾ پس که وو (دامقتول) له هسی) قومه چې دښمن وي تاسی لره (کافران وي) حال داچې دا (مقتول) مؤمن وي نو (شته پر قاتل) آزادول دغاړي (دمريې) مؤمن (بی له ديته) ترڅو چې دوی دديت په مال باندی په مسلمانانو قوت ونه مومي ﴿وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍۭ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَـٰقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ﴾ (او که وو دامقتول له (هسی) قومه چې په مينځ ستاسی او مينځ دهغه قوم کښې عهد وي نو (شته پر قاتل يو) ديت ورسپارل شوي اهل د (وارثانو) دمقتول ته او (بل) آزادول دغاړي د (مريې) مؤمن دي) دغه ديت يې څکه وارثانو ته ورکول کيږي چې له نوموړي قوم سره معاهده شوي ده ﴿فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ ٱللَّهِ﴾ پس هرڅوک که ونه مومي (مريې يا مال چې ورباندی مريي واخلی) نو (پري) روژه نيول ددوه مياشتو دي پرله پسی (بلا انقطاع لپاره دقبلولو د) توبې له (جانبه) دالله ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ او دي الله ښه عالم (په ټولو مخلوقاتو لوي حکمت

والا په هغه څه کښې چې شريعت يې ټاکي وروسته الله د قصدي قتل حکم اوددغه خوراناوړه ګناه سخته سزاداسې بيانوي چې: ﴿ وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُۥ جَهَنَّمُ خَٰلِدًا فِيهَا ﴾ اوهرڅوک چې مړکړي کوم مؤمن په قصدسره نوجزادده دوزخ دي (په داسې حال کښې ) چې تل به وي دي په هغه (دوزخ ) کښې يعنې څوک چې يومسلمان پداسې حال کښې ووژنې چې په ايمان يې علم اوپوهه لري اووژل يې هم په عمداوقصدي توګه وي هغه به تل په دوزخ کښې وي اوداجمهورو علماووپه نزدهغه چاپاره دي چې دمسلمان دغه قتل رواهم وګڼي لکه چې ابن عباس ﷺ ويلي څکه نوهغه دحرام په حلال ګڼلوکافرګرزي ﴿ وَغَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُۥ وَأَعَدَّ لَهُۥ عَذَابًا عَظِيمًا ﴾ اوغضب (قهر) کړي دي الله په ده باندې اولعنت کړي دي الله ) دا(قاتل ) له خپل رحمت څخه ) اوتيارکړي يې دي ده ته عذاب ډيرلوي

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا ضَرَبْتُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ فَتَبَيَّنُواْ ﴾ ( اى هغو کسانو چې ايمان يې راوړي دى ( اى مؤمنانو ) کله چې سفرکوئ تاسي په لاره دالله کښې (جهادته) نوښه تحقيق وکړئ ) ( چې مؤمن اوکافرسره وپيژنئ ؛ دوژلوپه کارکښې تلوارمه کوئ ﴿ وَلَا تَقُولُواْ لِمَنْ أَلْقَىٰٓ إِلَيْكُمُ ٱلسَّلَٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا ﴾ اومه وايئ تاسي هغه چاته چې تاسي ته سلام دراچوي چې ته مؤمن نه يې اودغه اسلامي تحيه دي دقتل له ويرې پرځاي کړه ا اوبيايې ووژنئ ﴿ تَبْتَغُونَ عَرَضَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ ( غواړئ تاسي حال (اسباب ) ددي دنيوي ژوند(خسيس) يعنې تاسودهغه دمال چې ددنياژرفنا کيدونکي متاع ده تمه لرئ ﴿ فَعِندَ ٱللَّهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ ﴾ (اوکه واقعي غنيمت غواړئ ) پس دى له الله څخه ډيرغنيمتونه ) يعنې هغه څه چې په نزد دالله له ډيرثواب اولوي اجرڅخه ستاسولپاره تيارددي تردي خوراډير ښه دي ﴿ كَذَٰلِكَ كُنتُم مِّن قَبْلُ فَمَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوٓاْ ﴾ ( همداسې وئ تاسي (هم چې يوازي داسلام په اظهارسره مأمون شوي وئ ) پخواله دي نو فضل وکړالله په تاسونوښه تحقيق کوئ (اوهيچاته تش په شبه ضرر مه رسوئ) يعنې تاسوهم همداډول کفاروئ اوالله په تاسودايمان راوړلونعمت اواحسان وکړنوښه تحقيق کوئ چې مسلمان ونه وژنئ اوددوى حال له خپل حال سره پرتله کړئ ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴾ ) بيشکه الله دي په هغه څه چې تاسي يې کوئ ښه خبردار(نوپرې جزادرکوي ) بياالله تعالى دمجاهدينوفضيلت بيانوي ﴿ لَّا يَسْتَوِى ٱلْقَٰعِدُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُوْلِى ٱلضَّرَرِ وَٱلْمُجَٰهِدُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ﴾ نه دي برابرکښېناستونکي (په کور کښې) له مؤمنانونه ( له جهاده ) بې له خاوندانودعذره اوجهادکونکي په لاره دالله کښې ( ددين د ترقي لپاره ) په (لګولو ) دمالونوخپلوسره اوپه (خارولو ) دڅانونوخپلوسره ابن عباس ﷺ وايې چې داهغه کسان په ګوته کوي چې څوک بدرته وتلي اوڅوک په کورونوکښې ناست اونه وو تللي کله چې داآيت نازل شونوابن أم مکتوم راولاړشوويې ويل: يارسول الله زمالپاره اجازه شته؟ زمادي په الله ﷻ سوګنداولوړه وي که مادجهادکولوتوان درلودي ځان به مي نه ووسپمولي (هغه ړوندوو ) نوالله ﷻ داقيد ﴿ غَيْرُ أُوْلِى

ٱلضَّرَرِ ﴾ نازل کړ ﴿ فَضَّلَ ٱللَّهُ ٱلْمُجَٰهِدِينَ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى ٱلْقَٰعِدِينَ دَرَجَةً ﴾ فضیلت ورکړي دی الله ﷻ جهاد کونکوته په (لګولو) دمالونو خپلو سره اوپه (خارولو) دځانونو خپلو سره په کښېناستونکو باندي (له معذرته) په درجه کښې په نیت کښې تول برابردی یوله بله توپیرنه لری لکه چې رسول الله ﷺ فرمایي: بیشکه په مدینه کښې داسی خلک شته چې تاسی هرچېري ځئ اوپه هره شیله اووادي تېرېږئ دوی درسره دي. اصحابانو رضوان الله علیهم ورته وویل یارسول الله ﷺ دوی په مدینه کښې دي؟! رسول الله ﷺ وفرمایل هو عذر بند کړی دی (۱) ﴿ وَكُلًّا وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلْحُسْنَىٰ ﴾ اوله ټولوسره (که مجاهدوي اوکه معذورناست) وعده کړي ده الله دښې جزاء (دجنت په آخرت کښې) ﴿ وَفَضَّلَ ٱللَّهُ ٱلْمُجَٰهِدِينَ عَلَى ٱلْقَٰعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ اوفضیلت ورکړي دی الله جهادکونکو ته پرکښېناستونکو(بې معذرته) په اجرډیرلوي سره ﴿ دَرَجَٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً ﴾ چې مرتبې دي له جانبه د(الله) اومغفرت دي اورحمت دی ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ اوالله دي ښه بخښونکي دګناهونو ډیررحم والادي (په انعام داجراوثواب سره) په حدیث شریف کښې راځي چې په جنت کښې سل درجې الله دفی سبیل الله مجاهدینولپاره تیارې کړي دی چې دهردوودرجو(مرتبو) ترمابین دومره واټن اومسافه ده لکه دآسمان اومځکې ترمینځ(۲)

بلاغت:

پدي آیتونو کښې چې دبلاغت، بدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې په لاندي ډول دی.

۱- استفهام چې دانکارپه معنادي لکه: (فما لکم في المنافقين) ؟او(أتريدون أن تهدوا) ) ؟ .

۲- دطباق صنعت لکه: (أن تهدوا من أضل الله) اوهمدارنګه (القاعدون...والمجاهدون) ترمینځ

۳- مغایرجناس لکه (تكفرون كما كفروا) اوهمدا راز په (مغفرةً...غفورا) کښې.

۴- اطناب پدي کلام کښې چې (فضل الله المجاهدين بأموالهم و أنفسهم ... و فضل الله المجاهدين على القاعدين) اوهمدا راز په (أن يقتل مؤمناً إلا خطاء) او(من قتل مؤمناً خطاء) کښې.

۵- استعاره کله چې فرمایي: (إذا ضربتم في سبيل الله) دلته وهل ددښمنانودقتال لپاره اوسبیل الله دالله ددین لپاره استعاره شوي دي.

۶- مرسل مجازلکه: (فتحرير رقبة) چې جزء راوړل شوی اومراد ځینی کل دي یعنی مملوک مریی.

ګټي اوفائدې:

قصدي وژل (قتل عمد) په اسلام کښې له خوراسترو ګناهونو اوجرمونوڅخه ګڼل کیږي ځکه یې نوسزاهم هغومره سخته اوناوړه ده رسول الله ﷺ فرمایي: (من أعان على قتل مسلم مؤمن بشطركلمة جآء يوم القيامة مكتوب بين عينيه آيئس من رحمة الله) (۳) یعنی که یوڅوک دمؤمن مسلمان دوژلولپاره له

---

(۱) رواه البخاري

(۲) اخرجه النسائي.

(۳) اخرجه ابن ماجه.

قاتل سره ديوې کوچنۍ خبرې مرسته هم وکړي دقيامت په ورځ به هسې راپاځي چې په تندي به يې ليکلي وي (داسړی ) دالله له رحمت څخه ناهيلی دي اوهمدارنګه په حديث شريف کښې راغلي چې ددنياورانيدل دالله په نزددمسلمان تروژلوآسانه دي (¹) څکه نوابن عباس ﷺ دقاتل دتوبې ددنه قبليدلوفتوی ورکړي دي. (اعاذنا الله من ذلک).

تنبيه:

الله ﷻ دقتل خطاء په وخت کښې دمسلمان مريې آزادول حکم کړي دی اوحکمت پکښې دادی چې څرنګه هغه يو مسلمان مؤمن دوژلوپه سبب له مسلمانانوڅخه بيل کړي دي نوورباندي لازم دي چې دهغه په شان يوبل څوک داحرارو آزادو مسلمانانوتولنې ته دننه کړي څکه آزادول لکه دمړي ژوندي کول داسې دي. هودمريې بنده لپاره په اسلام کښې دومره حقوق شته چې په نورو ملتونو او دينونو کښې دانسانانولپاره هم نشته اوپدې خبره باندی دالله ﷻ تردي قول چې فرمايي: ﴿ فَمَا ٱلَّذِينَ فُضِّلُواْ بِرَآدِّي رِزۡقِهِمۡ عَلَىٰ مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُمۡ فَهُمۡ فِيهِ سَوَآءٌۚ أَفَبِنِعۡمَةِ ٱللَّهِ يَجۡحَدُونَ ﴾[النحل: ۷۱]بل ستراوبنه دليل نشته اوداچې رسول الله ﷺ دمړينې په رنځ اوناروغي کښې وصيت کوي فرمايي: (الصلوة الصلوة وماملکت أيمانکم لاتکلفوهم مالايطيقون ) يعنی دلمانځه دلمانځه اهتمام کوئ او هغه څوک چې ستاسې مريونه دي هغوئ ته داسې پاملرنه کوئ چې داسې کارمه ورسپارئ چې له عهدې يې وتلای نشي داتول دهمدي خلګودحقوقوڅرګندونه کوي که مونږ په امريکاکښې له تور پوستو سره معامله وڅيړو نوزمونږددعوی سموالی اوربښتنولی به له ورايه څرګنده شي. همدا لويدېزملتونه دي چې مريتوب روا نه ګڼي خودوی اصيل خلګ مريان کوي دوی دافرادو (استرقاق) مريتوب غندي خوپخپله نوری تولنی په بشپړه توګه مريتوب ته راکاږي دوی دغه کارد استعمارپه بڼه ترسره کوي نودغه خيالی مدنيت اوناچله ترقی اودموکراسی هيڅکله هم داسلام هغه ربښتوني مدنيت ،ترقی اوآزادي ته چې تولنو، ملتونواوافرادوته يې وربښلی رسيدلای نشي!

الله تعالی فرمايي:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَوَفَّىٰهُمُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ ظَالِمِيٓ أَنفُسِهِمۡ قَالُواْ فِيمَ كُنتُمۡۖ قَالُواْ كُنَّا مُسۡتَضۡعَفِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِۚ قَالُوٓاْ أَلَمۡ تَكُنۡ أَرۡضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةً
فَتُهَاجِرُواْ فِيهَاۚ فَأُوْلَٰٓئِكَ مَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُۖ وَسَآءَتۡ مَصِيرًا ﴿٩٧﴾ إِلَّا ٱلۡمُسۡتَضۡعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلۡوِلۡدَٰنِ لَا يَسۡتَطِيعُونَ حِيلَةً
وَلَا يَهۡتَدُونَ سَبِيلًا ﴿٩٨﴾ فَأُوْلَٰٓئِكَ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَعۡفُوَ عَنۡهُمۡۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٩٩﴾ ۞ وَمَن يُهَاجِرۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ يَجِدۡ فِي
ٱلۡأَرۡضِ مُرَٰغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةًۚ وَمَن يَخۡرُجۡ مِنۢ بَيۡتِهِۦ مُهَاجِرًا إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ثُمَّ يُدۡرِكۡهُ ٱلۡمَوۡتُ فَقَدۡ وَقَعَ أَجۡرُهُۥ عَلَى ٱللَّهِۗ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا
رَّحِيمًا ﴿١٠٠﴾ وَإِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَلَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ أَن تَقۡصُرُواْ مِنَ ٱلصَّلَوٰةِ إِنۡ خِفۡتُمۡ أَن يَفۡتِنَكُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْۚ إِنَّ ٱلۡكَٰفِرِينَ كَانُواْ
لَكُمۡ عَدُوًّا مُّبِينًا ﴿١٠١﴾ وَإِذَا كُنتَ فِيهِمۡ فَأَقَمۡتَ لَهُمُ ٱلصَّلَوٰةَ فَلۡتَقُمۡ طَآئِفَةٌ مِّنۡهُم مَّعَكَ وَلۡيَأۡخُذُوٓاْ أَسۡلِحَتَهُمۡ فَإِذَا

(¹) اخرجه البيهقی

سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِن وَرَآئِكُمْ وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ
وَأَسْلِحَتَهُمْ ۗ وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً ۚ وَلَا جُنَاحَ
عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ ۖ وَخُذُوا حِذْرَكُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ
لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا (١٠٢) فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ ۚ فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ
فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ۚ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا (١٠٣) وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ ۖ إِن تَكُونُوا تَأْلَمُونَ
فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ ۖ وَتَرْجُونَ مِنَ اللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا (١٠٤) إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ
بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ ۚ وَلَا تَكُن لِّلْخَائِنِينَ خَصِيمًا (١٠٥) وَاسْتَغْفِرِ اللَّهَ ۖ إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا
(١٠٦) وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِينَ يَخْتَانُونَ أَنفُسَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ خَوَّانًا أَثِيمًا (١٠٧) يَسْتَخْفُونَ مِنَ النَّاسِ
وَلَا يَسْتَخْفُونَ مِنَ اللَّهِ وَهُوَ مَعَهُمْ إِذْ يُبَيِّتُونَ مَا لَا يَرْضَىٰ مِنَ الْقَوْلِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطًا (١٠٨) هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ
جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَمَن يُجَادِلُ اللَّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا (١٠٩) وَمَن
يَعْمَلْ سُوءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللَّهَ يَجِدِ اللَّهَ غَفُورًا رَّحِيمًا (١١٠) وَمَن يَكْسِبْ إِثْمًا فَإِنَّمَا يَكْسِبُهُ عَلَىٰ نَفْسِهِ ۚ
وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا (١١١) وَمَن يَكْسِبْ خَطِيئَةً أَوْ إِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهِ بَرِيئًا فَقَدِ احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا (١١٢) وَلَوْلَا
فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهُ لَهَمَّت طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ أَن يُضِلُّوكَ وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ ۖ وَمَا يَضُرُّونَكَ مِن شَيْءٍ ۚ
وَأَنزَلَ اللَّهُ عَلَيْكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُن تَعْلَمُ ۚ وَكَانَ فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ عَظِيمًا (١١٣) ﴾

النساء: ٩٧ - ١١٣

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی دربښتوني پاکیزه مجاهدینوثواب بیان کړ وروسته يې له جهادڅخه دپاتي کیدونکو(متخلفینو) عذاب راووړهغه چي دکفرپه هیوادکښي هستوګنه غوره کوي ، وروسته يې دهجرت په هکله دمسلمانانوهڅونه اوترغیب بیان کړ، څرنګه چي هجرت اوجهادداسی عبادتونه دي چي دهغوئ په ترڅ کښي خوف اوویره پیداکیدله نوالله ﷻ دمسافراوخوف لمونځونه راوړل اوتردي وروسته يې هغه نادراو ښایسته مثال چي په تاریخ کښي يې ساري نشته دعدالت اونیاودپلې کیدلوبیان کړ کوم چي یوچایهودي دغلاپه تورنیولي اوپه چل اودوکه يې ورته لومه ایښي وه خوداسلامي عدالت په سیوري کښي دهغه دبرائت فرمان صادراواصلی مجرمین يې رسول الله ته الله تعالی وروپیژندل چي په مدینه منوره کښي دیوې انصارې کورنۍ غړي وو.

لغتونه : (مراغما) تګلاره له رغام څخه مشتق اوهغه خاورې ته وايي ابن قتیبة ویلی چي مراغم اومهاجردواړه یو دي اصل يې داده کله چي به یوڅوک مسلمان شواودهجرت کولونیت به يې وکړنوخپلوان به يې په قهراومراغم کړل نودده تګلارې ته مراغم اودرسول الله ﷺ لوري ته تلل يې هجرت

وبلل شو[1](سعة) په رزق کښې پراخوالی (تقصروا) قصرنقص ته وايي لکه چي دوئ وايي لمونځ يې قصر کړيعنی څلوررکعته يې دوه وګوذارل ابو عبيدوايي چي پدی کښې دري لغتونه شته يوداچي وايي (قصرتُ الصلوة ) بل (قصرتها )په شدسره اودريم (أقصرتها ) (تغفلون) تاسوغافل شئ غفلت سهوي اوناپوهي ته وايي (موقوتا) په وخت کښې محدود(دننه )چي وتل يې روانه وي (لاتهنوا) مه کمزوري کيږئ (خصيما) دمخاصم په معنايعنی منازع اومدافع (خوانا) په خيانت کښې مبالغي ته وايي.

دنزول سبب :

أ – ابن عباس ﷺ وايي چي په مکه مکرمه کښې څه مسلمانان ووچي له کفاروڅخه يې اسلام پټ ساتوخومشرکينودبدرپه ورځ له ځانه سره راوستل اوهغه ووچي څوکسان يې ووژل شول نومسلمانانو ووېل همدا زمونږملګري مسلمانان ووا وپه زوره راوستل شوي دي نوداآيت نازل شو: (ان الذين توفاهم الملائکة ظالمي انفسهم ....) (۲) دآيت ترپايه

ب – ضمرة بن القيس په مکه مکرمة کښې له مستضعفينوڅخه اوناروغ ووکله چي يې هغه آيتونه واوريدل چي دهجرت دفضيلت په باب رانازل شوي وونويې زامنوته ووېل ما(په کټ) واخلئ زه ځان له مستضعفينو څخه نه ګڼم ماته لاره معلومه ده زمادي په الله سوګندوي که نن شپه لاپه مکه کښې تېره کړم نوهغوئ په کټ واخيست اوله مکي مکرمي څخه يې ويوست اودتنعيم سره وفات شوالله ﷻ داآيت يې په هکله نازل کړ: (ومن يخرج من بيته مهاجرا الى الله ورسوله ثم يدرکه الموت فقدوقع اجره على الله)(۳)

ج – روايت کيږي چي له انصاروڅخه يوتن چي (طعمة بن ابيرق) نوميده دبني ظفرله ټبرڅخه ووخپل ګاونډي (قتادة بن نعمان ) څخه يې يوه زغره داوړوپه بوری کښې غلاکړه اوهغه بوری سوری درلود اوړه څينی توئيدل نود(زيدبن السمين ) يهودي کره يې خوندي کړه اوکله چي زغره يې د(طعمه) په کورکښې وپلټله پيدايې نکړه اوهغه قسم وخوړچي زغره يې نه اخيستی اونه ورباندې علم لری نوهغه يې پريښود اوداوړو په کرښه راروان شول ترڅوچي ديهودي کورته راورسيدل اوزغره يې څينی راوايستله هغه ورته ووېل چي ماته (طعمه) راکړي ده اوڅوتنويهودانوهم دغسي شاهدي اداکړه اودبنی ظفرقوم ووېل چي راځئ رسول الله ﷺ ته ولاړشو اوهلته يې دخپل سړي دبرائت شاهدي ورکړه اويهودي يې دغلا په تورونيو نورسول الله ﷺ يې هم خبره ومنله چي داآيت نازل شو: (انا انزلنا اليک الکتاب بالحق لتحکم بين الناس بما اراک الله ...) دآيت ترپايه او(طعمه) مکې ته وتښتيدواوهلته يې ديوکوردېوال سوري کاووچي غلا څينی وکړی خوديوال ورباندی ونړيدواوهلته مړشو.[3]

تفسير:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَوَفَّىٰهُمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ظَالِمِىٓ أَنفُسِهِمْ قَالُوا۟ فِيمَ كُنتُمْ ۖ قَالُوا۟ كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (بيشکه هغه کسان چي وفات کړی وی دوئ لره ملائکو(دمرګ) پداسی حال کښې چي وي دوئ ظلم کونکي په ځانونوخپلووايي ورته (ملائکې) په کوم حال کښې وئ تاسی ؟(پخپلودينې چاروکښې) وايي دوئ چي ووموږضعيفان کړی شوي په ځمکه کښې ) يعنی هغه کسان چي پخپلوځانونويې پدی ظلم کړی چي دشرک په تاټوبی کښې اوسيدل اودهجرت وطن ته نه ولیږديدلی کله چي پرښتې دغه سوال دتوبيخ

---

۱- تفسيرغريب القرآن ص ۱۳۴ ۲- القرطبی ۵ /۳۷۰ ۳- مختصرابن کثير۱ /۴۳۷

اوتقريع په ډول څيني وپوښتي نودوئ به عذروړاندی کړي چي مونږ په مکه کښي عاجزان وو نه موشواى
کولاي ديني احكام پرځاى راوړو ﴿ قَالُوٓا۟ أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةً فَتُهَاجِرُوا۟ فِيهَا ﴾ (ملائكې ورته وايې چي
آيانه وه ځمكه دالله ارته پس هجرت كړي واى تاسي پدې (ځمكه ) كښي ؟ ) يعنى ملائكې دتوبيخ
اوترټنې په ډول ورته وايې چي آيادالله ځمكه پراخه نه وه چي له دارکفر نه موهجرت كړي واى داسی ځاى
ته چي هلته موكولاي شواى دخپل دين په شعائروادا كولو كښي آزادواى لكه چي دمدينې منورې
اوحبشې مهاجرينو وكړاى شول ؟ وروسته الله ددوئ جزاء هسی بيانوي ﴿ فَأُو۟لَٰٓئِكَ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَسَآءَتْ
مَصِيرًا ﴾ نو دا (تاركين دهجرت ) ځاى ددوئ دوزخ دی اوناكاره ځاى دورتلودى (دادوزخ ) بيا الله تعالى ؛
كمزوری اوله هجرت څخه عاجزان ځنى مستثنى كړل چي : ﴿ إِلَّا ٱلْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلْوِلْدَٰنِ
لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا ﴾ مگر (نه به عذابيږي ) هغه چي په رښتيا سره ضعيفان دی له نارينه
وواوله ښځواوله هلكانوچي نه توانيږي او(نلري) هيڅ حيله (تدبير) اونه پيژنی دوئ لاره دتللو(له
دارحرب نه) ﴿ فَأُو۟لَٰٓئِكَ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ ﴾ پس داعاجزان (چي دي ) ښايې چي الله عفوو كړي له
گناهونو ددوئ نه ځكه دوئ خوهجرت پخپل اختيارنه دی پری ايښي ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ﴾ اودي الله
ښه عفوكونكي (دمعذورانو ) ښه ښښونكي ددوئ عسی دالله ﷻ په كلام كښي تحقيق افاده كوي ﴿ وَمَن
يُهَاجِرْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ يَجِدْ فِى ٱلْأَرْضِ مُرَٰغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً ۚ ﴾ اوهرڅوك چي وطن پريږدی (اوولاړشي ) په لاره دالله
كښي نوو به مومي دی په ځمكه كښي دآرامې ځايونه ډيراوپراخې (دروزې ) دغه دهجرت په باره كښي
ترغيب اوهڅونه ښيې يعنى څوک چي له خپله هيواده بيل شي اوخپل دين له دښمنانوڅخه وژغوری
نوپه ځمكه كښي به دومره پراخې ومومي چي ددښمن پوزه به يې سپيره شي (خجل اوشرمنده به شی )
اوپراخه روزې به الله وركړي ځكه دالله مځكه پراخه اوروزې يې ډيره ده (يا عبادى الذين آمنوا ان ارضي
واسعة فاياي فاعبدون) ﴿ وَمَن يَخْرُجْ مِنۢ بَيْتِهِۦ مُهَاجِرًا إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ثُمَّ يُدْرِكْهُ ٱلْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُۥ عَلَى ٱللَّهِ ۗ ﴾
اوهرڅوک چي ووزي له كوره خپله پداسی حال كښي چي هجرت كونكي وي طرف دالله اورسول ته
بيادی ومومي مرگ (لاندی كړی دي له كوره بهر) نوپه تحقيق سره واقع شواجرده په الله باندی يعنى
ترپخواله دې چي دارهجرت ته ورسيږي مرگ ورته راشی نواجريې دالله په نزدثابت شو ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا
رَّحِيمًا ﴾ اودي الله ښه ښښونكي ډيرحم والايعنى دبندگانو دگناهونو پټونكي اوښښونكي دی ﴿ وَإِذَا ضَرَبْتُمْ
فِى ٱلْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُوا۟ مِنَ ٱلصَّلَوٰةِ ) اوكله چي سفركوئ تاسی په ځمكه كښي پس نشته
پرتاسی هيڅ گناه پدی كښی چي څه لنډوالی وكړئ تاسی له لمانځه يعنى كله چي
تاسودغزا ،اوياسوداگري لپاره په سفرځئ نوپه تاسی هيڅ گناه نشته چي څلورركعتيزدوه ركعته
وكوذارئ ﴿ إِنْ خِفْتُمْ أَن يَفْتِنَكُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ ۚ ﴾ كه ويريدئ تاسی له دې چي په فتنه كښي به واچوي (ضرربه

ورسوي) تاسی ته هغه[1] کسان چي کافران شوی دی ،دوېري يادونه دلته دشرط لپاره نه بلکه دواقعي بيان دی ځکه پخوانی سفرونه به له وېرې څخه خلاص نه وومشرکان خوراډيرووااوددغې خبرې تائيد(ديعلی بن أميه ) حديث هم کوي چي هغه وايي ماعمربن الخطاب ته وويل چي الله فرمايي: (ان خفتم) خواوس خلګوايمان راوړي دی نوهغه راته وويل کوم څيزچي تاته عجيب ښکاره شوي ماته هم عجيب وماله رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه هغه راته وفرمايل : (دادالله ﷻ له لوری صدقه پرتاسولورول شوي ده دالله ﷻ صدقه ومنئ ا ﴿إِنَّ ٱلْكَٰفِرِينَ كَانُوا۟ لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِينًا﴾ بيشکه چي کافران دی تاسولره دښمنان ښکاره ) يعنی ددوئ دښمني څرګنده ده کله چي تاسوپه لمانځه ولاړياست دوئ ته سخته نه ده چي تاسودي ونه وژنی ﴿وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ ٱلصَّلَوٰةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُم مَّعَكَ وَلْيَأْخُذُوٓا۟ أَسْلِحَتَهُمْ﴾ اوکله چي اوسي ته (ای محمده ) په دوئ کښي (ددښمنانوڅخه دوېرې په وخت کښی ) پس اقامت وکړي ته دوئ ته دلمانځه (نولښکرخپل دوه طائفې کړه ) پس ودې دريږي يوه طائفه له دوئ څخه له تاسره اووادي اخلی (دالمونځ کونکي ) وسلې خپلې يعني دوئ دي مسلح وي داحتياط لپاره ﴿فَإِذَا سَجَدُوا۟ فَلْيَكُونُوا۟ مِن وَرَآئِكُمْ وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا۟ فَلْيُصَلُّوا۟ مَعَكَ﴾ (نوکله چي سجده وکړی دوئ (دوه رکعتې په اول رکعت کښي ) اودرې رکعتېزاوڅلوررکعتېزپه دوهم رکعت کښي ) پس شي دی دوئ ستاسی وروسته اورادي شی بله ډله چي لمونځ يې نه وي کړی پس لمونځ دی وکړي دوئ له تاسره ﴿وَلْيَأْخُذُوا۟ حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ﴾ اووادې خلی دوئ (هم اسباب د ) بيدارې اووسلې خپلې (تيارسئ دی اوسې ) ﴿وَدَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَٰحِدَةً﴾ خوښه ده دهغوکسانوچي کافران شوي دی (دا ) که په يوډول سره غافلان شي تاسی له وسلوخپلوڅخه اوله اسبابونوخپلوڅخه خوحمله وکړي دوئ پرتاسي باندې په يوه حمله سره اوتاسی ووژنی پداسی حال کښي چي په لمانځه ولاړياست يعنی تاسوټول په يوځای په لمانځه مه مشغوليږئ چي دښمن درباندی ناببره حمله راوړي بلکه داسی لمونځ کوئ لکه چي درته ارشادوشو ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰٓ أَن تَضَعُوٓا۟ أَسْلِحَتَكُمْ﴾ (اونشته هيڅ ګناه په تاسی باندی که چيري په تاسی باندې څه ضرر وی له بارانه ياوئ تاسي ناجوړه چي کښيږدئ تاسي وسلې خپلې چي وړلای يې نشئ ﴿وَخُذُوا۟ حِذْرَكُمْ﴾ اوونيسي (په هرحال کښي اسباب) دبيدارې خپلې يعنی بيداراوسئ اوڅوموس وی ددښمن لپاره تياروواوسئ ﴿إِنَّ ٱللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَٰفِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا﴾ بيشکه الله تيارکړی دی له پاره دکافرانوعذاب سپک کونکي ابن کثيروايي ددی آيت شريف له تفسيرسره داروايت له (ابی عياش الزرقی ) څخه راوړي چي هغه ويلي مونږپه (عُسفان ) کښی له رسول الله ﷺ سره ووچي له مشرکانوسره مخامخ شوچي خالدبن وليدهم وودوئ زمونږاوقبلې ترمينځ وورسول الله ﷺ

---

[1] مختصرابن کثير ۱/۴۳۱ )

مونږته لمونځ راکړاوداداماسپښين لمونځ وونودوئ ويل که مونږورباندی حمله کړی وای دوئ به موږزولی ووخکه دوئ په لمانځه مشغول وواوبيايې وويل اوس پردوئ داسی لمونځ راتلونکي دی چې دوئ ته ترځانونواولادونوهم غوره دی (ابی عياش وايي ) چې بياحضرت جبريل دغه آيتونه رسول الله ﷺ ته وحی راوړه چې:(وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ ٱلصَّلَوٰةَ )دآيت ترپايه وروسته الله ﷻ دذکردزياتولوستلوامروفرمايه چې وروسته دخوف له لمانځه بايدپه يادولرل شی ويې فرمايل: ﴿ فَإِذَا قَضَيْتُمُ ٱلصَّلَوٰةَ فَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ قِيَٰمًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ ﴾ بياکله چې اداکړئ تاسی لمونځ نويادوئ الله (يا ) پس کله چې اراده وکړئ تاسي دګذارلود لمانځه نويادوئ تاسی الله په ولاړي اوپه ناستي اوپه اړخونوخپلو. يعنی کله چې له لمانځه څخه فارغ شئ نودالله ﷻ ذکرډيرکوئ په ولاړې په ناستي اوپه اړخ هم په ټولوحالاتوکښي ښايې چې دا(الله ) تاسوته ستاسوپه دښمن بری درکړي ﴿ فَإِذَا ٱطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ (پس کله چې آرام شوئ نوقائموئ تاسي (سم اداکوئ سره له ټولوحقوقولمونځ ) يعنی کله چې په امن شوئ رکوع ، سجوداوخشوع يې سره له ټولوشرائطوپرځای کوئ ﴿ إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ كَانَتْ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ كِتَٰبًا مَّوْقُوتًا ﴾ بيشکه چې لمونځ دی پرمسلمانانوباندی فرض کړی تاکلی شوی په معلوموواوقاتوکښي ، چې ناوخته کول يې ندي روا وروسته الله ﷻ دجهادپه هکله اوهمداراز دتکاليفواوربړونوپه باب دزغم اوصبرتوصيه کوي فرمايي: ﴿ وَلَا تَهِنُوا۟ فِى ٱبْتِغَآءِ ٱلْقَوْمِ إِن تَكُونُوا۟ تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ وَتَرْجُونَ مِنَ ٱللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ ﴾ (اوسستې (بی همتې ) مه کوئ (ای مؤمنانو ) په طلب (تعقيب اوجنګ ) دقوم دکفاروکښي که يئ تاسی چې دردمن کيږئ نوبيشکه دوئ (هم ) دردمن کيږي همغسی چې تاسی دردمن کيږئ اوهيله لرئ تاسی ( له جانبه ) دالله دهغه ثواب چې دوئ (کفار)يې اميداوهيله نلری ) يعنی ددوئ په لټه اوجنګ باندی کمزوری کيږئ مه ويې وژنئ ټولې لارې ورته ونيسئ اوکه تاسوته دردرسيږي دوئ ته هم رسيږي خوتاسی له الله ﷻ څخه دثواب دنصرت اوشهادت اميدلرئ چې دوئ يې نلری ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾ ( اودي الله (په هرشی) ښه عالم ښه حکمت والا ) دخلکوپه مصالحوښه عالم اودتشريع په باب دحکمت اوتدبيرخاوندی قرطبی وايې چې دغه آيت شريف داحد دجنګ په وخت کښي رانازل شوی چې رسول الله ﷺ ته امروشوچې دکفاروتعقيب وکړي اوله شاپسی ووزی پداسی حال کښي چې مسلمانان پرهارژلی اوزخميان وواورسول الله ﷺ داسی امروکړچې يوازی هغه کسان به وزی چاچې دأحدپه غزاکښي ګډون کړي ووااوچابياويلی داپه هره غزاکښي دی ﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ ٱلنَّاسِ بِمَآ أَرَىٰكَ ٱللَّهُ ﴾ بيشکه مونږنازل کړی دی تاته کتاب (قرآن)ای محمده !) په حقه سره دپاره ددې چې حکم وکړي ته (ای محمده په مينځ دخلکوکښي په هغه طريقه سره چې درښودلی ده تاته الله ﷻ (اووحی يې درته کړی ) ﴿ وَلَا تَكُن لِّلْخَآئِنِينَ

[1] - مختصر ابن کثير ۴۳۱/۱.

خَصِيمًا ﴾ ) اومه کیږه له جانبه دخیانتګروجګړه کونکي (له بې ګناهوسره ) یعنی دخائنانومدافع مه جوړیږه چي مرادځینی (طعمة بن ابیرق ) اودهغه ټبردی ﴿ وَٱسْتَغْفِرِ ٱللَّهَ ﴾ اومغفرت وغواږه له الله په هغه څه چي تاد(طعمه ) دقوم ګواهۍ ومنله چي ګواکي هغه بریٔ الذمة دی اوله ده څخه دی ددفاع کولوقصدوکړ ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ بیشکه چي الله دی ښه مغفرت کونکي هغه چالره چي تری ښښنه غواړي ډیررحم والادی هغه لره ﴿ وَلَا تُجَٰدِلْ عَنِ ٱلَّذِينَ يَخْتَانُونَ أَنفُسَهُمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ خَوَّانًا أَثِيمًا ﴾ (اوجګړه مه کوه له (طرفه ) دهغوکسانوچي خیانت کوي دوئ له ځانونوخپلوسره بیشکه چي الله نه خوښوي هرهغه څوک چي وی ډیرخیانت کونکي ګنهګار) یعنی هغه څوک چي له خپل ځان سره په ګناهونوکولوخیانت کوي دهغه دفاع مکوه هغه څوک چي په ګناهونوکښي غرق اوخیانت کښي ډوب وي الله یې نه خوښوي ﴿ يَسْتَخْفُونَ مِنَ ٱلنَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُونَ مِنَ ٱللَّهِ ﴾ (پټوی له خلکوڅخه ( له شرمه داخیانت ) اونه یې پټوي ( نه شرمیږي ) له الله نه اوالله خوډیرددي وړدی چي ځنی حیاوشي اوله عذاب څخه یې ووېریږي ﴿ وَهُوَ مَعَهُمْ إِذْ يُبَيِّتُونَ مَا لَا يَرْضَىٰ مِنَ ٱلْقَوْلِ ﴾ ( الله ﷻ تل له دوئ سره دی (پخپل علم ) کله چي دشپې دوئ دهغه خبروچي الله یې نه خوښوي تدبیرونه تړي ) یعنی الله ﷻ له دوئ سره دي چي په دوئ عالم دي هغه څه تدبیرونه پلمې چي دوئ یې په پټه جوړوي الله یې اوري دوئ په پټه تړون کوي چي ددروغو شاهدي اوقسمونه آخلی بری الذمة سړي پرې تورنوي اودګنهګاردبرائت بهانې جوړوي ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطًا ﴾ ( اودی الله ﷻ په هغوکارونوچي دوئ یې کوي محیط (چاپیریدونکي په علم اوقدرت سره ) یعنی له هغه څخه هیڅ هم پټ اوالونیانه دی وروسته له دی الله پاک دطعمه ټبرته دتوبیخ په ډول داسی فرمایي : ﴿ هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ جَٰدَلْتُمْ عَنْهُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ واوریٔ خبردارشیٔ تاسی ای هغه کسانوچي جګړه کویٔ له (طرفه د ) طعمه دوئ په دې حیات دنیوي کښي ؛ ) یعنی تاسې چي له غلواوخائنانوڅخه په دنیاکښي دفاع کویٔ ! ﴿ فَمَن يُجَٰدِلُ ٱللَّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ پس څوک دی چي جګړه به وکړي له الله سره ( له طرفه ) ددغو (خیانتګرو ) په ورځې دقیامت کښي ؟ ! کله چي الله یې پخپل عذاب اخته کړي ﴿ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا ﴾ بلکه آیاڅوک دی چي وي به (دقیامت په ورځې کښي) ددوئ وکیل (ساتونکي) له عذابه؟ بلکه هیڅوک نشته ) وروسته بیاالله تعالی دوئ درجوع اوتوبې لورى ته رابولی فرمایي : ﴿ وَمَن يَعْمَلْ سُوٓءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُۥ ﴾ ( اوهرڅوک چي وکړی یوه ګناه یاظلم وکړي پخپل ځان ) یعنی څوک چي یوبدکاروکړي لکه چي په بیګناه سړي تورولګوي اویاپه ظلم بله ګناه وکړي لکه غلاچي پخپل ځان ظلم کول دی ﴿ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ ٱللَّهَ يَجِدِ ٱللَّهَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ بیامغفرت وغواړی له الله څخه نو(مومي) الله ډیرمغفرت کونکي ډیررحم والا. ابن عباس ﷺ وایي چي الله پاک پدې آیت کښي (بن ابیرق) ته توبه وړاندی کړی ده ﴿ وَمَن يَكْسِبْ إِثْمًا فَإِنَّمَا يَكْسِبُهُۥ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾

( اوهرڅوک چي وکړی ګناه نوبیشکه هم داخبره ده چي کوي دا(ګناه) په ځان خپل باندی اودی الله ښه عالم ښه حکمت والا ) یعنی څوک چي په قصد کومه ګناه وکړي نووبال یې هغه ته راجع دی اوالله دده په ګناه ښه عالم اوپه جزاء ورکولویې ښه دحکمت خاونددی ﴿ وَمَن يَكْسِبْ خَطِيٓـَٔةً أَوْ إِثْمًا ﴾ اوهرڅوک چي وکړي یوه وړه ګناه یایوه لویه ګناه ﴿ ثُمَّ يَرْمِ بِهِۦ بَرِيٓـًٔا فَقَدِ ٱحْتَمَلَ بُهْتَٰنًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴾ بیاوولي (متهم کوي) پدې (ګناه ) سره کوم پاک سړي پس په تحقیق باریې کړ(پرځان خپل) ډیرغټ دروغ اوګناه ښکاره بیاوروسته الله تعالی په خپل پیغمبرباندی فضل اواحسان بیانوي فرمایي : ﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهُۥ لَهَمَّت طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ أَن يُضِلُّوكَ ﴾ اوکه چیری نه وي فضل (احسان) دالله پرتاباندی اومهرباني دده نوهرومروبه قصدکړي وویوې طائفي ددوئ څخه چي تېرباسی تا(اوګمراه کړی پخپل قصدسره تا ) یعنی که چیری په تادالله فضل اواحسان نه وای چي رحمت ، عصمت اونبوت یې درکړ نویوې ډلې به ته له حق څخه تېرایستلی وای اوداهغه وخت چي له رسول الله ﷺ څخه یې وغوښتل چي ددوئ سړي بیګناه ثابت کړي اوتور په یهودي پوري کړي خوالله په رسول الله باندی فضل اواحسان وکړچي په حقیقت یې خبرکړ﴿ وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ ﴾ اونه تېرباسی دوئ مګرخانونه خپل ﴿ وَمَا يَضُرُّونَكَ مِن شَىْءٍ ﴾ اونه شي ضررسولای تاته دهیڅ شي !(ځکه ته الله معصوم کړی یی)﴿ وَأَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ ﴾ اونازل کړی دی الله په تاباندی کتاب اوحکمت (ای محمده !) یعنی قرآن اوسنت یې په تانازل کړي نودوئ به څرنګه وکولاي شي تاتېرباسی چي الله کتاب درته رااستولی اوداحکاموحی درته کوي ﴿ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُن تَعْلَمُ ۚ وَكَانَ فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكَ عَظِيمًا ﴾ ( اودرښوولی دی تاته هغه (خبري) چي ته نه وې پوهیدلی (پری) اودی فضل (احسان ،رحمت )دالله پرتاباندی ډیرلوی) یعنی الله ﷺ تاته شرائع اوغیبي امورهغه چي تاته معلوم نه وودرښودلی اودالله فضل په تاباندی دوحی استولو ،رسالت اونوروسترونعمتونوډیرلوی دی

بلاغت: پدی آیتونوکښي چي دبلاغت ،بیان اوبدیع څه ډولونه شته لنډیزیې دادی:

۱. هغه استفهام چي توبیخ یې مقصدوی لکه (قالوا فیم کنتم) اوپدی آیت کښي : (الم تکن أرض الله واسعة) .
۲. اطلاق دعام چي دخاص اراده یې شوی وی لکه (فاذا قضیتم الصلوة) چي دخوف لمونځ ځنی مقصددی.
۳. مغایرجناس چي په: (یعفو...عفوا)او (یهاجر...مهاجرا) او (یختانون...خوانا) او (یستغفر...غفورا) کښي راغلی دی.
۴. په واحدباندی دجمع اطلاق کول لکه : (توفاهم الملائکة) چي مرادځینی ملک الموت اومقصدپکښي دهغه تعظیم دی.
۵. دسلب طباق لکه: (یستخفون من الناس ولایستخفون من الله) .

۲. اطناب چې دصلاة دلفظ په تکرارسره راغلی ترڅوپه فضيلت يې تنبيه راشی لکه: (فاقيموا الصلوة ......ان الصلوة كانت على المؤمنين كتاباً موقوتا).

الله تعالى فرمايي:

﴿لَّا خَيۡرَ فِي كَثِيرٖ مِّن نَّجۡوَىٰهُمۡ إِلَّا مَنۡ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوۡ مَعۡرُوفٍ أَوۡ إِصۡلَٰحِۭ بَيۡنَ ٱلنَّاسِۚ وَمَن يَفۡعَلۡ
ذَٰلِكَ ٱبۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِ ٱللَّهِ فَسَوۡفَ نُؤۡتِيهِ أَجۡرًا عَظِيمٗا ﴿١١٤﴾ وَمَن يُشَاقِقِ ٱلرَّسُولَ مِنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ ٱلۡهُدَىٰ
وَيَتَّبِعۡ غَيۡرَ سَبِيلِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصۡلِهِۦ جَهَنَّمَۖ وَسَآءَتۡ مَصِيرًا ﴿١١٥﴾ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ
وَيَغۡفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُۚ وَمَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلَٰلَۢا بَعِيدًا ﴿١١٦﴾ إِن يَدۡعُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ
إِنَٰثٗا وَإِن يَدۡعُونَ إِلَّا شَيۡطَٰنٗا مَّرِيدٗا ﴿١١٧﴾ لَّعَنَهُ ٱللَّهُۘ وَقَالَ لَأَتَّخِذَنَّ مِنۡ عِبَادِكَ نَصِيبٗا مَّفۡرُوضٗا ﴿١١٨﴾
وَلَأُضِلَّنَّهُمۡ وَلَأُمَنِّيَنَّهُمۡ وَلَأٓمُرَنَّهُمۡ فَلَيُبَتِّكُنَّ ءَاذَانَ ٱلۡأَنۡعَٰمِ وَلَأٓمُرَنَّهُمۡ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلۡقَ ٱللَّهِۚ وَمَن
يَتَّخِذِ ٱلشَّيۡطَٰنَ وَلِيّٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ فَقَدۡ خَسِرَ خُسۡرَانٗا مُّبِينٗا ﴿١١٩﴾ يَعِدُهُمۡ وَيُمَنِّيهِمۡۖ وَمَا
يَعِدُهُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا ﴿١٢٠﴾ أُوْلَٰٓئِكَ مَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُونَ عَنۡهَا مَحِيصٗا ﴿١٢١﴾ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ
وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ سَنُدۡخِلُهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدٗاۖ وَعۡدَ ٱللَّهِ حَقّٗاۚ وَمَنۡ
أَصۡدَقُ مِنَ ٱللَّهِ قِيلٗا ﴿١٢٢﴾ لَّيۡسَ بِأَمَانِيِّكُمۡ وَلَآ أَمَانِيِّ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِۗ مَن يَعۡمَلۡ سُوٓءٗا يُجۡزَ بِهِۦ وَلَا يَجِدۡ
لَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلِيّٗا وَلَا نَصِيرٗا ﴿١٢٣﴾ وَمَن يَعۡمَلۡ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ مِن ذَكَرٍ أَوۡ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤۡمِنٞ
فَأُوْلَٰٓئِكَ يَدۡخُلُونَ ٱلۡجَنَّةَ وَلَا يُظۡلَمُونَ نَقِيرٗا ﴿١٢٤﴾ وَمَنۡ أَحۡسَنُ دِينٗا مِّمَّنۡ أَسۡلَمَ وَجۡهَهُۥ لِلَّهِ وَهُوَ مُحۡسِنٞ
وَٱتَّبَعَ مِلَّةَ إِبۡرَٰهِيمَ حَنِيفٗاۗ وَٱتَّخَذَ ٱللَّهُ إِبۡرَٰهِيمَ خَلِيلٗا ﴿١٢٥﴾ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۚ وَكَانَ ٱللَّهُ
بِكُلِّ شَيۡءٖ مُّحِيطٗا ﴿١٢٦﴾ وَيَسۡتَفۡتُونَكَ فِي ٱلنِّسَآءِۖ قُلِ ٱللَّهُ يُفۡتِيكُمۡ فِيهِنَّ وَمَا يُتۡلَىٰ عَلَيۡكُمۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ
فِي يَتَٰمَى ٱلنِّسَآءِ ٱلَّٰتِي لَا تُؤۡتُونَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرۡغَبُونَ أَن تَنكِحُوهُنَّ وَٱلۡمُسۡتَضۡعَفِينَ مِنَ ٱلۡوِلۡدَٰنِ
وَأَن تَقُومُواْ لِلۡيَتَٰمَىٰ بِٱلۡقِسۡطِۚ وَمَا تَفۡعَلُواْ مِنۡ خَيۡرٖ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِهِۦ عَلِيمٗا ﴿١٢٧﴾ وَإِنِ ٱمۡرَأَةٌ خَافَتۡ مِنۢ بَعۡلِهَا
نُشُوزًا أَوۡ إِعۡرَاضٗا فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِمَآ أَن يُصۡلِحَا بَيۡنَهُمَا صُلۡحٗاۚ وَٱلصُّلۡحُ خَيۡرٞۗ وَأُحۡضِرَتِ ٱلۡأَنفُسُ ٱلشُّحَّۚ وَإِن
تُحۡسِنُواْ وَتَتَّقُواْ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعۡمَلُونَ خَبِيرٗا ﴿١٢٨﴾ وَلَن تَسۡتَطِيعُوٓاْ أَن تَعۡدِلُواْ بَيۡنَ ٱلنِّسَآءِ وَلَوۡ
حَرَصۡتُمۡۖ فَلَا تَمِيلُواْ كُلَّ ٱلۡمَيۡلِ فَتَذَرُوهَا كَٱلۡمُعَلَّقَةِۚ وَإِن تُصۡلِحُواْ وَتَتَّقُواْ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورٗا
رَّحِيمٗا ﴿١٢٩﴾ وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغۡنِ ٱللَّهُ كُلّٗا مِّن سَعَتِهِۦۚ وَكَانَ ٱللَّهُ وَٰسِعًا حَكِيمٗا ﴿١٣٠﴾ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ
وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ وَلَقَدۡ وَصَّيۡنَا ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ مِن قَبۡلِكُمۡ وَإِيَّاكُمۡ أَنِ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ وَإِن تَكۡفُرُواْ فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي

ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ غَنِيًّا حَمِيدًا ﴿١٣١﴾ وَلِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلًا ﴿١٣٢﴾ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ أَيُّهَا ٱلنَّاسُ وَيَأْتِ بِـَٔاخَرِينَ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ ذَٰلِكَ قَدِيرًا ﴿١٣٣﴾ مَّن كَانَ يُرِيدُ ثَوَابَ ٱلدُّنْيَا فَعِندَ ٱللَّهِ ثَوَابُ ٱلدُّنْيَا وَٱلْـَٔاخِرَةِ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ سَمِيعًۢا بَصِيرًا ﴿١٣٤﴾ النساء: ۱۱۴-۱۳۴

**مناسبت او تړاو:**

کله چي الله تعالی د(طعمة) کیسه او دغلا پیښه بیان کړه چي په هغه یې یوبې گناه یهودی تورن کړاو دده تبرېه ناحقه دده ملاتړوکړپه پټه یې دیهودی لپاره تدبیرجوړکړنو دلته الله داسې یادونه کوي چي (نجوی) له الله څخه پټیدلای نشی اوهره دوکه اوچل چي په پټه ترسره کیږي الله وربانڍی خبردي اوپه پټوغونډي غونډوکېبي خیرنشته خوپوازی هغه غونډې چي دبرکت وی وروسته الله داڅرگندوي چي درسول الله ﷺ له حکم څخه سرغړونه سترجرم اوگناه ده همداسی دشیطان له لارولیکوڅخه مسلمانان وېروي او بیا دا خبره راغبرگوي چي په میرمنوباندې په میراث اوولورظلم مکوئ اوهغوئ ته احسان لازم گڼي لکه چي دنشوز اوسرغړونې موضوع راسپړي چي دمیړه اومېرمنې ترمینځ باید اصلاح اوسوله وشي یایې سره متفق اویاسره جلاکړي.

**لغتونه:**

(نجواهم) ددوي رازونه (نجوی) هغه رازته وایې چي ددووي ترمینځ وي واحدی وایې چي (نجوی) یوازي ددووتنوترمینځ کیدای شی (لیشاقق)چی مخالفت وکړی له شقاق څخه اخیستل شوی اومخالفت ته وایې چي له دېښمنه سره جوخت ترسره کیږي څکه هریوددوئ په یوشق کښېي واقع چي بل هلته نه وی (مریدا) متمرداوسرکښ ته وایې کله چي څوک متجبراو سرغړونکي وی (الازهري) وایې چي: (مردالرجل اذاعتا فهومارد ومرید) یعنی کله چي څوک سرغړونکي اوله طاعت څخه ووزی ورته (مارد) او(مرید) وایې(فلیبتکن)(بتک) قطع ته وایې اوله دې څخه راغلی چي (سیف باتک) یعنی(قاطع)غوڅونکي توره (محیصا) دتیښتې لاراوپه متلونوکښې راځي چي: (وقعوافی حیص بیص) یعنی پداسی لانجه کښې ولویدوچي څینی خلاصون به ونه مومي (خلیلا) له خلت څخه اخیستل شوي اوهغه دزړه له کومی مینی ته وایې (الثعلب) وایې چي خلیل ته څکه خلیل وایې چي محبت یې دزړه تل ته په تړوله معنا رسیدلی اوهیڅ خلل یې پری ایښې نه وی (شح) دبخل شدت ته وایې (المعلقة) هغې ښځې ته ویل کیږي چي نه خومیړه لري اونه هم طلاق ورکول شوي وي.

**دنزول سبب:**

أ- کله چي (طعمه) بن (ابیرق) غلاوکړه اورسول الله ﷺ دهغه دلاس په غوڅولو حکم صادرکړهغه مکې ته وتښتیدواومرتدشونو الله دا آیت نازل کړ:(ومن یشاقق الرسول من بعد ماتبین له الهدی)[1] دآیت تر پایه.

ب- قتادة ﷺ وایې چي مسلمانانو او اهل کتابو هرچاڅانته ویاړاوفخرکاو او اهل کتابو ویل چي زمونږ نبی ستاسو ترنبی پخوا راغلی او کتاب موهم ترتاسو دمخه دی نو مونږ ترتاسو دالله وړاولائق

(۱) القرطبی ۵/ ۴۰۰ (۲) القرطبی ۵/ ۳۸۵. (۳) اسباب النزول ص ۱۰۴ (۴) الطبری ۹/ ۲۰۱

يو مؤمنانوويل چي زمونږ پيغمبر خاتم النبيين دي او كتاب مو دنوروكتابونوناسخ دی نو الله ﷻ داآيت نازل كړچي: (ليس بأمانيكم ولا أماني أهل الكتاب) .

**تفسير:**

﴿لَّا خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوَىٰهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلَٰحٍ بَيْنَ ٱلنَّاسِ﴾ نشته هيڅ خيرپه ډيروكښې له پټوخبرو(مشورو) ددوئ نه مگر(خيرشته په پټوخبرو) دهغه چاچې امركوي په صدقه كولويا په نيک كاريا په اصلاح (روغه) په مينځ دخلگوكښې طبری وايي: معروف ټول هغه څه دي چې الله پاک يې دكولوامركړي وي اويانور دخيراونيكي مستحب كارونه وي او اصلاح ددومتخاصموترمينځ روغه كول دي ﴿وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ ٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِ ٱللَّهِ﴾ اوهرڅوک چې وكړي دغه (صدقه) معروف، اصلاح) دپاره دغوښتنې دخوښې دالله نه ددنيوي اغراضواومقاصدولپاره ﴿فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ پس ژربه وركړومونږ ده ته ثواب ډيرلوي چې هغه جنت دی صاوي وايي چې په (سوف) سره تعبيردی ته اشاره ده چې دنيكواعمالوجزابه په آخرت كښې وركول كيږي نه په دنيا كښې ځكه دنيادجزاځای نه دی ﴿وَمَن يُشَاقِقِ ٱلرَّسُولَ مِنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ ٱلْهُدَىٰ﴾ (اوهرڅوک چې مخالفت كوي له رسوله وروسته له هغه چې ښكاره شوه ده ته سمه لاره)په معجزاتوباندی حق ورته څرگندشو ﴿وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ (اولاړشي بی لياری دمؤمنانو) يعنی له هغوئ بيل بله لاره غوره كړي .

﴿نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِۦ جَهَنَّمَ ۖ وَسَآءَتْ مَصِيرًا﴾ نووبه گرځوو دی هغه لوري ته چې دی ورگرځيدلی دی اوداخل به كړومونږ دی دوزخ ته اوبدځای دورتلودی دا(دوزخ ) يعنی دی اودهغه اختياربه سره مخ كړواوپه جهنم كښې به يې ننه باسو ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِۦ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُ﴾ بيشكه الله ښښنه نه كوي داچې شريک ونيول شی له ده سره اومغفرت كوي دهغې گناه چې تردې ښكته وی هغه چاته چې اراده وفرمايي د(مغفرت) يې ﴿وَمَن يُشْرِكْ بِٱللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا﴾ (اوهرڅوک چې شريک ونيسی (كوم شی ) له الله سره نوپه تحقيق گمراه شوي په گمراهي ليري (له حقه) يعنی هغه دحق له لاري اوله نيكمرغي څخه ليری ولويدو ﴿إِن يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ إِنَٰثًا﴾ (نه بولی دوئ (عبادت نه كوي دامشركان ) بې له الله نه مگردښځو ) يعنی دوئ دداسی بتانوعبادت كوي چې دښځونومونه يې ورباندې ايښی دی لكه: دلات، عزی اومناة په تسهيل نومي كتاب كښی وايي چې عربانوبه بتان دښځوپه نومونوباندی يادول[1] ﴿وَإِن يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَٰنًا مَّرِيدًا﴾ اونه بولی دوئ (عبادت نه كوي دامشركان مگردشيطان سركښه هغه ابليس چې دالله له حكم نه يې غاړه غړولی ده اوپه فجوراوتمردكښې وروستې حد ته رسيدلی دي ﴿لَّعَنَهُ ٱللَّهُ ۘ وَقَالَ لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا﴾

(١) الطبری ٥ / ٢٠١ دغه له ابن عباس ﷺ مجاهداوضحاک رضي الله عنهم څخه روايت شوی اودطبری غوره دی چاباوېلی چې مرادله اناث څخه پرښتې دی ځكه چې مشركانوداسی گومان كاووچې پرښتې دالله لوڼې دي.

ليري کړې دی الله ( له رحمته خپله ) (نوهغه داسی قسم خوړلی ) اوویل شیطان چي خامخابه ونیسم هرومرو زه ( اي الله ) ستاله بندګانویوه برخه مقرره کړل شوي (زه به يې خپل طاعت ته راوبولم چي عاصیان اوکافران شي په صحیح مسلم کښي یوحدیث داسی راځي چي الله تعالی به آدم ﷺ ته دقیامت په ورځ ووايې: پاځوه ! پاځیدونکي داور(آدم ﷺ به وايې ) څوک دي داورپاځیدونکي ؟ الله ﷻ به ورته وفرمايې له هروزر. نوڅخه نه سوه نه نوي کسان (اورته پاځوه ) ﴿ وَلَأُضِلَّنَّهُمْ وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ ﴾ (اوزه به هرومرو(لازما ) ګمراه کړم (دوئ اوخامخابه زه (لازما ) دوئ په باطلوهیلوکښي واچوم) یعنی زه به دوئ له سمې لارې څخه واړوم اوددروغو وعدې به ورسره وکړم ددوئ په زړونوکښي به دعمراوږدوالی ورواچوم اوداچي نه مرګ شته اونه هم حساب کتاب ﴿ وَلَأٓمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ ءَاذَانَ ٱلْأَنْعَٰمِ ﴾ اوهرومرو(لازما) به زه امروکړم خامخادوئ ته نوهرومروبه دوئ څیروي غوږونه دحیواناتود (چارپایانو) قتادة وايې چي دغوږونوڅیرول هغه دبحیرة اوسائبة په نامه نښانې کول دی لکه چي به دوئ په جاهلیت کښي کول ﴿ وَلَأٓمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ ٱللَّهِ ﴾ اوزه به خامخا امروکړم دوئ ته پس خامخابه دوئ تغیرورکړي پیدایښت دالله ته لکه دمریانوخصی کول اویادحیواناتواویاهم ورباندی خالونه ایښودل چابیاویلی چي مراددالله ددین تغیرپه کفراوګناهونودي (۱)څه چي الله حلال کړي هغه حرامول اوڅه چي حرام دی هغه حلال ګرزول هم تغیردی ﴿ وَمَن يَتَّخِذِ ٱلشَّيْطَٰنَ وَلِيًّا مِّن دُونِ ٱللَّهِ فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِينًا ﴾ (اوهرڅوک چي ونیسی شیطان دوست بې له الله نوپه تحقیق زیان یې وکړزیان ښکاره ) یعنی څوک چي دشیطان خبره ومني اودالله امرپریږدي نوددنیااوآخرت تاوان یې په برخه شوڅکه هغه به تل ترتله په اورکښي وي اوتردي تاوان بل کوم سترتاوان شته ؟ وروسته الله له ابلیس څخه داسې حکایت کوي ﴿ يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ ﴾ ( وعده کوي شیطان له دوئ سره اوپه باطلوامیدونوکښي غورځوي دوئ ) یعنی هغوئ ته دنیکمرغې اوسعادت وعدې په دروغو ورکوي اوپه نارواهیلوکښی یې اچوي ابن کثیروايې چي دغه دواقعې اخباردی څکه شیطان خپل ملګري اودوستانوته داسی وروښيې چي همدوئ بریالی دی دوئ ددنیا اوآخرت برخه لري خوداسراسردروغ اوافتراء ده[2] ﴿ وَمَا يَعِدُهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا ﴾ اونه کوي شیطان له دوئ سره وعده مګرپه فریب یعنی دغه وعده باطله اوغولونکي ده ابن عرفه وايې چي غرورهغه څه ته وايې چي په څرګنده ښکلی خوپه حقیقت کښي ناکاره اوناخوښه وي په ظاهرښائسته اوپه باطن کښي چټل اوپلیت وي. ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُونَ عَنْهَا مَحِيصًا ﴾ دغه (تابعان دشیطان ) ځاي ددوئ جهنم دي اونه به مومي دوئ له دي دوزخه هیڅ ځای دتیښتي (اوخلاصی) بیاوروسته الله تعالی دنیکمرغه نیکانوخلکوحال

---

(۱) مختصرابن کثیر۱/ ۴۳۹ (۲) ابو السعود۱/ ۳۸۴

بیانوي چي په څومره عزت اوکرامت کنبی به تل ترتله په جنت کنبي اوسی فرمایي: ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۖ ﴾ اوهغه کسان چي ایمان یې راوړی دي اوکړی یې دی ښه عملونه نوژربه داخل کړو مونږدوئ په جنتونو کښي چي بهیږي له لاندې (دمانیواوونو) ددوئ ویالې چي همیشه به وي دوئ په دغو(جنتونو کښي) تل ترتله ﴿ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقًّا ۚ ﴾ (وعده کړي ده الله حقه (وعده) چي هیڅ شک اوشبه پکښي نشته ﴿ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ ٱللَّهِ قِيلًا ﴾ اوڅوک دي زیات رښتیني له الله نه په خبره (اووعده) کښي یعنی هیڅوک له الله ﷻ څخه په وعده کښي رښتینی نشته ابوالسعود وایي چي مقصد دشیطان ددروغوو عدوچي خپلو دوستانو اوانډیوالانو ته یې ورکوي پرتله کول دی چي دالله ﷻ هغه وعدې چي له خپلو اولیاووسره یې کوي د شیطان ددعوی ګانومعارضه وکړي . ﴿ لَّيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَآ أَمَانِىِّ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ ۗ ﴾ (نه دی (ثواب) پرامیدونوستاسی اونه پرامیدونوداهل کتابو) یعنی نه دی دالله هغه دثواب وعده چي یوازي په آرزوګانویې وموميي اي مسلمانانواونه هم په آرزوګانوداهل کتابوده خوپه ایمان اوصالح عمل باندی موندل کیږي حسن بصري رحمه الله وایي: ایمان په هیلونه بلکه هغه دی چي په زړه کښي ځای ونیسی اوپه عمل یې تصدیق وکړي ، ډیرداسی قومونه ووچي آرزوګانوپه غفلت کښی اچولی وو ویل به یې مونږپه الله نیک ګومان لروخوله دنیاڅخه داسی رخصت شول چي هیڅ نیک عمل یې نه درلود دوئ دروغژن ووځکه که په الله یې نیک ګومان کولای نونیک عملونه به یې کړي وو ﴿ مَن يَعْمَلْ سُوٓءًا يُجْزَ بِهِۦ ﴾ (هرڅوک چي وکړي ناکاره کارونه جزابه ورکړل شی ده ته په هغه سره) که ژروي که وروسته ﴿ وَلَا يَجِدْ لَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴾ اونه به مومي دغه (ګنهګار) دځان لپاره بی له الله نه هیڅ دوست اونه مددګارچي مرسته ورسره وکړی اودالله له عذاب څخه یې وژغوري ﴿ وَمَن يَعْمَلْ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ مِن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ ﴾ اوهرڅوک چي عمل وکړي له (ځینو) نیکوعملونوله نارینه وواوله ښځوحال داچي دي مؤمن وي ﴿ فَأُو۟لَٰٓئِكَ يَدْخُلُونَ ٱلْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ نَقِيرًا ﴾ نودغه (نیکوکاران) داخل به شي په جنت کښي اوظلم به ونشي په دوئ (په اندازه) دنقیر) یعنی ددوئ داعمالوله ثواب څخه به هیڅ لږشي هم ځینی ونه ګرزي ولی نه الله پاک خوارحم الراحمین دي اوچي ویې فرمایل: (وهومؤمن) داددي لپاره چي طاعات پرته له ایمانه ګټه نلری ﴿ وَمَنْ أَحْسَنُ دِينًا مِّمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُۥ لِلَّهِ ﴾ اوڅوک دی ډیر غوره له جهته ددین له هغه چاچي ایښي یې وي مخ خپل (ځان خپل یاتندی خاص حکم د) الله ته) یعنی ترهغه چاغوره بل څوک له جهته ددین څخه نشته چي دالله حکم ته یې غاړه کښېښوده اوعمل یې خاص دالله لپاره کړ ﴿ وَهُوَ مُحْسِنٌ ﴾ (حال داچي دي نیکوکاروی) یعنی دالله

اطاعت کوي له نواهيو څخه ځان ژغوري ﴿ وَٱتَّبَعَ مِلَّةَ إِبۡرَٰهِيمَ حَنِيفٗاۗ ﴾ اوچي متابعت يې کړی وي
د(دين ) دابراهيم حال داچي دی حنيف وو(مائل ) وو له باطله حق ته ) چي هغه دين داسلام وو ﴿ وَٱتَّخَذَ
ٱللَّهُ إِبۡرَٰهِيمَ خَلِيلٗا ﴾ اونيولی دی الله ابراهيم دوست (خاص خپل ) يعنی هغه يې دمحبت اوخلت لپاره
غوره کړي ابن کثيروايي: چي هغه د(خلت )هغې اوچتې مرتبې ته چي دمحبت ترټولولوړه ده پورته شوي
اوداالله تعالی لپاره دهغه دزيات طاعت له کبله وو[1] ) ﴿ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۚ ﴾(او(خاص)
الله لره دی هرهغه شيان چي په آسمانونوکښي دی اوهرهغه شيان چي په ځمکه کښي دی )
يعنی ټول هغه څه چي په کائناتوکښي دی دالله ملکيت، خلقت اوبندګان دی اوهغه په ټولوکښي تصرف
کوي دهغه دقضاء اوفيصلې بدلونکي نشته ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٖ مُّحِيطٗا ﴾ اودی الله په هرشی
ښه احاطه کونکي (پخپل علم اوقدرت سره) هيڅ شی ورڅخه پټ اوالونيانه دی ﴿ وَيَسۡتَفۡتُونَكَ فِي
ٱلنِّسَآءِۖ ﴾ طلب دفتوی کوي دوئ له تانه په باب دښځوکښي چي پردوئ باندی دهغوئ واجبات څه دی ؟
﴿ قُلِ ٱللَّهُ يُفۡتِيكُمۡ فِيهِنَّ وَمَا يُتۡلَىٰ عَلَيۡكُمۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ ووايه ( ای محمده دوئ ته ! ) چي الله ﷻ
فتوی (حکم) درکوي تاسی ته په باب د ) دوئ کښي (اوبل) هغه شی (حکم درکوي ) چي لوستلی شی
پرتاسی په کتاب (قرآن کښي )له ميراث ددوئ نه ﴿ فِي يَتَٰمَى ٱلنِّسَآءِ ٱلَّٰتِي لَا تُؤۡتُونَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ
وَتَرۡغَبُونَ أَن تَنكِحُوهُنَّ ﴾ (په باب ) ديتيمانوښځوکښي هغه چي نه ورکوی تاسی دوئ ته هغه (ميراث )
چي فرض کړي شوي دی دوئ ته اومينه کوئ تاسی دی کارته چي نکاح کړئ تاسی دوئ ) دهغوئ دمال
اوياجمال له سببه خوهغوئ ته بشپړ ولورنه ورکوئ نوالله له دی کارڅخه منع کړل ابن عباس ﷺ وايي :
دجاهليت په وخت کښي به ديوچاپه کورکښي يتيمه نجلۍ وه په هغې باندی به يې جامه وغورځوله
اوبيابه نوهيچانشوکولای هغه په نکاح واخلی نوکه به ښکلی اوښائسته وه اودده به خوښه وه په نکاح
کښي به يې کړه اومال به يې وخوړاوکه بدرنګه به وه نورخلک به يې نه پرينبودل چي هغه په نکاح کړی
اونه به يې هم پخپله په نکاح کوله ) ترڅو به مړه شوه اوده به يې ميراث يووړالله ﷻ له داسی کارڅخه منع
کړل .
﴿ وَٱلۡمُسۡتَضۡعَفِينَ مِنَ ٱلۡوِلۡدَٰنِ وَأَن تَقُومُواْ لِلۡيَتَٰمَىٰ بِٱلۡقِسۡطِۚ ﴾ اوحکم درکوي الله په حق )
دضعيفانوکښی اووړوهلکانوکښي او(بل الله داحکم درکوي ) چي ودريږئ تاسی په حق ديتيمانوکښي
په عدل سره (په ميراث اومهرکښي) دجاهليت په وختونوکښي به چا کوچنيانواو ښځوته ميراث نه
ورکاووااوويل به يې : څرنګه موږهغه چاته چي وسله نه شی اخيستلای اوپه آس نه سپريږي دښمن نه
شی وژلای دميراث مال ورکړو؟ الله ﷻ له دی څخه دوئ منع کړل اودوئ ته يې حکم وکړچي

[1] مختصرابن کثير۱/ ۴۳۲ (۲) مختصرابن کثير۱/ ۴۴۳

دنوموړووند ه (په بشپړه توګه ) ورکړئ. ﴿ وَمَا تَفْعَلُوا۟ مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِهِۦ عَلِيمًا ﴾ اوهرڅه چي کوئ تاسی له خير(نيکي ) پس بيشکه چي الله دی پرهغه ښه عالم اوپرهغه به جزادرکړي ابن کثيروايي چي دغه دنيکوکارونولپاره هڅونه ده چي دالله دحکمونوپه امتثال اوپه ښوکارونوبه الله ﷻ بشپړه جزااوثواب درکوي (بيا له دې وروسته الله ﷻ دناريته دسرغړونی اونشوزحکم داسی بيانوي: ﴿ وَإِنِ ٱمْرَأَةٌ خَافَتْ مِنۢ بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا ﴾ اوکه کومه ښځه وېريده له ميړه خپله دسرکشی (دحقوقوپه منع اويادصحبت په ترک ) يادمخ ګرزولو( له مجلسه اوخبرو ) يعنی که چيری کومه ښځه له دی ويريده چي ميړه بې ورباندی غته وايي اوله هغې څخه ددې دبدرنګي له سببه مخ اړوی چي دازړه اويابدرنګه ده دبلې خوانې ښځې چي ښايسته وی دهغې لورته مينه کوي ﴿ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ أَن يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَٱلصُّلْحُ خَيْرٌ ﴾ پس نشته هيڅ ګناه پردغودواړوپدې کښي چي صلح وکړي دوئ په خپلومينځونو کښي يوشا ن صلح اوصلح کول خير(ډيرغوره ) دی ) يعنی ميړه اوښځه باندی دسولې په کولو کښي څه ګناه نشته چي ښځه له خپلوحقوقو څخه يوڅه پريږدي چي دنفقې ، ياجامې اوياکوروالی حقوق دی ترڅوپدې باندی ميړه راضی اوخوښ کړی اوملګرتيايې وساتې ابن جريرله حضرت عائشې رضی الله عنهاڅخه روايت کوی چي: ديوه سړی به دوې مېرمنې وی يوه به بوډۍ اويابدرنګه وه اودده به خوښه نه وه هغې به ورته وويل : ماخپل حق دربښلی خوماته طلاق مه راکوه.[1] (والصلح الخير) اوصلح ډيره غوره ترفراق اوطلاق ده ) ﴿ وَأُحْضِرَتِ ٱلْأَنفُسُ ٱلشُّحَّ ﴾ (اوحاضری کړي شوي دی نفسونه حرص ته ) يعنی نفسونه په شدت دبخل باندی پنځول شوي دی ښځه له خپله حقه چي نفقه او استمتاع ده نه تېريږي اوناريته هم دښځې دبدرنګي په حال کښي دي ته نه تياريږي چي دهغې خپل وار،سم اداکړي اويايې دځان ملګري وساتي کله چي ترډي زياته بې بله خوښيږي ﴿ وَإِن تُحْسِنُوا۟ وَتَتَّقُوا۟ ﴾ اوکه نيکې وکړئ تاسی (له خپلوښځوسره ) اوپرهيزوکړئ تاسی ( له نشوزاوخصومته ) يعنی له ميرمنوسره نيکه معامله اوښه چلندوکړئورباندی ظلم نه کوئ ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴾ نوبيشکه چي الله دی په هغه شی چي کوئ بې تاسی ښه خبرداراوپه هغه به بشپړه جزادرکړی وروسته بياالله تعالی داخرګندوی چي په حقيقی توګه مطلق عدل کول دښځوترمينځ لکه محال غوندی دی چي هيڅوک بې ګواکي توان نلری فرمايې: ﴿ وَلَن تَسْتَطِيعُوٓا۟ أَن تَعْدِلُوا۟ بَيْنَ ٱلنِّسَآءِ ﴾ اوله سره به طاقت رانه وړئ تاسی ( ای دډيروښځو ميړونو ) ددي چي عدل وکړئ (برابروالی اومساوات بې وساتئ) ﴿ وَلَوْ حَرَصْتُمْ ﴾ اګرکه ډيرحرص وکړئ تاسی (عدل ته ) يعنی که خپل توان په کارواچوئ هم نشئ کولاي څکه په مينه کښي مساوات کول اودزړه ميل اورغبت انسان په طاقت کښي نه راځي ﴿ فَلَا تَمِيلُوا۟ كُلَّ ٱلْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَٱلْمُعَلَّقَةِ ﴾ (نومخ مه ګرزوئ تاسی ( له يوې ښځې ) په کامل مخ ګرځولوسره چي پس پريږدئ تاسی ( دابښځه ) پشان

---

[1] الطبری ۹ /۲۷۱

دخوړندي شوي چي نه يې طلاقوئ اونه هم دميړه توب معامله ورسره کوئ !) ددي مشابهت يې له هغه څه سره وکړچي دمځکې اوآسمان ترمينځ خوړندشوي وی چي نه په مځکه قرارلري اونه هم په آسمان کښي دغه د أبلغي تشبيه مثال دی ﴿ وَإِن تُصۡلِحُوا۟ وَتَتَّقُوا۟ ﴾ ( اوکه اصلاح وکړئ تاسی ( له خپلوښځوسره ) اوپرهيزوکړئ ( له ظلمه څخه ) يعنی که چيری تاسی دپخوانی خوراوظلم په هکله سره سوله وکړئ اوپه راتلونکي کښي له الله څخه وويريږئ اوپه عدل ورسره چال چلند کوئ نو ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ نوبيشکه چي الله ﷻ دی ښه مغفرت کونکي (دگناهونو) ډيررحم والا داجراوثواب په انعام ورکولوسره ) يعنی ستاسوپخوانی تېری به دروبښی اودرباندی به رحم وکړي .

﴿ وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغۡنِ ٱللَّهُ كُلًّا مِّن سَعَتِهِۦ ﴾ اوکه سره بيل شول دواړه (زوجين په طلاق سره نوبې پروابه کاندی الله هريوله دوئ نه له فراخي خپلې ؛ ) يعنی که دوئ دواړه په طلاق سره جلاشول نوالله به هريوه ددوئ پخپل لطف اوفضل سره ونازوي اوداسی جوړه به ورکړي چي ترپخوانی غوره وی همدارازژوندبه يې هوسااوخوښحاله کړي ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ وَٰسِعًا حَكِيمًا ﴾ اودی الله ﷻ پراخ (رحمت ، فضل ،احسان دده) تدبيروالادی ( چي هرکارله حکمت اومصلحت سره سم کوي ﴿ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ ﴾ اوخاص الله لره دی هغه شيان چي په آسمانونوکښي دی اوهرهغه شيان چي په ځمکه کښي دی (ملکا ، خلقاوعبيدا ) ﴿ وَلَقَدۡ وَصَّيۡنَا ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلۡكِتَٰبَ مِن قَبۡلِكُمۡ وَإِيَّاكُمۡ ﴾ اوخامخاپه تحقيق حکم کړي دی مونږهغوکسانوته چي ورکړي شوی دی دوئ ته کتاب پخواله تاسی اوهم .خاص حکم کړی دی مونږتاسی ته ﴿ أَنِ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ﴾ ددی چي وويريږئ له الله ﴿ وَإِن تَكۡفُرُوا۟ فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ ( اوکه تاسی کافران شئ نوبيشکه خاص الله لره دی هرهغه شيان چي په آسمانونوکښي دی اوهغه شيان چي په مځکه کښي دی ) يعنی ستاسوکافرکيدل هغه ته زيان نه رسوي ځکه هغه دټولومځکني اوآسماني مخلوقاتومالک دی ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَنِيًّا حَمِيدًا ﴾ ( اودی الله بی پروا(له هرشی اوهرچا ) ښه ستايلی شوي ) يعنی هغه ته دطاعت کونکوطاعت گټه نه ور رسوي اودگناهکارانوگناه ورته زيان نه رسوي ﴿ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلًا ﴾ اوخاص الله لره دی هغه شيان چي په آسمانونوکښي وي اوهغه چي په مځکه کښي وي اوبس دی الله وکيل (دبندگانو داعمالوساتونکي) ﴿ إِن يَشَأۡ يُذۡهِبۡكُمۡ أَيُّهَا ٱلنَّاسُ وَيَأۡتِ بِـَٔاخَرِينَ ﴾ ) که اراده وفرمايي (الله ) نوتاسی به بوزی ( په مرگ سره ) ای خلکو اورابه ولی نورخلگ (په پيداکولو سره ) ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ ذَٰلِكَ قَدِيرًا ﴾ اودی الله ﷻ (پردغه اعدام اوايجاد(هم) ښه قادر(توانا ) ﴿ مَّن كَانَ يُرِيدُ ثَوَابَ ٱلدُّنۡيَا فَعِندَ ٱللَّهِ ثَوَابُ ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۚ وَكَانَ ٱللَّهُ سَمِيعًۢا بَصِيرًا ﴾ ( اودی الله ښه اوريدونکي ښه ليدونکي )

یعنی څوک چي پخپل عمل باندی دنیوي اجرغواړي نو دالله په نزد تردي ښه غوره او لوړ اجرددنیااوآخرت موجوددي نوولی ددنیاخسیس اجرغواړئ اوسترغوره اجرددنیااو آخرت نه غواړئ بایدبنده ددنیااوآخرت ثواب او اجرو غواړي الله تعالی دبندګانو اقوال اوري او عملونه يېويني.

**بلاغت:**

پدې آیتونو کښي دفصاحت بدیع اوبیان چي کومي بیلګې شته په لاندي ډول يې لنډيزليکو:

۱ – استعاره پدې قول کښي چي: (اسلم وجهه لله) مخ يې دقصداوجهت لپاره استعاره کړي او همدارنګه په (أحضرت الانفس الشح) کښي حاضریدل څکه چي دبخل شدت خوله انسانه بیلیدونکي نه وي اونه هم څني لیري وی نوګواکي هغه يې ورته راحاضر او بیاورسره ملګري کړچي حاضرول يې له ملګرتوب څخه استعاره راوړ.[1]

۲ – مغایرجناس په (ضل...ضلالاً) اوپه (خسر...خسراناً) اوپه (أحسن، محسن) اوپه (صلحاً... والصلح) اوپه (تمیلوا کل المیل) کښي.

۳ – تشبیه پدی قول کښي چي فرمایي: (فتذروها کالمعلقة) دلته مرسل مجازدی.

۴ – اطناب اوایجازپه څوځایونو کښي.

**تنبیه:**

پدې آیت کښي له عدل څخه مقصد_دمیره په اختیارکی _دزړه دمیني عدل دی اوکه داسی ونشي نوبیابه له هغه آیت سره چي فرمایي: (فانکحوا ماطاب لکم من النساء مثنی وثلاث ورباع) ټکرشی اورسول الله ﷺ به دخپلو میرمنوترمینځ ویش کاوواوعدل به يې مراعت کاوویل به يې: اللهم هذاقسمي فیماأملک فلاتؤاخذني فیماتملک ولاأملک ) الهی دازماویش دی چي زماپه وس کښي راخي په هغه څه مي مه نیسه چي زماله توانه بهراوستاپه واک کښي ده ) یعنی قلبی محبت اوآیت شریف هم پدې دلالت کوي چي فرمایي: (فتذروها کالمعلّقة) اوهغه څوک چي مجددین بلل کیږي اوديوې میرمني په نکاح کولودوجوب حکم کوي اوپه دي آیت دلیل نیسی دوی ته اعتبارنشته څکه دغه دنصوصوپه پوهیدلوکښي جهل دی اودادوئ بیخي باطل قول دی شریعت غراي محمدي ﷺ اونبوي پاکیزه سنت يې نه مني ، وکفاناالله شرعلماء السوء.

الله تعالی فرمایي:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُونُواْ قَوَّٰمِينَ بِٱلْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلَّهِ وَلَوْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمْ أَوِ ٱلْوَٰلِدَيْنِ وَٱلْأَقْرَبِينَ ۚ إِن يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا فَٱللَّهُ أَوْلَىٰ بِهِمَا ۖ فَلَا تَتَّبِعُواْ ٱلْهَوَىٰٓ أَن تَعْدِلُواْ ۚ وَإِن تَلْوُۥٓاْ أَوْ تُعْرِضُواْ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١٣٥﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ ءَامِنُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَٱلْكِتَٰبِ ٱلَّذِى نَزَّلَ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ وَٱلْكِتَٰبِ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ مِن قَبْلُ ۚ وَمَن يَكْفُرْ بِٱللَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَكُتُبِهِۦ وَرُسُلِهِۦ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴿١٣٦﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ ثُمَّ ءَامَنُواْ ثُمَّ كَفَرُواْ ثُمَّ ٱزْدَادُواْ كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ ٱللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيلًۢا ﴿١٣٧﴾

---

[1] - تلخیص البیان ص ۳۲

بَشِّرِ ٱلْمُنَٰفِقِينَ بِأَنَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٣٨﴾ ٱلَّذِينَ يَتَّخِذُونَ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۚ أَيَبْتَغُونَ عِندَهُمُ
ٱلْعِزَّةَ فَإِنَّ ٱلْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ﴿١٣٩﴾ وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِى ٱلْكِتَٰبِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا
تَقْعُدُوا۟ مَعَهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا۟ فِى حَدِيثٍ غَيْرِهِۦٓ ۚ إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱلْكَٰفِرِينَ فِى جَهَنَّمَ جَمِيعًا
﴿١٤٠﴾ ٱلَّذِينَ يَتَرَبَّصُونَ بِكُمْ فَإِن كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ ٱللَّهِ قَالُوٓا۟ أَلَمْ نَكُن مَّعَكُمْ وَإِن كَانَ لِلْكَٰفِرِينَ نَصِيبٌ قَالُوٓا۟
أَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُم مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۚ فَٱللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۗ وَلَن يَجْعَلَ ٱللَّهُ لِلْكَٰفِرِينَ عَلَى
ٱلْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا ﴿١٤١﴾ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَهُوَ خَٰدِعُهُمْ وَإِذَا قَامُوٓا۟ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ قَامُوا۟ كُسَالَىٰ يُرَآءُونَ
ٱلنَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ ٱللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٤٢﴾ مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَٰلِكَ لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ ۚ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ
لَهُۥ سَبِيلًا ﴿١٤٣﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۚ أَتُرِيدُونَ أَن تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ
عَلَيْكُمْ سُلْطَٰنًا مُّبِينًا ﴿١٤٤﴾ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ فِى ٱلدَّرْكِ ٱلْأَسْفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا ﴿١٤٥﴾ إِلَّا
ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ وَأَصْلَحُوا۟ وَٱعْتَصَمُوا۟ بِٱللَّهِ وَأَخْلَصُوا۟ دِينَهُمْ لِلَّهِ فَأُو۟لَٰٓئِكَ مَعَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۖ وَسَوْفَ يُؤْتِ ٱللَّهُ
ٱلْمُؤْمِنِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٤٦﴾ مَّا يَفْعَلُ ٱللَّهُ بِعَذَابِكُمْ إِن شَكَرْتُمْ وَءَامَنتُمْ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ شَاكِرًا عَلِيمًا
﴿١٤٧﴾ النساء: ١٣٥ - ١٤٧

## مناسبت اوتړاو:

کله چې الله پاک له ښخوسره په احسان اوعدل دمعامله کولوامروفرمايو نودلته يې بيادعمومي نياواوعدالت مارښينه وکړه اودشاهدي اداکولوته يې په بشپړه توګه بلنه وکړه زياتې که مشهودعليه بډاى اوغنى وي اوکه بې وسه اوفقير؛ بيايې دنفسياتى خواهشاتوله منلوڅخه تحذيروفرمايه وروسته له دى يې دايمان بلنه ورکړه چې په ګردوملائکو، کتابونواورسولانوايمان راوړئ اوپه پاى کښي يې دمنافقينوشرميدلي صفتونه څرګنداوددې يادونه يې وکړه چې ددوئ دهستوګنې ځاى به ددوزخ په لاندني پوړکښي وي.

## لغتونه :

(تلووا) (لیّ) دفع اومنع ته وايې په حديث شريف کښي راځي (ليّ الواجد ظلم) يعنى دغنى ځنډول اونه ورکول ظلم دى (يخوضوا) له خوض څخه اخيستل شوي اوهغه ډوبيدلوته وايې (نستحوذ) ته غلبه مومې (استحواذ) غلبې ته وايې الله فرمايې: (استحوذ عليهم الشيطان) (مذبذبين) (تذبذب) خوځيدلواوتحريک ته وايې چې مرادځنى مترددى (الدرک) دراء په سکون اوزبرسره د پوړي (طبقې) په معنى ده ابن عباس ﷺ وايې چې درک داهل النارلپاره لکه درجه دجنتيانولپاره ده خودرجې يوپه بل دپاسه وي اودرکات يودبل دلاندي.

تفسیر: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُونُوا۟ قَوَّٰمِينَ بِٱلْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلَّهِ أَن تَعْدِلُوا۟ ﴾ ) ای هغو کسانوچي ایمان بې راوړی دی ( ای مؤمنانو ) تل په انصاف محکم ولاړاوسئ شاهدان (خاص) دپاره دالله یعنی ای هغه کسانوچي په الله اودالله په کتاب مو ایمان راوړي دعدل په کولو کښي زیاروباسئ اود(قوامین) کلمه بې دمبالغې څکه راوړه چي هیڅکله هم باید ظلم اوخلل ونکړي یوازي دالله لپاره شاهدي ورکړي هلته چي پکښي دخپلوي یابل څه پلوي کول نه وي ﴿ وَلَوْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمْ أَوِ ٱلْوَٰلِدَيْنِ وَٱلْأَقْرَبِينَ ﴾ اګرکه وي(داشاهدي)پرنفسونوستاسی(چي زیان موپکښي وي)یا(په) والدینو دمور او پلار ستاسی) یاپه خپلوانوستاسی ) نوتاسی دي داخپلوي اومنفعت دشاهدي له ورکولوڅخه منع نه کړي څکه حق په هرانسان باندی حاکم دی ﴿ إِن يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا ﴾ (که وي دا ( مشهودعلیه) شتمن اویامحتاج ) یعنی دېدای دغنامراعات کول اویادمحتاج اوبیوزله په حال رحم کول پدي چي شاهدي سمه ونه وایاست روانه دي ﴿ فَٱللَّهُ أَوْلَىٰ بِهِمَا ﴾ الله ډیرخیرغوښتونکي دی پردوئ (له تاسې نه) الله ددوئ په مصالحوښه عالم دي نوتاسی دالله دامرمراعات وکړئ ﴿ فَلَا تَتَّبِعُوا۟ ٱلْهَوَىٰٓ ﴾ تاسی دنفسانی خواهشاتومتابعت مکوئ ابن کثیروایې چي: تاسودي هواهوس اوخپلوي تربګنی یابغض اوعداوت پدې مجبوره نکړي چي عدل ته شاکړئ بلکه عدل په ټولوحالاتوکښي مدنظرولرئ [1] ﴿ وَإِن تَلْوُۥٓا۟ أَوْ تُعْرِضُوا۟ ﴾ اوکه ژبی واړوئ اویاڅنګ وکړئ (دحق شاهدي له اداکولوڅخه ) ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴾ نوبیشکه الله دي پرهرهغه شي چي کوئ (یې) تاسي ښه خبردارنوجزابه درکړي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ ءَامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ ای هغو کسانوچي ایمان یې راوړي (اي مؤمنانو ) ثابت اوخالص کړئ تاسی ایمان (یقین) خپل پرالله اورسول دده (محمد ) ﴿ وَٱلْكِتَـٰبِ ٱلَّذِى نَزَّلَ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ ﴾ اوپه هغه کتاب (قرآن ) چي ټوټه ټوټه یې نازل کړي دی پررسول خپل (محمد ﷺ ) باندی ﴿ وَٱلْكِتَـٰبِ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ مِن قَبْلُ ﴾ (اوپرهغه کتاب چي ټول یې یوځل نازل کړي دی پخوا ( له قرآنه په نورورسولانو ) یعنی پرهغونوروآسمانی کتابونوچي ترقرآن دمخه نازل شوي دی ابوالسعودوایې چي مرادله کتاب څخه جنس منتظم دی اوټولر آسمانی کتابونوته شامليږي ﴿ وَمَن يَكْفُرْ بِٱللَّهِ وَمَلَـٰٓئِكَتِهِۦ وَكُتُبِهِۦ وَرُسُلِهِۦ وَٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَـٰلًۢا بَعِيدًا ﴾ اوهرڅوک چي کافرشي په الله اوپه پرښتوددغه (الله) اوپرکتابونوددغه (الله) اوپررسولانوددغه (الله) اوپه ورځي آخري (قیامت ) نوپه تحقیق ګمراه شوي دی په ګمراهي لیري (له حقه) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ثُمَّ كَفَرُوا۟ ثُمَّ ءَامَنُوا۟ ثُمَّ كَفَرُوا۟ ثُمَّ ٱزْدَادُوا۟ كُفْرًا ﴾ بیشکه هغه کسان چي ایمان یې راوړي دی بیاکافران شوي دی بیایې ایمان راوړي دی بیاکافران شوي

[1] مختصرابن کثیر ۱ / ۴۴۷.

دی بیازیات شوي دی له جهته د کفره[1]، دغه آیت د منافقینو په هکله دی څکه دوئ ایمان راوړي بیا کافران شوي بیا یې ایمان راوړي بیا مرتد شوي بیا وروسته په کفرمړه شوی دی ابن عباس ﷺ وایې چې پدی آیت کښې د رسول الله ﷺ په عهد کښې هرمنافق داخل دي هغه که په وچه کښې وي اوکه په بحرکښې ابن کثیروایې: چې الله پدی آیت کښې دهغه چاخبرراوړي چې په اسلام کښې داخل شوي اوبیامرتد شوي بیامسلمان شوي اوبیاکافرشوی دي اوپخپله ګمراهی کښې غوپه شوي ترڅوچې مړشي نودهغه لپاره توبه نشته وروسته له مرګه اونه یې الله بښني نه یې هم دحق لارې ته الله رهبري کوي څکه الله فرمایې:

﴿ لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيلًا ﴾ ندی الله چې مغفرت وکړي دوئ ته اونه دي چې وښیې دوئ ته سمه صافه لاره د(جنت) زمخشري وایې چې معنایې داده څوک چې دارتداد له تکراره وروسته ایمان هم راوړي نه څینی منل کیږي اونه ورته بښنه کیږي خولکن دغه استبعاداواستغراب دي چې داسی هیڅکله نشی کیدای اوهمدارنګه ته فاسقان ګوري چې یوځل توبه کاږي بیافسق پیل کوي بیاتوبه کاږي بیرته رجوع کوي له هغه دثبات اواستقامت هیله نشی کیدای اوغالباچې هغه په بدحال مري

وروسته الله دمنافقینوله حال څخه بیان کوي چې: ﴿ بَشِّرِ الْمُنٰفِقِينَ بِأَنَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا الَّذِينَ يَتَّخِذُونَ الْكٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ ﴾ (زیري ورکړه ( ای محمده !) منافقانوته پدې چې بیشکه شته دوئ لره عذاب دردناک هغه کسان چې نیسی دوئ کافران دوستان ) الله ﷺ دزیري اوبشارت په کلمه تعبیر دتهکم لپاره وفرمایل ﴿ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ ( بې له مؤمنانو ) یعنی دوئ دکافرانو ملګرتیاکوي چې ګواکې هغوئ دقوت خاوندان دی اودمسلمانانو ملګرتیاپریږدي ﴿ أَيَبْتَغُونَ عِندَهُمُ الْعِزَّةَ ﴾ آیالټوی دا(منافقان ) په نزد(ددي کفارو ) عزت ؟ اوغلبه استفهام انکاری دی یعنی کفاروله خوهډوعزت نشته نوڅرنګه دوئ دهغوئ په نزدعزت لټوي ؟ ﴿ فَإِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيعًا ﴾ پس بیشکه ټول (دنیوي اواخروي ) عزت خاص الله لره دی یعنی عزت له الله اودالله له دوستانوسره دی ابن کثیروایې چې پدی کښې دی ته هڅونه ده چې دالله څخه دی دعزت غوښتنه وشي ﴿ وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِى الْكِتٰبِ ﴾ (اوپه تحقیق (پخوا ) نازل کړي دی الله ﷺ پرتاسی په کتاب (قرآن ) کښې داحکم) خطاب دلته ټولوهغوکسانوته دی چې دایمان څرګندونه یې کړي وی هغه که مؤمن وي اوکه منافق ﴿ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ ءَايٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا ﴾ هرکله چې واوریدل تاسی (په یومجلس کښې ) آیتونه دالله چې کفر(اوانکارکولی شي ) پدی آیتونواومسخرې کولی شی په هغوپوري. ﴿ فَلَا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوضُوا فِى حَدِيثٍ غَيْرِهِ ﴾ (نومه کینئ تاسي له دوئ سره ( ای مؤمنانو ) ترڅوپوري چې مشغول شی دوئ په بله خبره کښې ) یعنی تاسوله کافرانوسره مه کښینئ کوم چې دالله په آیتونوملنډې وهي ترڅوچې دوئ بله خبره راواخلی اوپه قرآن مسخرې پریږدي

---

[1] چابیاویلی چې دادیهودانوپه باب کښې راغلی چې په موسی ﷺ یې ایمان راووړاوبیادخوسی په عبادت کولوکافران شول بیاوروسته چې موسی ﷺ راستون شوایمان یې راووړپه عیسی ﷺ کافران شول اوبیادرسول الله محمد ﷺ په راتګ یې کفرزیات شودغه قول دقتادة ده اوطبري غوره کړی دی.

﴿ إِنَّكُمۡ إِذٗا مِّثۡلُهُمۡ ﴾ په تحقيق تاسی به (هم) پدې وخت کښې (په ګناه کښې) ددوئ پشان شئ ا يعنی که ورسره کښيناستئ نوددوئ په ډول به شئ ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡكَٰفِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ﴾ (بيشکه چې الله يوځای کونکي دي دمنافقانو او کافرانو په جهنم کښې (دټولو) ځکه چې (المرء مع من احب) سړي به له خپلودوستانوسره وي دادالله له لوري تحذير او ويرونه ده چې له کفارومنافقينوسره مخالطت اومجالست مکوئ بيا الله ددوئ بده خارنه داسی په ډاګه کوي ﴿ ٱلَّذِينَ يَتَرَبَّصُونَ بِكُمۡ ﴾ هغه منافقان چې هميشه منتظردي (دحوادثو) ستاسی ته ﴿ فَإِن كَانَ لَكُمۡ فَتۡحٞ مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ (نوکه وو تاسی ته بري له (لوري) د (الله) يعنی پردښمنانو بريالی اوولجې موترګوتوکړي ﴿ قَالُوٓاْ أَلَمۡ نَكُن مَّعَكُمۡ ﴾ نووايي دا (منافقان مسلمانانوته) چې آيا نه وومونږ له تاسی سره؟) نومونږته هم دغنيمت ونډه راکړئ ﴿ وَإِن كَانَ لِلۡكَٰفِرِينَ نَصِيبٞ ﴾ اوکه وه کافرانوته برخه (دبري) ﴿ قَالُوٓاْ أَلَمۡ نَسۡتَحۡوِذۡ عَلَيۡكُمۡ وَنَمۡنَعۡكُم مِّنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ نووايي دا (منافقان کفاروته) آيا غالب شوي نه وو مونږپرتاسو. (آيا) ومونه ژغورلئ تاسی له مؤمنانوڅخه؟ يعنی دمؤمنانوعزائم موسست کړل اوتاسی موځينی وژغورلئ نومونږته خپله ونډه راکړئ ځکه مونږهيڅوک نه پرېږدوتاسوته زيان ورسوی الله تعالی ددواړوحال په راتلونکي کښې داسی بيانوي چې ﴿ فَٱللَّهُ يَحۡكُمُ بَيۡنَكُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ ﴾ (نوالله به فيصله وکړي په مينځ ستاسی کښې په ورځې دقيامت کښې) يعنی الله دمؤمنانواوکافرانوترمينځ دقيامت په ورځې کښې فيصله کوي ﴿ وَلَن يَجۡعَلَ ٱللَّهُ لِلۡكَٰفِرِينَ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ سَبِيلًا ﴾ (اوله سره به ونه ګرزوي الله دپاره دکافرانو پرمؤمنانو باندی هيڅ لاره) يعنی هغوئ به هيڅکله هم داسی غالبه نکړي چې مسلمانان له بيخه وباسی. ابن کثير وايې چې هغه په داډول چې يومخه ايزه مسلمانان له مينځه يوسی که څه هم کله کله به کافران يوڅه بري ترلاسه کوي خووروستي بری خامخادمتقيانولپاره په دنيااوآخرت کښې وي[1] ﴿ إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَهُوَ خَٰدِعُهُمۡ ﴾ بيشکه چې منافقان تګي کوي (په اظهارداسلام اوخفاء دکفر) له الله سره اوالله سزاورکونکي ددوئ دی ددوئ دتګې په سبب نوالله ددوئ جزاته دمشاکلت په ډول خداع وويل ځکه ددوئ دتګی وبال دوئ ته راجع دی ﴿ وَإِذَا قَامُوٓاْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ قَامُواْ كُسَالَىٰ ﴾ (اوهرکله چې پاځيږي دغه (منافقان) لمانځه ته نوپاځيږي سست کاهلان) نهٔ دثواب طمع لري اونه هم له عذابه ويريږي ﴿ يُرَآءُونَ

---

(۱) قرطبی ددي آيت په هکله دمفسرينو پنځه قولونه راوړی يوداچې مونږترجيح ورکړه اوومولیکل اوچابياويلی چې مرادله سبيل څخه حجت اودليل دی اوچابياويلی چې دادقيامت په ورځ کښې ده اوطبری هم دی ته ترجيح ورکړي چې وايې دادقيامت دورځې حجت دی اوپه هغه حديث يې دليل نيولی چې يوچاله حضرت علی کرم الله وجهه څخه ددې آيت په هکله وپوښتل هغه ورته وويل رانژدی شه اوبيايې دغه آيت ورته تلاوت کړ: (فالله يحكم بينكم يوم القيامة ولن يجعل للكافرين على المؤمنين سبيلا) يعنی دقيامت په ورځ ،خودغه رايه ابن عربی ضعيفه کړې اوکمزوری بللی. قرطبی وګوره ۵ / ۴۱۹. (۲) مختصرابن کثير ۱ / ۴۴۹

ٱلنَّاسَ ﴾ ( خلکوته ځان ښيي ( چي مونږ هم مسلمانان يو ) يعنى دوئ په لمونځ کولو د ريا او سمعت اراده لري دالله د رضالپاره يې نه کوي ﴿ وَلَا يَذْكُرُونَ ٱللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ او نه يادوي دوئ الله مګرلږ ﴿ مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَٰلِكَ ﴾ پدې حال کښې چي دوئ متحيران متردد ان دی په مينځ دد غه ايمان او کفرکي ) ﴿ لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ ﴾ نه په طرف دد غو مؤمنانو دی او نه په طرف د هغو کفارو دی ﴿ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ سَبِيلًا ﴾ او هرڅوک چي الله يې ګمراه کړي نو له سره ته به و نه مومي ده ته لاره ( د حق ) نيکمرغي او هدايت وروسته بيا الله تعالى مؤمنان د دين د دښمنانو له دوستي څخه ويروي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ ( اى هغو کسانو چي ايمان يې راوړي دی ( اى مؤمنانو ) مه نيسئ تاسى کافران دوستان (خپل ) بې له مؤمنانو څخه ) يعنى تاسو د مسلمانانو دوستى مه پريږدئ چي په بدل کښى له مجرمينو کفارو سره دوستى او خپلوي پالئ ﴿ أَتُرِيدُونَ أَن تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَٰنًا مُّبِينًا ﴾ آيا اراده لرئ تاسى ( اى مؤمنانو ) چي پيدا کړئ الله لره پر تاسى برهان (حجت ) ښکاره ؟ چي تاسى منافقان ياست ؟ ابن عباس ﷺ وايې چي په قرآن کريم کښي هرځاى سلطان حجت ته ويل کيږي وروسته الله فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ فِى ٱلدَّرْكِ ٱلْأَسْفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ ﴾ بيشکه چي منافقين دی په طبقه ډيره ښکته کښي له اوره د(جهنم) چي هغه اوه طبقې (پوړي ) ده ابن عباس ﷺ وايې داور په خورا ښکتنى برخه کښى به وي ځکه دوئ کفراو په اسلام او مسلمانانو استهزاء او ملنډې وهل دواړه يوځاى کړي دی او ر درکات لري لکه چي جنت درجات لرى ﴿ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا ﴾ او له سره به نه مومي ته دوئ ته مددګار ( دالله له عذابه ژغورونکي ) ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ وَأَصْلَحُوا۟ ﴾ مګر هغه کسان چي توبه وباسي (له نفاقه) او اصلاح کړي (اعمال خپل ) ﴿ وَٱعْتَصَمُوا۟ بِٱللَّهِ ﴾ او منګولې خښې کړئ په (دين) دالله (او کتاب دهغه) ﴿ وَأَخْلَصُوا۟ دِينَهُمْ لِلَّهِ ﴾ ( او خالص کړئ دين خپل خاص الله لره ) يعنى دالله څخه پرته پخپل عمل د بل څه غوښتونکي نه وي ( ﴿ فَأُو۟لَٰٓئِكَ مَعَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ نو دغه کسان به وي سره له مؤمنانو (په قيامت کښي ) ﴿ وَسَوْفَ يُؤْتِ ٱللَّهُ ٱلْمُؤْمِنِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ او ژر به ورکړي الله ټولو مؤمنانو ته (په عقبى ) کښي ثواب ډير لوي ( چي جنت دي ) ﴿ مَّا يَفْعَلُ ٱللَّهُ بِعَذَابِكُمْ إِن شَكَرْتُمْ وَءَامَنتُمْ ﴾ (څه به کوي الله په عذاب ستاسى ؟ ( ولى به عذاب درکوي تاسى ته ؟ ) که شکرو باسئ تاسى او ايمان ولرئ تاسى ) يعنى پدا حال کښي ستاسو په عذابولو کښي الله ته څه ګټه شته ؟ آيا قهر به يې کښيني ؟ کسات به واخلى ؟ او که به کوم زيان او ضرر خپنى دفع شي ؟ الله پاک خوله دی ټولو څخه غني او بې

پروادی ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ شَاكِرًا عَلِيمًا ﴾ اودي الله شکر قبلونکي ښه عالم يعنى الله د بندګانو د طاعت سره له دي چي ورته اړنه دی خو په لږ عبادت ډیر اجراو ثواب ورکوي.

بلاغت: پدې آيتونو کښي د فصاحت او بديع چي کومي بيلګي شته لنډيزيې دادی:

۱- مبالغه د (قوامين بالقسط) په صيغه کښی يعنی زيار ايستونکي په عدل کښي.

۲- طباق صنعت د (غنياوفقيرا) او (آمنوا ثم كفروا) په ... کښی.

۳- ناقص جناس په دی جملو کښي چي: (آمنوا، آمِنوا) يوازي شکل په تغير راغلی.

۴- اشتقاقی جناس په: (يخادعون ...خادعهم) او (جامع ...جميعاً) او بيا (شكرتم..شاكراً) کښي.

۵- تهکمی اسلوب په دې کلام کښي چي (بشر المنافقين) ځکه د بشارت لفظ يې د انذار په ځای استعمال کړی دی.

۶- استعاره په دی کلام کښي چي (وهو خادعهم) د خداع نوم يې د عمل د مجازات لپاره راوړي او الله ﷻ خو له خداع څخه منزه او پاک دی.

۷- انکاری استفهام پدې جمله کښي چي: (ايبتغون عندهم العزة) غرض څينی ټکول او توبيخ دی.

فوائد او ټکي:

لومړی فائده: د الله تعالی دا قول چي فرمايي: (يا ايها الذين آمَنوا، امِنوا) تکرارنه دی او معنا يې دا چي په ايمان ثابت او تل ترتله اوسئ لکه چي مؤمن وايي (اهدنا الصراط المستقيم) يعنی موږ په مستقيمه لار ثابت ولرئ.

دوهمه فائده: الله تعالی د مؤمنانو فتحه عظيمه بللی او ځان ته يې نسبت کړي چي: (فتح من الله) او د کافرانو يې ونډه (نصيب) بللی چي: (وان كان للكافرين نصيب) او ځان ته يې نسبت نه دی کړی ددې لپاره چي د مسلمانانو د شان تعظيم او د کفارو د برخي لږوالی او تخسيس په ډاګه کړی.

دريمه فائده: مفسرين وايې چي داوراوه درکات دی لومړي يې جهنم، بيالظی وروسته حطمة، بيا سعير، بيا سقر، بيا جحيم او بيا هاوية ده کله کله د غه طبقات يو د بل په نوم يادول کيږي ځکه ټول په اورکښي سره يو دی او ټولو ته شامليږي همداسی په البحر المحيط کښي هم راغلی دی.

تنبيه: منافق تر کافر زيات خطرناک دی ځکه يې نو عذاب هم ترهغه سخت او دردونکي دی الله تعالی فرمايي: (ان المنافقين في الدرک الاسفل من النار ولن تجدلهم نصيرا) او الله تعالی د کافر د توبي لپاره يوازی له کفرراګرځيدل شرط ګڼلی دی فرمايي: (قل للذين كفروا ان ينتهوا يغفرلهم ماقد سلف) خو د منافق د توبي لپاره څلور شرطونه ايښودل شوي چي هغه، توبه، اصلاح، منګولي ښخول د الله په دين او په دين کښي اخلاص دی الله تعالی فرمايي: (الا الذين تابوا واصلحوا واعتصموابالله واخلصوا دينهم لله) نوله دې څخه معلوميږي چي منافق تر کافر ډيربد دی او د الله په غضب اخته اوله رجوع کولو څخه ليري دی بيا الله فرمايي چي: (فاولئک مع المؤمنين) او داسی يې نه وويل چي: (فأولئک هم المؤمنون) بيا الله تعالی فرمايي: (وسوف يؤت الله المؤمنين اجراً عظيما) او داسی يې ونه ويل چي (وسوف يؤتيهم) ځکه الله ﷻ دوئ سره بغض لري او د دوئ د هغه کفري نفاق غندنه کوي. (زادنا الله فهما لاسرار کتابه)

د کتاب پيژندنه

دمننې مراتب

اهداء

## دفاتحې سورت

صفوة التفاسير 1 ټوک

د نصيراحمد احمدي

لخوا سکين او pdf سو

تاريخ. ۱۰-۱۱-۱۳۹۸

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا محـتـاج احمدي!